


# عُلوم القرآن

پښتو

علامه شمس الحق افغانی رحمة الله علیه

مُترجم

مولانا سیف الحنان حقانی

تاج کتب خانه
محله جنګی پیښور
قصه خوانی
فون: ۲۱۴۴۵۴

# علوم القرآن (پښتو)

علّامه شمس الحق افغانی رحمه الله



مُترجم

مولانا سیف الحنان

ناشر

تاج کتب خانه ۰ محلّه جنگی قصّه خوانی پېښور

فون نمبر :- ۲۱۴۴۵۴

# فهرست مضامین

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## پیش لفظ

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ وَحۡدَهٗ لَا شَرِیۡكَ لَهٗ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی مَنۡ لَّا نَبِیَّ بَعۡدَهٗ

احقر دَ خلوېښتو کالو نه هم زیاته مُوده دَ قرآن کریم په خدمت کښې مصروُف پاتې شوې دې. ما دَ خپل توفیق مُطابق دَ زړو او نوو تفاسیرو او نورو هغه کتابونو مُطالعه کوله دَ کومو نه چه دَ قرآن فهمۍ په باره کښې مدد اخستې شو، او کوم معارف چه دَ الله دَ جانبه په زړه راوړېدل هغه بهٔ تول ږم په خپل خپل وخت دَ درس قرآن شریف په شکل کښې پیش کول:-

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ :- دَ احقر دَ درسُونو نه قدیم او جدید دوا طبقونه دَ اُمید نه زیاته فائده اُورسیده، د دوستانو اصرار وو، چه څه تفسیر اُلیکم، لیکن مادا مناسب اُګنړله، چه دَ تفسیر په ځائے د قرآنی علومو په مختلفو شعبو کتابونو اُلیکم چه په مختصر وخت کښې ناظرین هغه اُولوستې شي، او د لږ جسامت په وجه مالی کم توفیقه حضرات هم دَ هغې نه مستفید شي، لیکن تالیف کښې دَ دې خیال اُساتلې شو،

(۱) چه دَ مطالب قرآن په تعیُن کښې د سَلَفُو طریقه نه وي پرېښودې شوې، او دَ بیان شو معارفو و حقائقو به شان داوي چه دَ سلفو تائید کوي نه چه د هغې تحریف:-

(۲) دویمه دا چه دَا دور د عقلیت او فلسفیت دې، د دې وجې نه مقاصد شرعیه نقلیه دِ دَ عقل او فلسفې په رنګ کښې بیان شي، چه دَ مغرب زده طبقې دَ هدایت سامان هم اُشي:-

(۳) دریمه :- دا چه دَ مقاصدو په تعبیراتو کښې دِ اصطلاحي

تعبیرات کړي وی. او ژبیات تردې هغه تعبیرات استعمال شي چه د جدید مذاق مطابق وی. احقر ډیر زیات مصروف دے، د دے وجې د بې ضرورته بسط او تفصیل نه مې ډډه وکړه، او په مطلب خیز اختصار مې اکتفا وکړه، که چرے د موجوده دور د مصنفینو په طرز مې کتاب لیکلے نو د دے نه څوچنده زیات غټ کتاب جوړیدے شو د کتاب ترتیب په دے ډول دے:-

(۱) ضرورة القرآن:- یعنی د نوع انسانی د پاره د وحی الٰهی او د قرآن په ضرورت عقلی او فلسفی دلائل:-

(۲) صداقة القرآن، یعنی په دے خبره عقلی دلائل او د مستشرقینِ یورپ تردید چه قرآن د الله د جانبه دے او معجز دے:-

(۳) تنزیلِ قرآن او د هغه تدوین:- د نزولِ قرآن او جمعِ قرآن تحقیق:-

(۴) محفوظیة القرآن:- د قرآن د محفوظیت دلائل او د مستشرقینو د شبهاتو تردید:-

(۵) مهمّات القرآن:- یعنی د قرآن د اهمو مقاماتو حل د هغې حکمتونه او رازونه او د شبهاتو ازاله:-

(۶) احکام القرآن: یعنی د قرآن فقهی احکام او د هغې حکمت او د موجوده دور د شبهاتو جوابونه:

(۷) تعبیراتُ القرآن:- یعنی د قرآنی تعبیراتو حقیقی حل په دے غرض چه صحیح مطالبِ قرآنی معلومه شي او د جدید خیالو اهلِ قلمو خامیانے واضحه شي:

رومبی پنځه بابونه په کتابی شکل کښے شائع کومه چه د هغې نوم به علوم القرآن وی، دُعا کوم چه الله تعالے د دے خدمت د



تکمیل توفیق ما ته راکړی، په خپل درگاه کښے د قبول او منظور کړی، او د آخرت د نجات ذریعه دې کړی، او محترم الحاج سید عبدالرشید شاه مهتمم مدرسه فاروقیه بهاولپور د پاره د الله جل جلاله: دا کتاب د سعادت باعث جوړ کړی، او د هغه دینی محبت او مجاهدانه کوششونه د الله تعالے د دے کتاب د اشاعت سبب جوړ کړی:

احقر:- شمس الحق افغانی عفا الله عنه:



# دوحی اود قرآن ضرورت

دانسان د سعادت او شقاوت اصولو د معلومولو دپاره انسانی عقل ځکه خو د دے وجے کافی نه دے، چه د عقل معلوماتو بنیاد هغه تجربے او مشاهدات دی په کومو چه د سائنسی اصولو مطابق بوره محنت او ډیر غور او فکر شوے وی، او د سعادت او شقاوت د اصولو بنیاد د عقائدو، اخلاقو او د اعمالو د خصوصیاتو پیژندل دی، او د مشاهداتو او د محسوساتو د دائرے نه داد ننګ بهر دی چه په هغے باندے د تجربے او مشاهدے په ذریعه هیڅ قسم غور نشی کیدے او نه د هغے د پاره څه تجربه کاره شته دے۔

(۲) دویم د دے وجے چه عقلی فیصلو کښے د وهم دخل وی، او د دے کبله د غه فیصلے اکثر غلطے شی۔

(۳) دریم د دے وجے چه عقلونه مختلف دی، د صحیح عقل صورتونه ګمراه او د فاسد عقل صورتونه په دے امورو کښے زیات دی۔

(۴) څلورم د دے وجے چه د عقل فیصلے عموماً په جذباتو بنا وی، نو ځکه د اکثر غلطے وی هم د غه وجه ده چه د اقوام عالم د عقلونو فیصلے د معرفت الٰهی، د نبوت د حقیقت معلومولو، د عملونو د جزا کانو، د امور آخرت او د صحیح او غلطو عملونو په باره کښے یو بل سره متضاد دی یو قوم شرك صحیح ګنړی، او بل تثلیث، بل خدا پرستی، او بل مخلوق پرستی، یو قوم د غوا غوښه خوړل ګناه ګنړی، او څوك ئے نه خوړل، څوك خنزیر خوړل بنه ګنړی څوك ئے نه خوړل، د چا د عبادت کولو او د رضائے الٰهی موندلو یوه طریقه ده، او د چا بله، د چا د نبوت تصور یو دے، او د چا بل، څوك د اعمالو جزا او سزا د جنت او دوزخ په



شکل کښے مني، څوك ئے د روحانی درد او راحت په شکل کښے او څوك ئے د تناسخ په شکل کښے مني، داحال په ټولو روحانی امورو کښے دے، د دے نه واضحه شوه چه په مذکورو امورو کښے عقل کافی نه دے، اُس مونږ هغه دلائل عقلی پیش کوو کومو نه به چه دا معلومیږی چه د دے امورو د پیژندلو د پاره د خالق کائنات وحی، د هغه کلام یا په نورو ټکو کښے د قرآن ضرورت دے، او دا دے د پاره چه د انسانی سعادت او شقاوت د اصولو دا سے یقینی فیصله مقرره شی، چه په هغے کښے د شك شبے هیڅ ګنجائش پاتے نشی، هغه دلائل په دے ډول دی۔

## دقرآن دضرورت دلیل بقائی

(۱) رومبے دلیل بقائی دے، د هر انسان فطری خواهش دے چه هغه ته دائمی بقا او ژوند حاصل وی، ځکه چه د انسان د ټولو نعمتونو نه ډیر ژوند سره د ےکه چرے ژوند نه وی، نو ټول نعمتونه مثلاً، مال، و جاه، اقتدار، خوړل، آغوستل، او ښځه دا ټول بیکاره دی، د دے فطری جذبے دلیل دا دے چه د هر انسان د ژوند په بقا باندے څوك دشمن که چرے حمله اُوکړی، نو هغه به د ذات او د بقا سره د محبت په وجه د مدافعت کوشش کوی او د ژوند او بقا محفوظ ساتلو د پاره به زور لګوی، دا د ننګ که چرے په انسان د رنځ بیمارئ حمله وکی چه د هغه حیات او بقا نه تړ خطره پیښه شی نو هغه به دارو درملو غږ مال لګوی، او د ژوند د بقا کوشش کوی د دے نه معلومیږی چه بقا سره د محبت جذبه فطری ده، اُس د دے ختمیدونکی دُنیا او فانی جهان کښے هیڅ یو انسان ته دا فطری مقصد حاصل نه دے نو که چرے د ژوند په یو

دور کښې هم انسان ته د دوامِ حیات او استمرارِ بقا دا مقصد حاصل نه وی نو دلته به دا اُوبیلے شی چه انسان دیو ناممکن څیز فطری خواهش اُکړو، چه د علم نفسیا تو د مخه صحیح نه دے، ځکه چه ناممکنات فطری خواهش نه شی کیدے، او نه په یو ناممکن مقصد باندی ټول انسانان متفق کیدے شی دا خبره ناممکنه ده چه دره په دوو کښې پخه شی په ټولے نړئ کښې دا سے یو دروغ گس به هم پیښ نه شی چه د هغه خواهش وی چه دره په دوو کښې پخه وی، دا خو شو ناممکن عقلی دا، ناممکن عادی هم فطرةً د ټولو انسانانو مطلوب نشی کیدے، د یو انسان په فطرت کښې هم دا نه دی پراته چه هغه د ټول عُمر د خوراك څکالك او د ساه اغستو نه بے نیازه شی ددے نه دا معلومه شوه، چه ناممکن عقلی او فطری دواړه د ټولو انسانانو فطری مطلوب نشی جوړیدے، نو دوامِ حیات چه د ټولو انسانانو فطری . . د ټولو انسانانو فطری مطلوب دے، هیڅرے ناممکن نه دے بلکه ممکن الحصول دے، اُس دواړه بقاد پاره په دے نړئ د عالم تغیّرات کښې داسے اشیاء موجود دی چه کچرے د زر خرابیدو نکی او سخا کیدو نکی یل څیز سره اُلگولے شی نو څه زمانے پورے هغے ته بقا حاصله شی مثلاً یو تازه مهی (کب) باندے، چه مالگه اُمږے شی او اُوچ کړے شی نو څه مودے پورے خو باقی ساتلے شی، په چین کښی دیومړ سړی کالبوت د شهدو په ډك بکس کښے په ایښودو څه مودے د پاره باقی ساتلے شی، د مصر په آثار قدیمه کښی داسے منزه بیا مُوندے شوے ده چه په هغے باندے د لیکلے شوی تاریخ نه دا معلومه شوه چه دا د پنځو زرو کالو نه دیو مسالے (رمی) په ذریعه محفوظ ده، هر کله چه په دے عالم تغیّر کښے د بقا زیاتولو دا سے سامان موجود دے



نو ابدی اولاً فانی اشیا ؤ کښے داسے مساله به نه وی چه د هغے تړون د انسان رُوح سره اُوشی او په دے وجه هغه ته دوامِ بقا او استمرارِ حیات حاصل شی، ابدی او لازوال څیزونه د الله تعالے ذات او د هغه صفات دی، چه انسان سره د هغې په لگید و انسان ته دوامِ حیات او استمرارِ بقا حاصلیدے شی او دا ډول صفتِ الٰهی صرف د الله کلام او د هغه وحی کیدے شی، په دے وجه الله تعالیٰ خپل کلام په پیغمبرانو علیهم السّلام نازل کړو چه انسان ته هغه دائمی حیات او بقا حاصل شی کوم چه د انسان فطری مطلوب دے،

کلامِ الٰهی په دنیا کښے نازل شوے دے، نو دلته د ولے انسان ته همیشه ژوند اُنه بخښلو؟ دا اعتراض ټو خو په دے وجه نامعقول دے چه دُنیا بخپله دارِ فناء ده او په دے کښے ټول مُوثرات د فنا هم موجود دی، او همیشه ژوند او بقا د پاره دداسے محفوظ جهان ضرورت دے چه په هغې کښے مُوثرات د فنا هم موجود نه وی،

(۲) دویم په دے وجه چه ددے دُنیا د تنگئ د کبله د ټولو انسانانو استوگنه دلته ناممکنه وه، ددینه معلومه دا شوه چه د همیشه بقا غوندے د فطری جذبے د تکمیل د پاره د کلامِ الٰهی او د وحی د بانی ضرورت دے،،

ټوا عتراض دا کولے شی چه په آخرت کښې به د کلامِ الٰهی عاملینو ته که څوک د جنت په صورت کښے همیشه ژوند حاصل وی، نو د کلامِ الٰهی منکرینو ته به هم د دوزخ په صُورت کښے همیشه ژوند حاصل وی نو د یو جواب دا دے چه د دوزخیانو ژوند د مرگ نه هم بتر دے،،

،، دویم جواب دا دے، چه کلامِ الٰهی ابدی دے نو ځکه د دے اثر هم دائمی او ابدی دے چه دا د انسان ژوند ابدی جوړه وی خواه هغه مسلمان جنت دی او که کفار د دوزخ دی مگر د ابدی ژوند دوه قسم دی

ئو سره د آرام او بل سره د تکلیف نو دوام خو په دواړو کښې دے فرق صرف د استعداد او د عمل دے، جنتیانو کلام الهی سره د ایمان او منلو جذبے لاندے تروں لرلو او دوزخیانو سره د کفر او انکار د جذبے لاندې نو فرق صرف د نوعیت شو اګر چه دوام حیات دواړه دی، دد ے مثال داسے دے چه نمر ئے سپینوی دوبی او جامو سره د نمر تعلق یو شان دے مګر دوبی خرمن بیرِ تور بیږی او د جامو رنګ بیرِ سپینیږی نو دا فرق صرف د استعداد دے، هم دغه حال د کفر او ایمان دے لکه څنګه چه قرآن واضح کړے دے :-

وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّ رَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا ؛ سورۂ بنی اسرائیل آیت ؛ ترجمه :- مونږ د قرآن د ټولو مکروهو لرے کولو او د قوت او د رحمت سامان پیدا کولو د پاره نازل کړے دے، لیکن د کفارو د معاندانو ظلم په وجه قرآن د هغوی د پاره د نقصان سامان جوړ شی :-

# دلیل قانونی

(٢) دویم دلیل قانونی دے، د انسان په فطرت کښې دوه قوتونه موجود دی

(١) یو قوت شهویه (منزوعیه) چه هغه د قدرت د اسے عطا دے چه په هغ انسان د خپلو مفادو د پاره جد و جهد کوی :

(٢) دویم قوتِ غضبیه دے چه په هغ انسان د داسے قوتونو مقابله (دفعت) کوی چه کوم د مذکوره فوائدو په حصول کښې د ده سره مزاحمت کوی د انسانی فوائد و کلیات، خوړل، څښل، اغوستل، استوګنه او د بلوغ نه پس منکوحه ده دا ټول د انسان محبوب جسمانی مقاصد دی، دوه نور معنوی او روحانی مقاصد دی، دین او رتبه دا ټول اوه د انسان داسے



مقاصد دی چه په دے کښې ورته څه هم مانع، حائل یا مزاحم راشی نو د ے مقابله کوی د ټولو انسانی جنګ جګړو بنیاد هم دا خیزونه دی، فطرت دا غواړی چه د دے اوو مقاصدو د حفاظت د پاره د یو عادلانه داسے قانون ضرورت دے، چه پرے انصاف قائم شی، او جګړے ختمے شی، اُس دا قانون د د چاوی د خداوند تعالیٰ، که د انسان ئے دا ظاهره ده چه د ے قسمه قانون جوړه ونکی د پاره د خلود و صفاتو ضرورت شی (١) علمِ محیط (٢) رحمتِ کامله (٣) قدرتِ تامّه (٤) غیر جانبداری؛ علم محیط خو ځکه ضروری دے، چه د انسانی حقوقو د هر اړخ علم ورلری او د انسانی فوائدو او حقوقو سره تړلی د انسانانو وژوند په ټولو دوارو (دنیا، قبر، آخرت) باندے د ده نظر وی چه دغه عادلانه فیصله د انسانی ژوند په دے ټولو منزلونو کښې درسته وی، او دا هم ضروری ده چه دغه فیصله د انسان د پاره د نتائجو په لحاظ هم درسته وی خواه هغه نتائج انفرادی وی، او که اجتماعی ظاهری وی، او که باطنی (ژوره) مثلاً کچرے انسان د سود د جواز او د زنا یا لواطت یا الترضاد جواز قانون جوړ کړی نو دے کښې خو د څو شمخا شخصی آزادئ لحاظ ساتلے شوے دے، لیکن دے ټولو کښې د پوره معاشرے د اجتماعی ضرور لحاظ نه دے ساتلے شوے د سود نتیجه په حرص کښې اضافه او د انسانی همدردئ فقدان دے، او زنا او لواطت سره د صحتِ جسمانی او د عملی نوټونو د کمزورئ غوندے، ضرورته نظرانداز کړے شوی دی، او په دے کښې هم دارنګ په قبر او آخرت کښې د عذاب خیال هم نه دے ساتلے شوے :-

د رحمتِ کامله په وجه ضرورت دے، چه د عادلانه قانون جوړ په موقعه څه قسم غفلت اُو نشی، او په قانون کښې عمداً داسے اجزا شامل نکړی چه هغه د انصاف خلاف دی :

قدرت کامله پس دے وجه ضروری دے چه دچا د زور د لاندې انصاف اُنکړی یا مجرم نه په سزا ورکولو کښې کمزوری ظاهره نکړی غیر جانبداری پس دے وجه ضروری دی چه دَهَم قوم، هَم وطن هَم رنګ او دَ هَم ژبان څه طرف داری اُنکړی او دا رنګ په قانون سازئ کښې دَ دے قسمه خلقو دَ خیال ساتلو په غرض بل قسم خلقو ته نقصان ورنکړی. لکه څنګه چه پُورپین خلق داسے کوی:

دا ځلور صفتونه چه عادلانه قانون جوړولو دَ پاره ضروری وی، صرف د خداوند تعالی په ذات کښے موجود دی نه دَ هغه په رنګ د چا عِلمِ مُحیط شته او نه دَ چا رحمت،:

اَللهُ اَرْحَمُ بِعِبَادِهٖ مِنَ الْاُمِّ بِوَلِیْدِهَا، ترجمه:- دَ الله پاک رحمت په خپلو بندګانو دومره زیات دے، چه دَ مور به په خپل اولاد دومره نه وی، نه د هغه په رنګ دَ چا قدرت شته چه دَ چا زور پرے اُچلیږی، او په قانون جوړولو کښے د هغه رعایت اُکړی یا مُجرم نه په سزا ورکولو کښے د چا نه اُویریږی، صرف دَ خداوند تعالی ذات غیر جانبدار ګڼلے کیدے شی چه هغه په قوم او وطن کښے چا سره شریک نه دے چه دَ هغوی لحاظ اُکړی نه چا سره په رنګ او ژبه کښے شریک دے. بلکه هغه خودا سے ذات دے چه لَمْ یَلِدْ وَلَمْ یُوْلَدْ، او لَیْسَ کَمِثْلِهٖ شَیْئٌ دے، ترجمه:- نه هغه نه خوک پیدا دی او نه هغه دَ چا پیدا دے، او نه دَ هغه په شان څوک کیدے شی.

لهٰذا دے وجے دَ انسان فِطری حق، یعنے عادلانه قانون صرف دَ الله تعالیٰ ذات سره خاص دے،: ع

سروری زیبا فقط اُس ذات بے ہمتا کو ہے، حکمراں ہے اک وہی باقی بتانِ آزری

سرداری (حکمرانی) صرف دَ دے بے مثله ذات حق دے. هم دے یو ازنے حکمران دے. نور ټول دَ آذر بتان دی:



اِنِ الْحُکْمُ اِلَّا لِلّٰهِ :. سورهٔ یوسف آیة ۴۰ ؛ قانون جوړول صِرف دَ الله تعالی جل جلاله حق دے،:

دَ دے قسمه قانونِ خداوندی، وحيِ الٰهی او احکامِ ربانی نوُم قرآن دے پس دے وجه دَ قرآن ضرورت دَ انسان د پاره ثابت شو، بهر کیف انسانی حقوقو سره ترلی قانونِ خداوندی نه بغیر د یو انسانی قانون حکمرانی به دَ جاهلیت حکمرانی بللے شی:

اَفَحُکْمُ الْجَاهِلِیَّةِ یَبْغُوْنَ ط وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُکْمًا لِّقَوْمٍ یُّوْقِنُوْنَ سورهٔ مائده آیة ۴۹ ؛ ترجمه، ولے خلق د انسان جاهلانه قانون غواړی اُو په حقیقت بانندے یقین لرونکی قوم د پاره د الله تعالی نه سوا د بل چا قانون دیر بنه دے ؟

غیر حق چون ناهی و آمر شود زورور نا توان قاهر شود (اقبال)

زیر گردون قاهری از آمری است آمری از ما سوی الله کافری است

دالله نه بغیر چه څوک قانون سازشی، په زور ظلم سره په عاجزانو غالب شی، دَ آسمان لاندے خو غلبه صرف د یو حکمران (الله) ده، دَ الله تعالی نه بغیر دَ بل حکمران کافر دے:

# دضرورتِ قرآن دلیلِ غذائی

(۳) دلیل غذائی - انسان دَ جسم او رُوح نه مُرکب رجوړ) دے او بیا په دے دواړو کښے رُوح اعلیٰ او اشرف دے او بدن دَ هغے په نسبت ادنیٰ او خسیس دے هم دا وجه ده چه دَ جسم نه رُوح اُوځی نو بدن بیکاره شی، دَ روح دا قسمه برتری دومره واضحه او بدیهی ده چه حیوانات او جمادات هم دَ دے نه خبردار دی مثلاً یو ګوتے سرے چه رُوح پکښے وی او خوځیږی په یو ځائے کښے اُوده پروت وی نو هیڅ څیز پرے حمله نه کوی

نه پکښې چینجي کیږي نه کارغان او تپوسان دده غوښه شوکوي نه ځمکه دده بدن خوري او نه هوا او نمر دے بدبویه کولے شي. لیکن هم دغه انسان د بدن نه چه څه وخت روح اووځي، نو جمادات او حیوانات ټول په ده حمله کوي باوجود دے چه د مرګ نه وړاندے دے په کائناتو کښے حاکم وو نه چه محکوم:-

وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ: ترجمه:- او الله تعالیٰ د ځمکے او د آسمانونو ټول څیزونه ستاسو مسخر کړیدي. سورة الجاثیه، آیة ۱۳

بیا ځمکه هم دغه جسم خوري، نمر ئے بدبویه کړي چینجي هم ورته په پوزه او خوله کښے ننوځي او کارغان او تپوسان هم ترے غوښه شوکوي داټول څیزونه چه روح ځے د انسان نه مغلوب وو د ده د مرګ نه پس په ده حکم غالب شول چه دوی د الهام الهٰی په ذریعه د دے خبرے نه واقف وی چه په انسان کښے د قوت او غلبے باعث د هغه روح دے دا د روح د برتری دلیل دے، هر کله چه بدن کمتر او روح برتر دے او کمتر د غذا د پاره قدرت انتظام کړے دے، د انسان د خوراک د پاره د غلو دانه هله جوړیږي، چه دے ټول جهان وسیع کارخانه په دے محنت اوکړي، ځمکه او اوبه بوټے د مزکے نه راتو کوي. هوا ئے تروتازه اوساتی، ستوري د هغے د نشوونما خدمت اوکړي، نمر ئے دانے پخے کړي تردے حده پورے چه د انساني بدن د پرورش د پاره نمر د سمندر نه بخارات اوچت کړي د هغه نه وریځ جوړه شي، او د باران په صورت کښے د اوبو انتظام اوشی، داټول انتظام د کمتر انساني جز (جسم) د غذا د تکمیل د پاره دے د حکمت خداوندی تقاضا دا ده چه د برتر جز (روح) د پرورش د پاره قدرت ضرور انتظام کړے دے دا حو کیدے نه شي چه د کمتر جز (بدن) د پرورش د پاره خو دومره لوئے انتظام وی او د برتر جز



(روح) د پاره د هیڅ انتظام نه وی د هغے مثال به بیا داسے وی چه په اس سور یو دئیس د چامیله شي، نوکور به د اس د کیا وغیره مکمل انتظام اوکړي، او د دئیس د خوراک څښاک وغیره هیڅ انتظام اونکړي، نو حکیم مطلق د بدن (سورلئ) نه ښایت د روح (د دئیس) د غذا انتظام کړیدے ځکه چه دواړه په خپلو خپلو ضرواتو کښ د غذا محتاج دی بدن او روح دواړه په دے عالم تغیر کښے استوګنه کوي او په خپل فرض پوره کولو کښے د غذا محتاج دی، ګله د ئے نه دی نو هغه خو به اس د لوږے نه مړے په بیه گرزیدے شي او نه په هغه سور دلورے نده په وجه د اس دا به قابو کولے شي بلکه کیدیشي په درځ خوړلو سره دواړه ختم شي. بدن زمیني دے نو د دے غذا هم زمیني ده او روح آسماني دے او د روح د عالم بالا سره دے لهذا د ده غذا هم لطیفه او د عالم بالا سره تعلق لرونکې ده او هغه غذا وحی رباني، کلام الٰهی یا قرآن دے. په دے کښے د غذا ټول اثبت د (میلان طبعي، او نشوونما) خصوصیات موجود دی. نکه د بدن غذا د خصوصیات په ډوډئ او غوښه کښے په دے ډول موجود دی چه د دے خوراک ته د انسان شوق کیږي کاترې او اوسپین خوراک ته ئی شوق نه کیږي، چه دا دواړه اوړه کړي او وے خوړي د غه رنګ په ډوډئ، غوښه کښ د نشوونما صلاحیت شته په کاترې او اوسپنه کښے نشته بلکه د هلاکت خطره ده. قرآن د روح غذا ئے روحاني ځکه دے چه په دے کښے دا دواړه خصوصیات موجود دی. میلان په دے ډول دے چه قرآن ډیر لوئے کتاب دے او بیا په اجنبي ژبه (عربي) کښے هم دے لیکن سره د دے خلق د دے تلاوت ډیر کوي دا یاد وي (حفظ کوي) او د دے یادښت د پاره ډیر وخت او تکرار و ترمرګه پورے کوي، د وخت او محنت دا قرباني د دے خبرے دلیل دے چه په قرآني غذا ئیت کښے روحاني کشش موجود دے ځکه چه دا د روح غذا ده، کچرے غذا ء

جسمانی نه وی نو دَ جسم مرګ لازمی دے. همدارنګ رُوحانی غذا چه نه وی نو دَ رُوح اصلی (حقیقی) مرګ یقینی دے. غذائے قرآنی نه حیاتِ حقیقی پیدا کیدل په دے آیت کښے ذکر دی

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ. ترجمه: اے مومنانو تاسو د الله او رسول خبره منئ ځکه چه تاسو

سورۂ انفال، رکوع آیت ۲۴ هغه (قرآن) طرف ته بلی کوم کښے چه ستاسو حقیقی ژوندا دے.

وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ. ترجمه: اعلان اُکړی چه دَ قرآنی سورۂ فاطر آیت ۲۲ غذا نه محروم مړه خلق هغه

خلقو سره برابر نه دی چاچه د قران غذا او روحانی نه حقیقی شوندیا موندلے دے.

# ۴: دلیل دوائی

په دے عالم تغیّر کښے د انسان په بدن او رُوح دواړو تغیّرات راځی د بدن دَ پاره دَ تغیّر سبب مخالفه آب وهوا، فاسده غذا، یا نامناسب فعل او حرکت کول یا څه بله حادثه وی همدارنګ دَ رُوح دَ پاره د مرضونو او تغیّرات اسباب ګنده، فاسقانه، ملحدانه مُشرکانه ماحول، خراب تعلیم، خراب تربیت، خراب قانُون او خراب افعال او حرکات دی، د دے دواړه قسمه بیمارو دَ پاره مُناسب ډاکټر یا حکیم ته رجوع کیدے شی بدن او دَ هغے دارُو درمل دواړه مادی څیزونه دی په دے وجه انسان په خپلو تجربو غور او فکر سره دَ بدن مرضونه معلومه وی او دَ هغے د صحت دپاره



د دا سے دارُو درملو او علاج تجویز هم اُکړی کوم چه قدرت دلته پیدا کړی دی، او په دے سلسله کښے په خپلو تجربو او کوشش سره دے دپاره قانُون هم جوړولے شی، لیکن رُوح انسانی، دَ هغے صفات او امراض ټول د انسانی تجربے د دائرے نه بهر دی نه ئے د مرضونو څه تشخیص کولے شی او نه دَ دے دَ پاره څه دارُو دَرمل تجویز کولے شی، رُوح بخپله امرِ ربّی دے، او صرف عالم بالا سره تړلے یو حقیقت دے لهٰذا د دے، علاج به هم دَ عالم بالا نه کیدے شی، چه په هغے د مرضونو ازاله کیږی زمینی علاج (دارُو درمل) پرے اثر نه غورځوی ځکه چه رُوح زمینی نه دے، د رُوحانی مرضونو علاج دَ بدنی مرضونو دَ علاج نه ځکه ډیر اهَم دے چه د بدنی مرض په وجه انسان وقتی طور مړ شی، مګر دَ رُوحانی مرض په وجه دَ انسان دائمی مرګ او هلاکت واقع کیږی، هم دا وجه ده چه خالقِ کائنات دَ بدن دَ علاج انتظام انسانی تجربو ته سپارلے دے لیکن رُوحانی علاج دپاره دَ انبیآء علیهم السلام په ذریعه ئے بخپله انتظام اُکړو چه هغه وحی الٰهی او کلامِ ربّانی بللے شی او د رُوحانی علاج دپاره مجرّبه او بے خطا نُسخه ده:

وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ (بنی اسرائیل ۸۲). ترجمه: مونږ قران نازل کړو چه په هغے کښے دَ رُوح علاج او دَ هغے دَ قوّت بخښنې سامان موجُود دے او یقین لرونکو دپاره دَ الله رحمت دے.

په دے وخت کښے دَ رُوحانی امراضو دَ ازالے او د دے د فیضانِ صحت دَ پاره بل څه علاج یا نُسخه په کائنات کښے موجود نه ده ځکه چه دَ مُهَيْمِنًا عَلَيْهِ، په رڼا کښے د قرآن نسخه دَ ټولو انبیاء علیهم السلام په ټولو رُوحانی نُسخو باندے مشتمله ده، او په دے کښی دَ ابدی رُوحانی صحت ابدی

اُصول موجود دی هم دا وجه ده چه یورپ خوَد علمونو انبار ونه
اُلوستل او دَ هغې په وجه دَ ترقئ آسمان ته اُختل لیکن دده رُوحانی
شِفا نه دَ محرُومیت په وجه دَ انسانانو شرافت نه محروم دی نه په دوی
کښې څه نیکی شته نه خُدا ترسی نه انصاف، نه اطمینانِ قلب او نه امن،
بلکه دَدوی دَ گنده او بیمارو رُوحونو په وجه دُنیا هره ورځ جهنم جوړیږی
او په دې کښې دَ فواحِشو، منکراتو او دَ بینوتو لو دلسے یو سیلاب په جهو
دے چه دَ هغې دخمید و هیڅ قسم اُمید نشته. دَ ټولے دُنیا دتباهئ خطره
ده حُکه چه خرابئ ورځ په ورځ زیاتیدودی۔

# ۵ دلیل نوُری

په دُنیا کښې دوه قسمه څیزونه دی، یو هغه چه په سترگو لیدلے کیدلے شی،
لکه دَ ځمکے نه تر آسمانه پورې څیزونه، دوئیم هغه چه په سترگو لیدلے نه
شی، صِرف په عقل معلومیږی لکه ایمان، کُفر، طاعت، معصیت دَ
انسانی اعمالو حُسن او قُبح۔ دَ دوهم قسمه څیزونو دپاره قُدرت دوه نُوره
پیدا کړی دی، یو داخلی نُور او بل خارجی نُور، داخلی نُور خو دَ سترگو نُور دے
چه انسان کښې دننه موجود دے، که دَ چا سترگے روڼه وی او دَ داخلی نُور نه
محرومه وی، نو هغه په مار او پړی کښې فرق نشی کولے
دوئیم خارجی نُور چه دَ انسان نه بهر دے، مثلاً، نمر، بجلی، لالٹین، دیوه
وغیره کچرے داخارجی نُور نه وی، اگرچه دَ سترگو بینائی درُسته وی
بیا هم هغه په توره تیاره کښې دمار او پړی فرق نشی کولے دواړه نُورونه
داخلی او خارجی چه جمع وی نو هله به علم او پیژندگلو حاصل وی:۔
دا رنگ د دوئیم قسم څیزونو دپاره هم دَ اندرُونی او بیرونی دواړه
قسمه رڼا اکانو ضرورت وی، اندرونی رڼا عقل او بیرونی رڼا دَ آسمان ده



دے دواړو ضرورت ځکه دے چه دایمان او کُفر، دنیک او بد، دَ خیر
او دَ شر پیژندگلو اُشی، هغه بیرونی رڼا دَ رُوحانی اُمورو دپاره کلامِ الٰهی
دے چه لکه دَ آسمانی رڼا (نمر) په شان یو بله آسمانی رڼا ده،
وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِیْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ ؕ او دوی د هغې رڼا تابعداری کړیده
سورۃ اعراف ایت ۱۵۷ ؕ کومه چه حضورؐ سره نازله شوېده۔

# ۶: دلیل حبی

انسان دَ بدن او رُوح مجموعه ده دَ بدن په وجه هغه دَ جسمانی محبُوباتو
مثلاً د خوراک څښاک او دمکان خواهشمند دے یا دده محبوباتو حاصلو
دَ ذریعے (مال دولت) خواهشمند دے، د دے څیزونو سره هم دَ انسان
محبت فطری دے، او خالق کائنات سره محبت هم فطری دے هم دا وجه ده چه
انسان په ټول تاریخ کښې دَ محبتِ الٰهی دَ تقاضا نه خالی نه دے پاتے شوے
دا بیله خبره ده چه کله دده فطری تقاضے صحیح او درست اظهار شوے دے
لکه دَ مؤمنانو او مُوحِدینو په شان یا غلط اظهار شوے دے، لکه دَ بُت پرستو
او مُشرکینو په شان چه هغوی غیر الله د الله تعالیٰ مظهر اُگنړلو او دَ هغې
عبادت ئې اُکړو، د دے دواړو صحیح او غلطو طریقو اصل محُرک هم دا فطری
جذبه (محبتِ الٰهی) وی تر دے حده چه دَ رُوس او چین خلق چه دخُدائے
نه منکر دی دده جذبے نه مجبُور شول ځکه چه دا خمولے نشی چنانچه هغوی
دده فطری جذبے د تسکین دپاره دلینن او ماؤ زے تنگ مجسّمے او تصویرونه
ځائے په ځائے نصب کړل چه دَ هغوی تعظیم دَ عبادت په صُورت کښې
جاری اُساتلے شی، ما په خپل بل یو کتاب، کمیونزم او اسلام کښې دکمیونستو
دا خبره نقل کړے ده چه دخدائے په ځائے بل یو مصنُوعی خدائے دَ خلقو
دپاره تجویز کول ضروری دی دَ دے دپاره چه دَ دے فطری جذبے تسکین بې

اُشي. لوډوی دا مقام خپلو مُحتا ژو مشرانو ته ور کړو. بهر صورت مُحبت الٰهی و فطری جذبه ده دے دپاره ذیو مظهر ضرورت دے چه د خدای دخو ښے او نا خو ښے تابعداری اُکړے شی کوم یُے چه خوښ وی هغه اُوکړ دا و کوم یُے چه نا خوښ وی هغه اُ نکړو. لکه څنګه چه د هر محبوب د محبت عامه تقاضا ده. اُ س د خدائے د خوښے او نا خوښے معلوموَل تر هغې نا ممکنه ده چه خدائے پخپله د خپل کلام په ذریعه نه وی خود لی څکه چه دیو انسان خوښی او نا خوښی تر هغې نشي معلومیدے تر څو چه هغه پخپله د هغې اظهار نه وی کړے لکه څنګه چه یو کوربه د میلمه د خوښے د خوراک انتظام تر هغې نشي کولے تر څو چه میلمه هغه نه وی نښکاره کړی، د الله ذات خو د دے نه هُم ډیر بلند و بالا دے. نو څکه د هغه د محبت تکمیل دپاره دا ضروری ده چه هغه موبز ته اُ ښائی چه فلانئ عقیدے، اخلاق اعمال او اقوال د هغه خوښ دی او فلانی یُے نا خوښ او دا تسم خود ل بغیر د کلام الٰهی نه نا مُمکِن دی دے دپاره د وحی او کلام الٰهی ضرورت دے چه د هغه د خوښے او نا خوښے عِلم حاصل شی هغه کلام قرآن دے چه د هغې نه ضرورت د قرآن ثابت شو.

# ۷ : دلیل اتباعی

په دنیا کښے اتباع او تابعداری موجوده ده، اولاد د والدینو، شاګردان د اُستاذانو، رعیت د حکومت ما تحت عمله د خپلو افسرانو او احسانمند د احسان کوونکو تابعدارا و فرمانبرداروی، دا صورتونه او د دے نه علاوه نور ټول د تابعدارئ صُورتونه فطری او معقول دی او د دے په وجه نظام تمدُّن قائم دے که چرے اولاد د والدینو تابعدار نه وی نو خاندانی ژوند به تباه شي، شاګرد د اُستاذ نافرمانه وی نو نظام تعلیم به ګډوډ شی، رعیت



د حکومت او ما تحت عمله دا افسرانو تابعدار نه وی نو د حکومت انتظام به تس نس شی. که زیرِ احسان د خپل مُحسن تابعدار نه وی نو د دنیا نه به دا احسان وجود هم ختم شی، په دے دُنیا کښے د هر څیز دپاره علت او سبب موجود دی دغه رنګ د دے مذکُورتابعدارو او فرمانبردارو د پاره هم د علت او سبب ضرورت دے، چه هغه (۱) احسان او اقتدار دے، په اولاد د والدینو، په شاګرد د اُستاذانو او په زیرِ احسان د محسنانو احسان د فرمانبردارئ او اطاعت فِطری سبب دے، او په رعیت د حکومت په ما تحت عمله دا افسرانو اقتدار د فرمانبردارئ فطری سبب دے د دے پنځو صورتونو نه علاوه نور د دے صورتونو نه د فرمانبردارئ هم شته مثلاً. عاشق د معشوق اطاعت کوی او عوام د اهل علمو مثلاً د امام ابوحنیفه امام بخاری رحمهما الله او یا د اهل معرفت مثلاً د شیخ عبد القادر جیلانی او د نورو بزرګانو رحمهم الله تعالیٰ تابعداری هم کوی د دے دواړو صورتونو سبب حُسن دے هغه حُسن ظاهری وی لکه د معشوق حُسن د عاشق دپاره یا هغه باطنی او معنوی وی. لکه د علماءِ دین او بزرګانو دین حُسن د عوامو دپاره لهٰذا د دے ټولو اطاعتونو اسباب او علتونه صرف درے دی.

(۱) قُدرت (۲) احسان (۳) حُسن

په انسان کښ چه په درے واړو هم علت موجود وی نو د هغه اطاعت کولے شی حالانکه دا د انسانی ذاتی خوبئ نه دی بلکه دا الله عطا او بخښش دے هر کله چه خُداوند تعالیٰ د دے درے واړو سرچشمه او جامع دے او د ټولو صفتونو د هغه ذاتی او قوی تر دی نو د هغه په دے اطاعت اُ نکړو شی فطرت غواړی چه د دا سے ذات اطاعت په خاص څاوی طریقه په دے شوے وی؟ هغه په دا وی چه د هغه وحی او کلام په د پیغمبرانو علیهم السلام په ذریعه انسانانو ته را اُرسی چه د دے لاره صحیح طور متعین شی، د دے وحی نوم

قُرآن دے چہ ھمیشہ دپارہ محفوظ دے، لھذا دنوع انسانی دپارہ دقُرآن ضرورت ثابت شو

# ۸: دلیل نفسیاتی

انسان کہ چرے دَخپل نفس او رُوح پہ آئینے نظر واچوی نو دَ کلام الٰہی یا دَ قرآن ضرورت پخپلہ ددہ زرہ، دماغ او دَ ضمیر خاموش آواز دے یو سلیم الفطرت انسان کہ ھغہ پہ صحرائے افریقہ کښے وی یا د آزاد قبائلو پہ غرونو کښے ھر کلہ چہ ھغہ یو بدکار مثلاً زنا یا قتلِ ناحق کوی نو د ھغہ دماغ او ضمیر دَ دے جُرم کولو نہ ضرور متأثر کیږی او ھغہ پہ خپل ضمیر کښے د دے، جُرم دا ثر یو قسم دڅوندوالے تکدُّر او انقباض محسُوسوی سرہ دَ دے چہ ھلتہ پہ دے فعل د دکوم گرفت کونکے ھیڅوک نہ وی نہ خو حکومت موجُود وی نہ خو عدالت یا پولیس او نہ پہ دغہ ځائے کښے څہ ضابطہ او قانُون نافذ العمل وی بلکہ دا علاقہ د ھر قانون نہ آزادہ وی، اُس سوال دا پیدا کیږی چہ پہ دے حالت کښے دَ دغے دڅوندوالی، تکدُّر، انقباض سبب څہ دے؟

کچرے دا اُووئیلے شی، چہ دہ جُرم کړے دے قانون ئے مات کړے دے نو دا سزا ځکہ غلط دی چہ ھلتہ نہ قانون شتہ او نہ دَ سزا اُدیرہ شتہ بیا دَ دغے تاثُر وجہ څہ دہ؟ ظاھرہ دہ چہ دا ددہ دَ ضمیر ھغہ خاموش آواز دے کُوم نہ چہ دے دا محسوسوی چہ ضرور دہ څہ قانُونات کړے دے کچرے ھلتہ انسانی قانُون نشتہ نو یو حقیقی او الٰہی ضابطہ دَ انسانی اعمالو دپارہ ضرور موجودہ دہ چہ پہ دغے جُرم د غہ ضابطہ ما تہ شوے دہ او ھغہ حقیقی او الٰہی قانُون چہ دکُوم نہ پہ خلاف کولو دہ مُجرم پہ ضمیر کښے دا تأثر پیدا شوے دے ھم دغہ کلام الٰہی یا پہ بلو ټکو کښے



قُرآن دے، چہ دَ ھغہ دقُرآن ضرورت پہ نفسیاتی تاثُرہ ثابت شو

# ۹: دلیل تخلیقی

عَالَم د یعنے اللہ نہ بغیر نور ټول مخلُوق صرف د دوُو څیزونو نوم دے انسان او خادم انسان، عالَم تخلیقِ الٰہی او فعلِ خداوندی دے نو بیا دے کښے بہ ضرور څہ حکمت وی. ځکہ چہ حقیر انسان بلا فائدے یا بلاحکمتہ ھیڅ یو کار نہ کوی، نو دَ ھغہ خالق بہ څنگہ بے فائدے او بے حکمتہ یو کار کوی مشھورہ دہ چہ فِعلُ الحَکِیمِ لَا یَخلُوْ عَنِ الحِکمَۃِ" اُس عقل دا ضروری گڼړی چہ دَ انسان یا دَ خادمِ انسان پہ پیدا کولو کښے حکمت شتہ، د خادمِ انسان حکمت خو دا ئے ظاھر دے چہ د عرش نہ تر فرشہ پورے ټول څیزونہ دانسان د فائدے، پرورش او خدمت دپارہ دی، زمکہ معدنیات نباتات، حیوانات، اور، اُبہ، ھوا، نمر او دَ ھغے گرمی او رڼړا، ستوری و غیرہ ټول د انسان پہ خدمت کښے مصروف دی، لکہ څنگہ چہ دَ قُران کریم ارشاد دے:-

وَ سَخَّرَ لَکُمۡ مَّا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ ط سورۃ الجاثیۃ آیۃ ۱۳ : ترجمہ: او تابع کړی دی ستاسو دپارہ ھغہ څیزونہ کوم چہ پہ آسمانونو او پہ زمکہ کښے دی،

خالق کائنات زمکہ او آسمان ستاسو پہ خدمت او پہ فائدہ کښے پہ دا سے زبردستہ جبری ذمہ داری لگولی دی، چہ پہ ھغے دَ نگران مقررولو څہ ضرورت نشتہ او نہ دَ انسان پہ خدمت کښے دَ سُستیٔ یا دَ غفلت څہ ویرہ شتہ لھٰذا دا واضحہ شوہ چہ دَ انسان نہ سوا ټول مخلوقات دانسان د خدمت او تربیت دپارہ پیدا شوی دی، کچرے پہ دے کښے یو څیز ھم موجود نہ وی نو انسان

ژوندے نه شو پاتے کیدے دا هم ثابته شوه چه د دے اشیاؤ د تخلیق مقصد او حکمت دا انسان ژوند قائم ساتل دی اُس دده ورکوتی انسان د تخلیق حکمت څه دے؟ هر کله چه کارخانهٔ عالَم دا انسان دپاره پیدا ده نو دا ضروری خبره ده چه انسان دعالَم دپاره نه دے پیدا د هغے دلیل دادے چه دا ټول عالَم که نه وے نو انسان ژوندے نه شو پاتے کیدے لیکن که چرے انسان نه وے نو عالَم باقی پاتے کیدے شو، خبره داده چه انسان اشرف المخلوقات دے د هغه د تخلیق مقصد به هم اشرف وی لکه څنګه چه اَس د خرنه اشرف په دے وجه دے چه د هغه مقصد هم د خرنه اعلیٰ دے. خلاصه کلام دا چه جهان انسان دپاره دے او انسان خالق جهان دپاره، هغه به د نائب خُدا او د خلیفهٔ خُدا په حیثیت هغه کارکوی چه د هغه دآقائے حقیقی کومے منشا وی، په دغے منشأ الٰهی به څخیله عامل وی او بل به پرے عامل کوی او دے ته ویلے شی عبدیت او بندګی:

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونَ ﴿سورة الذّٰریٰت آیة ۵۶﴾ : دپیریانو او بنی آدمو تخلیق دخالق کائنات دعبدیت او بندګئ دپاره دے په دے بندګئ کښے دخداوند تعالیٰ هیڅ فائده نشته او د انسان فائده پکښے داده چه هغه دخپل مقصدِ تخلیق تکمیل اُوکړی نو دحیاتِ ابدی دخوشحالونه به فیضیاب شی، اُس مقصدِ تخلیق یا منشأ الٰهی معلومولو د لوده پاره ضروری ده چه څخپله خالق د هغے وضاحت اُوکړی او هغه بغیر د کلام الله او وحی الٰهی نه ناممکن ده نو څکه د کلام الٰهی ضرورت ثابت شو چه هغه قرآن.

## ۱۰: دلیل ترحمی

رحمت او شفقت خُوبی ده، او د کمال صفات دی رحمت نه خالی کیدل نقص



دے، چه د هغے نه د الله ذات پاک دے دده وجے قرآن کښے ځائے پہ ځائے د رحمتِ الٰهی ذکر موجود دے په نورو آسمانی کتابونو کښے هُم او د عقل تقاضا هم دغه ده چه په خالقِ کائنات کښے دِ رحم ضرورئ، دا عالِم کائنات یوآئینه ده په دے کښے رحمتِ الٰهی صاف ښکاری، کائنات کښے صرف دوه څیزونه دی

(۱) مرحوم، او مُنعَم، په چا چه رحمت او انعام وی هغه انسان دے

(۲) رحمت او نعمت، دآسمانونو او د زمکے هغه ټول مخلوق چه دخداوند تعالیٰ دا اَرخه د انسان دپاره نعمت او د رحمت سامان دے،

وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا ۗ إِنَّ الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ ﴿سورة ابراهیم آیة ۳۴﴾ : که چرے تاسو دالله تعالیٰ نعمتونه شمیرل غواړئ نو نه شئ شمیرلے بیشکه انسان بے انصافه او ناشکره دے.

دالله تعالیٰ درحمت خوداحال دے، انسانی اعمال نه ټول خراب دی او نه ټول ښه دی، بلکه څه مُضِر او تباه کُن دی او څه مفید او نفع منددی، د دُنیا ټول قومونه په دے متفق دی چه انصاف ښه دے او ظلم بد، لیکن اعمال دا لطیف اشیاء دی چه په انسانی غور فکر یا لیبارټری د تجربه ګاه، کښے د هغے فائده نقصان نه شی معلومیدے دغه اعمال عام دی عقائد وی که اخلاق که عبادات که مُعاملات، که چرے په دے اعمالو کښے دالله تعالیٰ هدایت هُم نه وی او انسان په تباه کُن او زهرآلود عقائدو او اعمالو کښے مبتلا شی، او خالق کائنات صرف تماشه کوے نو دا به دده د شانِ رحمت نه خلاف وے لکه څنګه چه یو انسان ته دا علم وی چه په طعام کښے زهر ګډ دی بل بے خبره انسان ئې خوری او دے پرے غلے پاتے شی، نو دا به بے رحمی وی، دارنګ که چرے یو روند په ګنده یا کوهی کښے خپه آګدی او و دبرلیدُونکی، خو بینا انسان ګوری او پرے چپ پاتے شو نو دا بے رحمی ده، نو د احکم الحاکمین او ارحم الراحمین شان خو بے انتها اُچت دے هغه ګله دا بے کولے

شي چه انسان خود په مهلک او تباه کن اعمالو کښې مبتلا وي او دے ورپسې چپ وي، حالانکه انسانان بے خبره دي او دده ذات په هرڅه خبردار دے نو دده د رحمت تقاضا ده چه د هغه د جانبه یو داسې هدایت نامه موجود وي چه په هغې کښې د نجات د هغه او مهلکو عقائدو او اعمالو تشریح او بیلتون موجود وي، هم دا غه هدایت نامه کلام الهي یا قرآن دے چه دده انسان ته ضرورت دے.

# دقرآن صداقت او اعجاز

دقرآن د اعجاز یا د دے د معجز کیدو مطلب دا دے چه قرآن کلام الهي دے آسماني او رباني هدایت دے، دده علوم او معارف د الله تعالی د ذات علم و عرفان د لا محدود د سرچشمے ابدي قوانین دي د یو انسان د محدود او ناقص فکر او دماغ نتیجه نه ده او نه دا د انساني افکارو او نظریاتو په شان د وهم خیال، جذبات او خواهش نفساني نه اثر او تبدیلي قبلوونکو تصوراتو مجموعه ده، دا فطرت او حقیقت دے چه کله نه بدلیږي او نه په هغې کښې د غلطۍ څه ګنجائش شته نه د دے په قوانینو کښې د ترمیم او تبدیلۍ ضرورت شته او نه د ټولو بشري قومونو د حقوقو سره ترلې د عدل او انصاف د لوے لارے نه دا اوړیدو احتمال ممکن دے، چه د هغې متعلق د قرآن کریم پخپله ترتیب وار دعوے دا رنګ ده:-

لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ ط تَنْزِيلٌ مِنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ ؞ دقرآن په مطالبو کښې وړاندے وروستو هیڅ باطل د ننوتو هیڅ ګنجائش نشته سورۃ حٰم السجدہ آیة ۴۲ :، دا د هغه ذات نازل کرده کتاب دے چه د حکمت او دانایۍ سرچشمه ده او په ټولو صفات کامله د موصوف دے لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ه سورۃ انعام آیة ؞ په قرآن کښې د هیڅ ترمیم او تبدیلۍ ګنجائش نشته



وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا ط سورۃ انعام آیة ۱۱۵ ؞ قرآن هدایات په رښتینې او انساني عدل کښې پوره او مکمل دي اوس یواځې دا خبره پاتے شوه چه آیا دا رښتیا د الله تعالی کتاب دے یا د انسان ذهن د خوارۍ نتیجه ده. کچرے اوله خبره صحیح وي نو بیا به هر یو غیر الهي طاقت دده په وړاندے عاجزوي او دے کښې به هیڅ شک پاتے نه شي چه دا کلام الهي ... دے او کچرے دویمه خبره صحیح شي نو بیا به په دے کښې ضرور د شک وي چه دا کلام الهي دے او که نه؟ مونږ به وړاندے دا ثابتوو چه قرآن معجزه ده او ټول انساني طاقتونه دده د ټول څه چه د یو وړوکی جز (حصے) جوړولو نه هم پلتي دي، هم دا وجه ده چه دا کلام الهي او معجزه دے او دا لکه د نورو پیغمبرانو علیهم السّلام د معجزو په شان د یو وخت د پاره معجزه نه ده بلکه تل د پاره ده چه دده جواب دده منکرین تر قیامته هم نشي ورکولے او د یورپ عیسائي جارج سیل د دے خبرے نه پوره د شیني کیدے شي لکه چه هغه لیکي چه د یو انسان قلم د قرآن په شان معجز کتاب هیڅ چرے نشي لیکلے بلکه دا معجزه د مړو ژوندي کولو نه هم لویه معجزه ده " (تاریخ اسلام جلد ص ۳۲۷ از عبدالقیوم ندوي) د ټولو نه اول مونږ د قرآن د اعجاز او معجزے کیدو تشریح کوو چه په دے خبره پوهیدل آسان شي!!

## دمعجزے او اعجاز تشریح

په دنیا کښې څو مره څیزونه چه ظاهریږي د هغې ټول درے قسمه دي

(۱) عادیات (۲) عجائبات (۳) معجزات

## عادیات

عادیات هغه څیزونه دي د کوم چه تړون هغه مادي اسبابو سره وي چه عام خلق ئے پیژني لکه د غنمو کرلو نه غنم را ټوکیدل او د هغه کې

کولونه دقجورے اونه را تو کیدل، دَ دارُو په استعمال مرض لرے کیدل، دوه ئی خوراک سره لوبزه او اوبو ښلو سره تنده ماتیدل دَ تجارت نه گټه مونډل او په سامان جنګ سره برے موندل دا اُمورعادیه دی او دَ عامو رواج مطابق دی نه ذکر شوی نتیجے حاصلیږی

## عجائبات

عجائبات هغه دی چه دَ مادی اسبابو په نتیجه کښے پیدا کیږی، مګر دَ مخصوصو او ماهرینو نه بغیر عامو خلقو ته دَ دغے اسبابو او دَ هغے دَ پیدا شوو نتیجو هیڅ علم نه وی، مثلاً سائنسی نوی مصنوعات دَ مشین په زور اُوړګا ډے زغلول الوتکه الوځول، سمندری جهاز چلول، ریډیو سټیشنونه آوازونه اوتقریرونه خورول، میزائل، آټم بم او هائیډروجن بم جوړول دا ټول په عجائباتو کښے داخل دی، دارنګ سحری عملیات د مادی اسبابو د مهارت پیدا وار دی، لیکن دَ دے مخصوصو خلقو نه بغیر عام خلقو ته دا اسباب او په دے اسبابو دانږه نتیجے معلومه نه وی نو ځکه ورته دا څیزونه عجیبه معلومیږی، بیا په عادیاتو او عجائباتو کښے یو خاصیت مُشترک دے :-

## مشترک خاصیت

د دے دواړو قسمو په ټول نو رخلق هم جوړولے شی فرق صرف دومره دے چه په عادیاتو کښے دمهارتِ فن ضرورت نه وی، څوک هم چه غنم اُکړی، نو غنم ریبلے شی، لیکن عجائباتو کښے دَ مهارتِ فن ضرورت وی صرف یو ماهر انسان د هغے ایجاد کړی او نور په زرګونو ماهران ئے بیا جوړوی، لکه څنګه چه امریکے ایټم بم او هائیډروجن بم جوړ کړو بیا چین دَ دے په جوړولو کړو، دینه ثابته شوه چه عجائبات هم داسے څیزونه نه دی چه بل یو ماهر انسان ئے نه شی کولے نو ځکه دے



عجائباتو ته مُعجزه نشی ویلے :-

## مُعجزات

مُعجزات هغه دی چه ریبو خو په هیڅ قسمه عامو عادیاتو خاصو عجائباتو مادی اسبابو باندے اړ انږه نه وی بلکه دَ هغه وجود دَ خالق کائنات په مخفی قوت او مشیت اړانږه وی او دا بغیر دَ نبی علیه السلام نه بل هیڅوک نشی حاصلولے مثلاً الوتکه هم الوځی، او دَ سلیمان علیه السلام تخت هم الوتلو لیکن اوله معجزه نه ده او دویمه معجزه ده الوتکه هر انسان جوړولے او الوځولے شی لیکن د سلیمان علیه السلام تخت صرف په مشیت الٰهی الوتلو چه دا ټول نه خو چاوړاندے اُکړے شو نه اُس څوک کولے شی او نه به آئنده څوک اُکړے شی :-

## قرآنی معجزه ،بلاغی دلیل

په دنیا کښے دوه قسمه مصنوعات دی یو الٰهی مصنوعات لکه نمر، سپوږمئ وغیره او بل انسانی مصنوعات مثلاً موټر سائیکل وغیره اُس موږ چه غور اُکړو نو ښکاره غټ فرق دا دے چه الٰهی مصنوعات دانسانی طاقت نه بهر دی، او انسانی مصنوعات داسے نه دی بلکه بل یو ماهر انسان ئے هم جوړولے شی، مصنوعاتِ الٰهی نه خو بل انسان جوړولے شی نه دے دَ بارہ په دُنیا کښں کارخانے شته او نه خو په بازار کښے خرڅیږی هُم دغه حال دکتابو نو هم دے دانسان جوړ شوی کتابونه داسے نه دی چه د هغے په شان یا دَ هغے نه ښه بل څوک نشی جوړولے مګر دقرآن متعلق دادعوه ده چه دا دَ خالقِ کائنات دَ علم او قدرت نتیجه ده د دنیا ټول انسانان په جمع د دے په شان څه چه دَ دے دیوو ړوکی سورت الکوثر چه یو کر ښنے نه دی یات نه دے، پشان هم نشی جوړولے دلته هیڅ شک پاتے نه شو چه دا دالله تعالیٰ کلام دے، لکه څنګه چه هم په دے معیار قرآن

کریم پخپله د خپل اعجاز او د کلام الٰهي کېدو په باره کښې د عربو فصحاوُ او بلغاوُ ته د مقابلې دعوت ورکړے دے، فرمائي.

وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى : کچرے ستاسو په قرآن کښې دا شبه عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ : وی چه دا کلام الٰهي گوندی نه دے نو وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ : تاسو ټول یو ځائے شئ خپل ټول الله اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ سورة : امدادیان هم راوبلئ او د دے دیو البقرة آیة ۲۳، : وړوکی سورت غوندے یو بل سورت جوړ کړئ، کچرے تاسو پخپله دعوٰی کښې رشتینی یئ،

او دا ئے هم ورسره اُو فرمائيل:

وَلَنْ تَفْعَلُوْا ، سورة البقرة ، آیة ۲۳ ریعنے تاسو دا سے هیچرے نشئ کولے

په دویم آیت کښې دے نه هم زیات مضبوط ټکو کښ فرمائي:-

قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰى : کچرے ټول انسانان او جنّات د دے اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ : د باره جمع شی چه د قرآن مثل بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ : : جوړ کړی او را وړی، نو نشی راوړے ظَهِيْرًا ۝ سورة بنی اسرائیل آیة ۸۸ : اگرچه دا ټول په دے کښې د یو بل ملا تړ اُو کړی:-

په دے آیت کښې دا سے یو قوم ته خطاب دے د کوم چه په خپل ادبی قابلیت او په فصاحت او بلاغت باندے ناز وُو هغوی د قرآن دُشمنان وو او اوّل مقصد د هغوی قرآنی دعوٰی غلطول او ماتول وو او د اعلان د حضور علیه السلام په خوله مبارکه اُو کړے شو کوم چه اُمّی وو نه ئے شعر و شاعری زده وه او نه ئے فصاحت بلاغت کښې څه تجربه او مشق لرلو بلکه د دوی دا خلوبښت کاله عُمر دا سے تېر شوے وو چه د دغه ژبان په ماهرینو کښې د ده هیڅ شهرت نه وو په دا سے حالت کښې د دے اعلان د هغوی تاؤ نو



هم زیات کړو کچرے کېدے شوے نو هغوی به په ډېره آسانه قرآن او صاحب قرآن ته په دے سخته ماتے ورکړے وه چه کم از کم یو کرښه عبارت خو به ئے د قرآن پشان جوړ کړے وے، ځکه چه د قرآن پخپله هم دا اقرار دے کچرے دا سے اُو شو نو قرآن بیا کلام الٰهي نه دے او صاحب قرآن به د خُدائے رسول نه وے لیکن هغوی په خپل ادبی ذوق او د فطرت سلیمه په بنیاد د قرآن مثل جوړول ناممکن اُو گنړل او د دے آسانے لارے پرځائے د قرآن د مقابلے د پاره د جنگونو ډېره گرانه او طویل تر ینه طریقه اختیار کړه چه په هغے کښې ئے مالونه او ځانونه تباه کړل او څه خو پکښې د خپل ملک او وطن نه هم لاس اُو وینځلو سره د دے چه په دے کښې هم ورته کامیابی نصیب نه شوه، د تورے او خونریزئ د مالی جانی قربانئ ورکول او د ژبے او د قلم خوزولو آسانه طریقه پرېښودل د دے دلیل دے چه دوی سره د قرآن د دے چیلنج هیڅ جواب نه وو حالانکه دا هغه خلق وو چه د دوی د فصاحت او بلاغت جواب به تر قیامته اُو نکړے شی دا خود قرآن د اعجاز بلاغی دلیل دے چه ډېر صفا او آسان دے لیکن د یورپ وغیره مستشرقینو د اسلام د مقابلے د پاره صرف د غټو غټو الفاظو او معاوضو هضمولو په غرض بیا هم څو گړو بے بنیاده اعتراضات کړی دی هغه به موږ په وار وار نقل کوو او جواب به ئے ورکوو:-

## اوله شُبه

اوله شبه اهل استشراق دا کړیده چه کېدے شی د عرب فصحاوُ په دے وجه بل قرآن نه جوړولو چه دائی ضروری نه گنړله نه دا چه د بل قرآن جوړولو نه عاجز وو لکه چه یو انسان بیو یا رک ته خوځلے شی لیکن د غلته د تللو ضرورت نه گنړی. د دے جواب دا دے چه بیشک د نیو یارک سفر د پاره یو ځل قُدرت کافی نه

دے بلکه د تللو باعث هم ضروری دے، نو کچرے د قرآن په مثل راوړلو باندے د عربو بلغاء قادر روے، نو د دے نه بله نیا ته کومه موقعه کیدے شوه ځکه چه قرآن ته شکست ورکولو د پاره د دوی او د قرآن منونکو په مینځ کښے مقابله په دے وجه جاری وه چه قرآن د دوی د پلار نیکونو دین باطل کولو، نو د مقابلے ضرورت دے د پاره وو چه خپل پلار نیکه دین به ئے هم بچ کړے وے او د قرآن مثال پیش کولو سره به ئے په دے مذهبی مقابله کښے خپل حریف یعنی مسلمانانو او صاحبِ قرآن ته ماتے ورکړے وه، د قرآن په مقابله کښے دوی ته خپله بریالی دومره عزیزه او ضروری وه چه د هغے د پاره دوی بے کچه مالی او جانی قربانئ ورکولے چه په هغے جنګ بدر، اُحد، خندق او حنین واقعات او په قرآن منونکو باندے په مکه معظمه کښے د دوی هغه ظالمانه کارنامے ګواهانے دی، هغوی په دے سه پوه وو چه قرآن ته په ماتے ورکولو به د هغوی دین بریالے شی او د هغوی د فصاحت بلاغت بے مثلی به هم اُچته شی او د دے مذهبی جنګ بو فریق (مسلمانان) به هم خوار او زار شی اُس دلته دا شبه داسے عبث ده لکه څنګه چه په صحرا کښ د تندے نه مړ سړی په باره کښے اُویلے شی چه دے خو تږے وو یه اُوبو څښلو ئے قدرت هم وو لیکن د اُوبو څښلو ضرورت ورته نه وو (آفرین به فکرِ غلام جان) د دے نه علاوه حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله تعالی د آریه سماج بانی پنډت دیانند ته د مناظرے چیلنج ورکولو نه پس هر کله چه هغه ته ورغلو، نو هغه نه د حضرت مولنا علمی مقام په ډیر مبو مناظره کښے بنکاره شوے وو نو جوپت انکار ئے اوکړو او وے ویل چه ما اراده د مناظرے نه ده کړے نو حضرت مولانا اُوفرمایل چه اراده خو د اختیار شے دے که اول دے نه وه کړے اُوس ئے اُوکړه به دے خبره هغه خاموش شو دا حال د دے شبے هم دے، موږ وایو کچرے



مشرکین مکه د نظیرِ قرآن پیش کولو اراده نه وه کړے، نو د عراق مصر شام لبنان او د بیروت هغه ګنړ شمیره عیسایان د اُس د قرآن د نظیر پیش کولو اراده اُکړی، ځکه چه د هغوی مورنئ ژبه عربی ده او په دے ژبه کښے دوی ګنړ شمیره کتابونه لیکلی دی او په ډیرو جلدونو کښے ئے عربی لغتونه جوړ کړی دی، د عربی ژبے لوئے لوئے شاعران هم دی عیسائی، غټ غټ حکومتونه او قومونه کروړونه روپئ هر کال د قرآن او د اسلام په خلاف خرڅ کوی. که د قرآن نظیر پیش کول آسان وے نو دے دومره کړانے مقابلو او منصوبو په ځائے به ئے دا کړی وو لیکن ممکنه ده چه عیسائی قومونه خو سپوږمئ ته اُرسی مګر دا هیچرے نشی کیدے چه دوی د قرآن ما تونے پیش کړی:

## دویمه شبه

اهل استشراق دا دویمه شبه کړے ده چه کیدے شی د عربو فصحاؤ سره هغه اسباب موجود نه وو کوم چه د قرآن جوړولو د پاره ضروری وُو، دا شبه هم ځکه بے ځایه ده چه د یو څیز جوړولو د پاره ضروری اسباب صرف څلور څیزونه دی (۱) قدرت یا مهارت (۲) ماده یعنی هغه مساله کومه نه چه دا جوړیږی (۳) باعث او محرک، یعنی داسے مقصد چه د دے په جوړولو آماده کوی (۴) نمونه د هغه څیز چه کوم جوړول غواړی مثلاً د میز جوړولو د پاره اول دا ضروری ده چه جوړونکے دے ترکانړ او لوهار وی د دے قدرت او مهارت ولری، یو عام سړے ئے نشی جوړولے،

دویم:- دا چه لرګے و۔ موجود دی، ځکه چه بغیر لرګی میز نشی جوړیدے

(۳) دریم:- څیز هغه باعث دے چه په کوم د میز جوړولو مقصد حاصلیږی مثلاً د میز قیمت حاصلول یا پخپله د هغے د استعمالولو ضرورت،-

(۴) څلورم:- څیز د میز نمونه ده:-

زا خو ظاهره ده چه د عرب فصحاؤ سره دا خلور واړه اسباب موجود وو ان اول قدرت او مهارت د دوی خود دمره وو چه د نظم او نثر دواړو صورتونو کښې د دوی جواب نه وو کړے دوی هم دغه مشغله وه، ما ده د قرآن هغه اته ویشت حرفونه دی، چه هغه هم موجود وو او د دوی بتول کلام د دے نه جوړ وو، د بل قرآن جوړولو باعث او محرک هم دوی سره موجود وو ځکه چه د قرآن مقابلے ته پاره هغوی سرونه په تلی کښے ایښی وو، چه د دوی لوړ دین محفوظ شی۔

(۴) څلورم دا چه نمونه د قرآن هم موجود وه نبی علیه السلام ورته بار بار قرآن آورولو، بلکه د دا سے قرآن جوړولو د پاره ئے ورته چیلنج ورکړے وو، نو ځکه دا شبه هم بے ځایه ده۔

## دریمه شبه

دریمه شبه دا ده چه کیدے شی، فصحاؤ د عرب د قرآن ما ثون جوړ کړے وی خو مونږ ته نه دی دا رسیدلے، ذا هم صرف د ما شوما نو خبرے دی، ځکه چه د غه وخت کښے سوا د څو کسانو نور ده ټوله دُنیا د قرآن خلاف وه او اُس هم د قرآن منونکو په نسبت د قرآن د مخالفینو شمیر په دُنیا کښ ډیر زیات دے هرکله چه د د غه وخت هغه لږ مؤمنانو قرآن تر موجوده د مؤمنانو ا رسولو نو ډیرو مخالفینو د دغه وخت د موجوده وخت دے ډیرو مخالفینو ته ولے را نه رسولو؟ دا د دے خبرے دلیل دے چه دا سے هیڅ نه وو شوی ځکه خو بنکاره قدرے هم نه شوه،

## څلورمه شبه

څلورمه شبه دا سے ده چه یو سائنس دان یو نوے څیز ایجاد کړی بل سائنسدان دا سے نشو کولے دا د دے خبرے دلیل نشی کیدے چه د قرآن په مثل بل نه جوړیدل د دے معجزه ده، د دے جواب دا دے چه نو مصنوعات کښے څیزونه دی چه



چه یو ما هر ئے جوړ کړی بل ئے خواه مخواه جوړه ولے شی او قرآن کښے ونه دے ځکه خو تراوسه چا جوړه نکړے شو۔

## پنځمه شبه

پنځمه شبه دا ده چه د قرآن او سحر یو مثال دے سحر هم بغیر د ساحر نه بل څوک نشی کولے نو ځکه دا د خالق کائنات فعل او معجزه نشی گنړلے، د دے جواب دا دے چه سحر او معجزه کښے د زمکے آسمان فرق دے سحر کسبی او د اسبابو لاندے دے اگر چه دا اسباب بنکاره نه دی که بل څوک هم د هغے اسباب استعمال کړی نو هغه هم د سحر عمل کولے شی لکه چه په هره زمانه کښے ډیر ساحران موجود وی د موسیٰ علیه السلام د همسا کار کسبی نه دے نو ستی د دے اقراریان شول چه دا معجزه ده۔

## شپږمه شبه

شپږمه شبه دا ده چه اهل استشراق وائی چه د پیغمبر علیه السلام فصاحت او بلاغت بے مثله وو ځکه بل چا د دے مقابله نشوه کړے کوم چه هسے خو قرآن د محمد صلی الله علیه وسلم کلام دے د دے جواب دا دے چه عربو پخپله ولے دا شبه پیش نکړه چه هغوی د قرآن اولنی بدتریل دُشمنان وو د هغوی نه اهل استشراق زیات خبردار دی، بلکه دا تیر شوی ټول شبهات هر کله چه پخپله فصیحا نو د عرب پیش نکړے نو معلومه شوه چه ټولے غلط او بے ځایه دی۔

دوییمه وجه دا ده کچرے قرآن د رسول الله صلے علیه وسلم کلام وے نو د هغه په احادیثو مبارکو او قرآن کښے به بیا هیڅ فرق نه وو، ځکه چه هغه د ذات او شان په احادیثو کښ قطعًا نشته کوم چه په قرآن کښے موجود دے د لته مستشرقین بل مذ، پیش کوی چه د نبی علیه السلام کلام دوه قسمه وو یو فوری بے تیاری چه معمولی به وو بل د تیاری او غور و فکر والا چه هغه به بے مثله وو، نو دا عذر هم ځکه غلط دے چه ډیر کرته یو سائل تپوس کړے

ظاهري ونه هم کار کيدے شي، او معجزه غير اغلبه نه ده۔ "ډاکټر وارډ" "سسټم آف لاجک" کښے ليکي چه د بيابان په ذرو کو تو کښے کچرے د پنځه ويشتو کنجيانے ملاؤ شي نو دا ضروري نه ده چه د نهو سوو ښځه او يا ډو کنجيانے د هم د غسے وي، مطلب دا دے چه علتونه او اسباب چا بيانے ري چه انساني عقل معلومه کړي دي او کوم اسباب چه نامعلوم دي هغه نسبتاً ډير زيات وي، لهٰذا د هرے واقعے حل د دغے معلومه علتونو په کنجيانو پرانستل صحيح نه وي، "پروفيسر هکسلے" ليکي، چه مونږه د فطرت حد بندي نه شو کولے، د دے مطلب دا دے چه مونږ په فطرت دا پابندي نه شو لګولے چه د کوم قانون د لاندے هغه ذات کار کړے دے نو د هغے نه بغير ئے نه شو کولے" د انګلستان وليم جيونس ليکي چه" په کارخانه فطرت کښے خُدای اوندی مُداخلت نه مونږ باطل نه شو ثابتولے د کائنات نو خالق کمول او زياتول هم کولے شي، دا سے رائے د مغرب د ډيرو فلسفيانو ده او علما به تر ذهم دا رائے څکه صحيح کيدے شي، چه د قانونِ تعليل بنا په ناقص لټون ده چه هغے نه يقيني علم نشي حاصليدے، او د ټولو سائنسدانانو منلے شوے قانون دے چه تجربه او لټون چه پوره محيط نه وي نو هغے نه يقيني علم نه شي حاصلے دے، مثلاً څو مونږ په تجربه کښ چه څومره اور د ونه را غلي دي نو هغه سوزول کوي خو بيا هم آيا مونږه د ټولو اور د ونو تجربه کړيده او د هغے اور هم مونږ تجربه کړيده څه چه کوم کښ حضرت ابراهيم عليه السلام غورزولے شوے وو، کچرے نه موده کړے نو دا ناقص لټون شو چه د هغے نه د آتش ابراهيمي، فيصله نشي کيدے د دينه علاوه هر علت چه کوم يو معلول پيدا کوي نو د خپل هومره طاقت په ذريعه ئے پيدا کوي چه۔

..



کوم ده کښے موجود وي خو دا قوت د خالق کائنات بخشش او ورکړه ده چه هغه ئے اغستے هم شي چه ئے واخلي نو ده هغه صلاحيت ختم شو او په دا سے علت باندے بيا معلول هيڅرے نه شي مُرتَّب کيدے، هم دغه رنګ کچرے يو معلول بغير د علت نه موجود شو مثلاً په عصائے موسیٰ عليه السلام سره د سمندر بيليدل دا هم د خالق فطرت کار دے چه په همسا کښ ئے د بيلولو طاقت کيښود و کوم ذات چه به دے کښے ورا ند ے دا طاقت نه وو اپښودے نو دے وخت دا معلول با علت شو نه چه معلول بے علته، دا خو مونږ د فلسفے مطابق ليکل اوکړه، ورنه اصل جواب خو دا دے چه د علت معلول خبره بالکل غلط ده خالق فطرت چه څنګه غواړي هم هغسے کولے شي، کله د علت معلول مطابق کار اوشي نو تاثير او طاقت اپښودونکے هم دغه ذات دے، او کله بغير د دے نه چه اوشي هغه صرف په ارادهٔ الٰهي کيږي اصل څيز ارادهٔ الٰهي ده، معجزات هم ارادهٔ الٰهي سره څکه تعلق لري چه دا صرف افعالِ الٰهيّه دي او دغه د خدائے او د انسان مينځ کښے فرق دے، چه انسان يوازے د عمل اراده نه کوي بلکه ارادے سره هغه اسباب هم استعمالوی مثلاً يو انسان په اوبو باندے ګرځيدل غواړي نو دا به يوازے په اراده نه بلکه دے سره به هغه په دے خوځي او اوبه به څنبي نو هله به مري ځو خالق فطرت دا سے نه دے د هغه اسبابو نه ضرورت نشته بلکه د هغه ټول کار د و نه صرف د هغه دارادے تابع دي۔

إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ۔ سوره يٰسٓ رکوع ۵ آيه ۸۱

کښے هم دے مضمون ته اشاره ده، آيا آسمانونو او زمکه جوړولو کښ صرف ارادهٔ الٰهي کافي نه وه کومزدورانو څه ضرورت هم پيښ شوے وو؟ هيڅرے نه د غه معامله د معجزانو ده چه هغه د عادي اسبابو نه بغير صرف په ارادهٔ الٰهي سره وجود ته راغلے دي،

## آتمه شُبه

اهلِ استشراق وائي چه که چېرې قرآن معجزه وی، نو دا به وحيِ الٰهي وی دا پخپله او دد ے په ذريعه دَ عُلُوموالقاء دعقل نه بهر ده، دد ے رُو مبے جواب خو دا دے چه پخپله په بائيبل کښے دا انبياء عليهم السلام وکړ وحی ذکر موجود دے نو وحی او نبوت دا دواړه دا سے اُمور دی چه اهل کتاب (يهود او نصاریٰ دواړه لے) مني صرف دَ پيغمبرِ اسلام دپاره د منلي شوي حقيقت نه انکار محض ضد او عِناد دے.

دوئيم جواب دا دے، چه دَ الله تعالے د جانبه دَ پيغمبر په زړه باندے دَ الفاظو يا دَ معاني القاء بالکل معقوله خبره ده چه دد ے اثبات دَ مسمزيزم دَ عمل نه کيږی کُوم چه يو روحاني عمل دے، صاحب د مناهل العرفان په علوم القرآن کښے ليکلی دی، چه عيسائي مبلغين زکوموته چه مبشرين هم ويلے شی، مصر ته راغلل او په ليوځوان باندے دَ تنويم مقناطيسي عمل اُکړو، د هغه نه ئې اول دَ خپل نُوم تپوس اُکړو هغه ورته خپل اصلي نُوم اُ ښودو بيا دغه عامل هغه معمول ځوان ته توجّه اُکړه اووے ويل چه دا نُوم ستا نه دے بلکه ستا بل نوم دے په دے عمل ئے هغه د ذهن نه اصلي خپل نُوم لرے کړو او بل فرضي نوم ئې د هغه په ذهن ورا تپلو او دَ دے عمل په ذريعه نورے خبرے هم دَ ده په ذهن کښے واچولے نتيجه دا شوه چه دَ هغه ځوان په ذهن کښے دغه الفاظ او علوم دا سے کلک پريو تل چه دَ عمل اثر دختمېدو نه پس هم په کښ پاتے شول دينه معلومه شوه چه انسان په يو مخفي طريقه دَ بل انسان ذهن ته الفاظ راآړولے شی نو آيا خدائے پاک دَ يو منتخب رسول ذهن ته دَ وحی الفاظ او قُرآن نه شی راآړولے؟

درېيم جواب دا دے چه تيپ ريکارډ دا حقيقت نور هم ډيرآسان دا سے



کړو چه انساني الفاظ يو بے رُوحه ټيپ ريکارډر ته دا سے اَړولے او پکښے ئے محفوظ کولے شی نو آيا خُدائے پاک دا نسان نه هم عاجز دے چه يو بے روحو آلے ته هم نه بلکه دَ يو منتخب نبی ذهن ته وا نه وړی او په هغے کښے محفُوظ کړی؟

سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰىٓ : سورة ؛ مونږ به ستا په ذهن کښے دَ وحی الفاظ واچوُو چه هغه به ته نه هيرَوَے.

اعلیٰ آية عـــ

اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ؛ ستا په ذهن کښے دَ وحی الفاظ جمع کول بيا سورة قيامة آية عـــ ؛ په تا باندے لوَلوَل خمونږ ذِمه واری ده

## نهمه شُبه

اهل استشراق وائي چه دَ قرآن مضامين په ترتيب نه دی، نو ځکه دا اعجاز نه شی کيدے، دد ے رُو مبے جواب دا دے، لکه څنګ چه شاه ولی الله رحمه الله بيان کړے دے، چه قُرآن د نورو مصنفينو په طرز نه دے بلکه دَ قديم عربو د دستور په طريقه دے لکه چه د سبعه معلقات" په يو قصيده کښے کنړ مضامين بيانيږی کله پکښ دَ محبت اظهار، کله د باران تعريف او کله دَ آس د تيز تګ بيان اوګويا که قُرآن يو شاهي مکتوب دے په کوم کښے چه يو کور نوته دَ ډيرو څيزونو دَ انتظام حکم ورکوی چه په هغه کښے ترتيب لټول څه عقلمندی نه ده.

دوئيم جواب دا دے چه د مصنفينو په شان څنګه ټول مضامين په بيل بيل باب کښ نه موجُود کول څه نقص نه دے بلکه دا يو بيل قسم اعجاز دے چه هر کله دا کتاب د يځه د خدائي نه کتاب ګڼل دا انسان جوړ کړے نه دے نو دے شان په ترتيب کښ هم د نورو مصنفينو نه بيل دے ځکه چه دا انساني کتاب نه دے، نو په دے کښے به خامخا دا انساني ترتيب پيښے شوے وے

درېيم جواب دا دے لکه څنګه چه امام رازی رح په تفسير کبير کښ ليکلی دی چه قرآن پخپله معجزه ده چه دَ هغے ترور ترتيب هم يو بيوزه معجزه ده

اوډ ترتیب د اقسم اعجاز ئے د پول قرآن لاندې ما بیان کړے دے، نور دو مفسر بنوری همد غے کړے دی لکه "بیان القرآن" "سبق الغایات فی نسق الآیات" کښے د ترتیب قرآن چه بیان شوے دے او اهل استشراق په سترګو پټے لګولی دی او دا نه ګوری، احقر په دے ډول د قرآن د آخری منزل تفسیر په عربی کښے جمع کړے دے چه د چاپولو نګران دے او تر اوسه چاپ شوے نه دے :

(۴) څلورم جواب دا دے، چه په قرآن کښے بے ترتیبی چه چا ته ښکاری دا د هغه د نظر قصور دے، ځکه چه د قرآن مقصد یواځے تعلیم نه دے، بلکه تعمیل (عمل کول) هم دی چه انسانی ضمیر د عمل کولو د پاره تیار شی چه د هغے د پاره قرآن کله د امر او نهی نه پس د جنت او دوزخ او د هغے د نعمتونو او تکلیفونو ذکر دے د پاره کوی چه د تعمیل حکم نتیجه به جنت او د هغے راحتونه او عدم تعمیل نتیجه به دوزخ تکلیفات وی کله الٰهی اوصاف دے د پاره ذکر کیږی چه د الله تعالیٰ لوئی په زړه کښے کینی شی، او مینه یه زور انسان د حکم تعمیل ته تیار شی، کله په انسان د خپلو نعمتونو ذکر کوی د دے د پاره چه دے شرمنده شی او د دے د حکم عمل ته آماده شی، کله هغه قصے او واقعات ذکر کوی په کوم کښے چه به تا یعدارو مومنانو باندے انعام شوے وی، او په نافرمانو عذاب نازل شوے وی دا دے د پاره چه د انسان میلان او رغبت د فرمانبردارئ ته وی او د نافرمانئ نه دے نفرت اوکړی که وی دا خلور اصول معلومه وی، نو په قرآنی مضامینو کښے به د بے ترتیبئ شك هیڅ رنګ هم پیدا نشی :

## لسمه شبه

اهل استشراق وائی چه د قرآن په بعضے آیتونو کښے د عربی ژبے د علمو قاعدو نه خلاف شوے دے چه هغے ته "لحن" ویلے شی، او دا اعجاز نه خلاف دے لکه چه عروه رض



د حضرت عائشے رضی الله عنها نه روایت کوی، چه ما د هغے نه د لحنِ قرآن په باره کښے تپوس اوکړو مثلاً (۱) اِنْ هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ سوره طٰهٰ آیة ۶۳ (۲) وَالْمُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَیْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَالْمُقِیْمِیْنَ الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ سورة النساء آیة ۱۶۲ :

(۳) اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِیْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِئُوْنَ سورة المائدة آیة

نو هغوی اوفرمائیل :

یَا ابْنَ اُخْتِیْ هٰذَا عَمَلُ الْكُتَّابِ اَخْطَأُوْا فِی الْكِتَابِ رَوَاهُ اَبُوْ عُبَیْدٍ فِیْ فَضَائِلِ الْقُرْاٰنِ وَاَخْرَجَ ابْنُ الْاَنْبَارِیِّ فِیْ كِتَابِ الرَّدِّ عَلٰی مَنْ خَالَفَ مُصْحَفَ عُثْمَانَ عَنْ عِكْرِمَةَ لَمَّا كُتِبَتِ الْمَصَاحِفُ عُرِضَتْ عَلٰی عُثْمَانَ فَوَجَدَ فِیْهَا حُرُوْفًا مِّنَ اللَّحْنِ فَقَالَ لَا تُغَیِّرُوْهَا فَاِنَّ الْعَرَبَ سَتُقِیْمُهَا بِاَلْسِنَتِهِمْ :

ګویا کښے دے ذکر شوی آیتونو کښے بظاهر چه لحن د بے قاعدګئ ښکاری د حضرت صدیقے رض نه چه تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه دا د کاتبانو غلطی ده، د دویم روایت نه معلومیږی چه د قرآن لیکلے شوے نسخے چه حضرت عثمان رض ته پیش شوے نو هغوی اوفرمائیل چه دے کښے غلطئ شته، لیکن عرب به هغه په خپلو ژبو سره صحیح کړی،

د دے شبے د رد جواب دا دے چه دا دواړه روایتونه ضعیف الاسناد منقطع او مضطرب دی، علامه آلوسی رح فرمائی چه دا روایت د حضرت عثمان رض نه ځکه صحیح نه دے چه د دے دواړو سندونو په مینځ کښے ډیر روایتونه موجود دے، چه حضرت عثمان رض هر کله چه د دے نسخے د قرآن اولیدے نو وے فرمائیل، بِاَنَّهُمْ اَحْسَنُوْا وَاَجْمَلُوْا، مطلب دا چه لیکونکو صحابه کرامو رض ډیر په ښائسته طریقے دا مرتب کړے دی، نو د دے نه پس بیا دا څنګه ویلے شی چه په دے کښے غلطئ دی ؟ :

د صحابي رض په يو روايت کښې د ښه او بد و جمع کيدل د دے جوګه دي چه دا روايت د منلو قابل نه دے، البته حضرت عثمان رض په دغه نسخو کښ صِرف د دريو ځايونو تصحيح[۱] کړې وه.

(۱) لَمْ يَتَسَنَّ ئے لَمْ يَتَسَنَّهْ کړلو سورة البقرة آية ع ۲۵۹

(۲) أَمْهِلِ الْكٰفِرِيْنَ ئے مَهِّلِ الْكٰفِرِيْنَ کړلو، سورة الطارق آية ع ۱۷

(۳) لَاتَبْدِيْلَ لِلْخَلْقِ ئے لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ کړلو سورة الروم آية ع ۳۰

هرکله چه هغوئ د قرآن د تصحيح دومره فکر کولو چه يو معمولي غلطي ئے هم درسته کوله نو په مذکور روايت څنګه اعتبار[۲] کړے، شي چه د لحن او غلطئ اقرار کولو سره به يا هم هغه پخپل حال پريښودہ چه د عقل نه خلاف دہ لهٰذا دا روايت د عقل او نقل دواړو نه خلاف دے چه د قبلولو جوګه نه دے.

(۲) دويم جواب دا دے، چه د لحن نه مطلب هغه رسم الخط دے چه د عام رسم الخط نه خلاف وي ابو عبيده به فضائل القرآن کښے ليکلي دي، چه د لحن معنی د مشهور رسم الخط نه خلاف کول وي، لکه لَا اَذْبَحَنَّهٗ او لَا اَوْضَعُوْا خِلٰلَكُمْ.

(۳) دريم جواب دا دے، چه لحن نه مطلب طرز تلفظ دے، نه غلطي، لکه وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ، سورة محمد آية ع ۳۰.

أے نَهْجُ التَّلَفُّظِ مَثَلًا اَلصِّرَاطَ بِالصَّادِ الْمُبْدَلَةِ مِنَ السِّيْنِ[۳]

کوم دومره غلطئ يا بے قاعدګئ چه ذکر شوي دي د هغه دوئمے جواب دا دے کيږي به قرآن کښے د عربو د قاعدو نه خلاف څه لفظ وے نو د قرآن مخالفينو به دغه رنګ غلطي خامخا په ګوته کړے وے او د قرآن اعجازيه مات کړے وو او فتح به ئے حاصله کړے وه، چه هغوئ دا ہيے[۴] نه کړل.

[۱] مناهل العرفان جلد صـ ۳۸۹ [۲] مناهل العرفان جلد ۱ صـ ۳۸۲ [۳] مناهل العرفان صـ ۳۸۰



نو دا شبه نامعقوله ده، بيا هم څه په وار وار د دے جواب ورکوم:
اِنْ هٰذٰنِ د قاعدے په موجب اِنْ هٰذَيْنِ پکار وو حکم چه "اِنْ" نصب ورکوي:

(۱) نومړوے جواب دا دے چه قاعده د ژبان تابع وي او هر ژبه هغه نه جوړه شوي وي، قرآن چه کومه طريقه استعمال کړے ده دا هم په عربو کښے د کنانه بَنِي الحارث قبيلے لغت دے، تثنيه په دواړو حالتو نو کښې به الف سره لولي لکه چه مناهل العرفان کښې موجود دي.

(۲) دويم دا چه "اِنَّ" په ضمير شان مقدر کښے عامل دے چه "اِنَّهٗ" دے او هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ په خپلو کښے سره مبتدا او خبر دي.

(۳) دريم دا چه د هٰذٰنِ الف زولاړ زور سٰحِرٰنِ سره د مناسبت په وجه دے، لکه سَلٰسِلَا، وَاَغْلٰلًا (سورة دهر آية ع ۴) او دا هم يو قاعده ده لکه څنګه چه د قرآن په آيت مِنْ سَبَاٍۭ بِنَبَاٍ يَّقِيْنٍ، د سَبَاٍ کسره او تنوين د "نَبَاٍ" د مناسبت د وجے دے:

(۲) د وَالْمُقِيْمِيْنَ، منصوب کيدل د مدح په بنا دي،

(۳) وَالصّٰبِئُوْنَ، مرفوع کيدل يا خو د مبتدا کيدلو په وجه دي چه د هغے خبر محذوف وي، يعنے وَالصّٰبِئُوْنَ كَذٰلِكَ يا عطف دے په محل د اِنَّ سره د اسم د هغے او يا عطف دے د "هَادُوْا" په ضمير مرفوع باندے

## يوولسمه شبه

يوولسمه شبه دا ده چه بعضے انيسانانو هم بے مثاله کلامونه په عربئ کښے جوړ کړي دي لکه مسيلمة الكذاب، ابن الراوندي الزنديق، ابو العلاء المعري ابو الطيب المتنبي او د فيضي تفسير بے نقطه چه د هغه ټول حروف بے ټکو (نقطو) دي مثلاً ا - ح - د - ر - س - ص - ط - ع - ک - ل - م - و - لا - هـ - ی، نو دا شبه ځکه بے ځايه ده چه د

## دفیضی تفسیرِ بے نقط

فیضی دا تفسیر بخپله دَ فیضی په نظر کښے معجزه نه ده او دَ بِتولو بلیغانو په نظر کښے هُم دا سے کار دَ مُتنبّی نه شپږ سوه کاله وړاندے په عربو کښے یو معمول او عام شے وو۔ دَ فیضی نه ډیر وړاندے په مقامات حریری کښے دا سے عبارتونه موجود دی چه بعضے خالص په حروفِ مُهمله کښے او بعضے په حُروفِ معجمه کښے او بعضے عبارتونو کښے یو لفظ دَ حروفِ مهمله (بے نقطو) او دریم لفظ دَ حروفِ معجمه (نقطه دار) دے، دَدے نه علاوه چه فیضی خپل دا کار دقرآن مقابله نه دے گنړلے او نه ئے دا دعوے کړے ده، بلکه هغه تر آخر عُمره دقرآن دَ اِعجاز قائل پاتے شوے دے او په خپل هم دغه تفسیر کښے دقرآن اِعجاز او تعریف په زوردارو الفاظو کښے پیش کړے دے لکه لیکی:۔ کَلَامُ اللّٰهِ لَا حَدَّ لِمَحَامِدِهٖ وَلَا عَدَّ، دا الله کلام دا سے دے چه دَ هغے د تعریفونو لِمَکَارِمِهٖ وَهُوَ مَاءٌ لَا سَاحِلَ لَهٗ؛ هیڅ حد نشته او دَ هغے دَ فضائلو شمیر هم نشته دا دا سے سمندر دے چه غاړه ئے نشته، دَ فیضی دَ دا سے اِقرار با وجُود هغه تفسیر سواطع الالهام اِعجاز گنړل مدعی سست او گواه چُست جوړیدل دی۔

## دَ مسیلمه ټوکړے

دَ فیضی نه علاوه دَ مُسیلمه هغه ټوکړے چه په هغې کښے دا انسانی هدایت نُوتنی تلاش هم نشته نه خو هغه بخپله دغه دقرآن پشان معجزه گنړلے ده او نه بل چا گنړلے ده، بلکه هیڅ یو بلیغ ماهرِ زبان هغه دَ ذکر کولو وړ هم اُ نه گنړل موږ دناظرینو دَ ضیافتِ طبع په خاطر هغه څه لږ نقل کوو:۔

وَالْمُبَذِّرَاتِ زَرْعًا وَالْحَاصِدَاتِ حَصْدًا ؛ خُدائے دِ قسم وی په هغه ښځو چه تخمونه کری
وَالذّٰرِيٰتِ قَمْحًا وَالطَّاحِنَاتِ طَحْنًا ؛ او په هغه ښځو چه لَوُونه کوی او په هغه
وَالْعَاجِنَاتِ عَجْنًا وَالْخَابِزَاتِ خُبْزًا وَ ؛ ښځو چه غنم صفا کوی او په هغه ښځو چه



الثَّارِدَاتِ ثَرْدًا وَاللَّاقِمَاتِ لُقْمًا ؛ چه اوړه دَ میچن کوی او په هغه ښځو
إِهَالَةً وَسَمْنًا ؛ چه اُوړه اَغږی او په هغه ښځو چه وروی

ښځوی او په هغه ښځو چه ښوروا کښے وروی مَاتهوی او دَ وازدے او غوړو په نوړئی اَغستونکو باندے/ دلفظ خامیانو نه علاوه هغه په هر ځائے کښے "واو" استعمال کړے دے حالانکه بعضے ځایونو د "فا" او دَ "ثُمّ" داستعمال دی بیا دا چه کوم کارونه دَ سرو ویاد ښځو او دَ سرو په گمان وُو هغه ئے هم صرف ښځو ته منسوب کړل دا مضمون بخپله ډیر لغو او بے فائدے دے چه دیوا دنے درجے سړی دپاره شرم خبره ده دا ټَک دا ټوکړے هُم: اَلْفِيْلُ مَا الْفِيْلُ وَمَا اَدْرٰكَ مَا الْفِيْلُ لَهٗ ذَنَبٌ وَبِيْلٌ وَخُرْطُوْمٌ طَوِيْلٌ، جاحظ د هغه دا سے ټوکړے هم نقل کړی دی

يَا ضِفْدَعُ بِنْتَ ضِفْدَعَيْنِ نَقِّيْ مَا تَنُقِّيْنَ نِصْفُكِ فِي الْمَاءِ وَنِصْفُكِ فِي الطِّيْنِ لَا الْمَاءَ تُكَدِّرِيْنَ وَلَا الشَّارِبَ تَمْنَعِيْنَ

دا دواړه ټوکړے دَ آنی رهانقی، او دَ ټیندخے په باره کښے دی

## ابن الرّاوندی زندیق یهودی

ابن الرّاوندی یهودی النسل المتوفّٰی سنه ۲۹۳ ھ ده به د یهودو او نصاریٰ وُ نه غټے پیسے اغستے او دَ قرآن او اسلام په تردید کښے به کتابونه لیکل دَ هغه دکتابونو نومونه دا دی، التاج والفرید، والزمرّدة، وقضیبُ الذَّهب، دکتابونو لیکلو نه پس به ئے دَ یهودو او نصاریٰ وُ نه نورے پیسے غوښتے چه نه به ئے ورکولے نو هم دَ دے کتابونو تردید به ئے بیا کولو ابوالعلاء المعرّی دَ ده دکتاب تاج په باره کښے لیکلی دی،

لَا يَصْلُحُ تَاجٌ اَنْ يَّكُوْنَ نَعْلًا (دَ تاج دومره حیثیت هم نشته چه پلره ترجره) شی، دا د هغه ابوالعلاء المعری قول دے، چه دَ ابن الراوندی په شان بخپله هم مُلحد وو ابن الرّاوندی د بغداد په ښکُل یو معتزلی ابوعلی جبائی سره

ملاقات اُکړو او ورته یې اُوئیل چه ځما قرآن اَوره، جُبائي اُوئیل چه څه ستا دَ شي مناك عُلُومو نه خبر یم، بیا هغه اُوئیل چه ابن الراوندي ته پخپله منصف شه چه ستا په دے کلام کښے د قرآن پشان فصاحت، بلاغت، خوږوالے او هیبت رعبه دابه نشته؟ هغه اُوئیل چه نشته!

## دَ متنبي توکړے

(۴) متنبي د پیغمبرۍ دعوٰی کولو په وخت اُوئیل وو اُقسم بخالق اللیل والریح الهابة باللیل ان الکافر لطویل الویل وان الکفر لمکفوف الذیل، بیا ئے توبه کړه او مخلص مسلمان شو، د دے ټولو مَاخَذ د مُصطفٰے صادق الرافعي اعجاز القرآن نومې کتاب صـ۲۰۸ تر صـ۲۱۲ دے، د دے خبرونو د نقل کولو مطلب دَ قرآن اعجاز صفا ښکاره کول دي، دویم دا چه متنبي د غیره د مُسیلمه او ابن الراوندي وغیره نه ډیر زیات لوړ ادبي مقام لرلو لیکن هغه هرکله چه په دے میدان کښے قدم کیښودو نو دَ هغه کلام داسے ښکاریدو چه دَ هغه معتقد ینو پخپله هغے پورے خندا کوله او د ده ضمیر هم په دے دَ لره ملامت کولو.

دریمه خبره دا چه دَ قرآن په جواب کښ چه چا څه اُوئیل مسلمانانو بے له تعصُّبه هغه نقل کړل، دریمه خبره دا چه دَ قرآن دا مقابله په بغداد کښے په هغه وخت شویده چه پخپله مقابله کوونکي دَ رعیت په حیثیت دَ یو مخ په ترقئ اسلامي حکومت کښے استوګن وو او آزادي یکښے دومره وه چه حکومت تپوس هم اُنکړو چه غالبًا د هغے وجه داکیدے شي، چه اعجاز قرآن بونبردے په دے توکړو دے ترهیڅ نقصان نشي رسیدلے،

## دَ اعجاز القرآن پوهه



## مُشاهدات او معنویات

(۱) قرآني اعجاز اګرچه بلاغي حیثیت سره ذوقي څیز دے لکه دَ ترخوا او خوږوالي پیژندل او دَ فصاحت وبلاغت ذوق لرونکو دَ باره دا یو بدیهي څیز دے لیکن مُونږ یو څو څیزونه په ګوته کوو چه د هغے په وجه به معمُولي فهم لرونکو حضراتو ته هم دَ قرآن اعجاز واضح شي، څه مضامین خو دَ مشاهداتو سره تعلق لري چه هغه ښکاره څیزونه دي لکه آسمان یا نور داسے څیزونه او څه معنویات یعنے دَ لیدلو نه بهر څیزونه دي، مثلًا، اخلاق، اعمال قلبیه دا حکام عقائد او دَ غیبیاتو قوانین، دعرب او دعجم د شاعرانو د فصاحت بلاغت میدان مشاهدات وُو نه چه معنویات، دَ دوي کلام ټول غور ژګونه هم په مشاهداتو کښ وي معنویاتو کښ به ئے هیڅ درک نه وي لیکن قرآن مشاهدات هم بیانوي او غیبیات او معنویات هم او سره دده په زور بیان کښے هیڅ فرق نه راځي

(۲) دَ عرب او دَ عجمو شاعران د رشتیا د دروغو پابند نه وي خو خپل بیان او فصاحت وبلاغت کښے به ئے خپل زور ښکاره کولو هم د غه وجه ده چه دَ عرب شاعرۍ په باره کښے دا مقوله مشهوره وه چه اَحْسَنُهٗ اَکْذَبُهٗ، یعنے هغه شعر ډیر ښه دے چه په هغے کښے دروغ ډیر وي مګر دَ قرآن مضامین ټول دَ رښتیاؤ پابند دي چه په هغے کښے دَ واقعاتو خِلاف هیڅ مضمُون نشته په دے وجه دقرآن دائره تنګه وه خو بیا هُم دده په فصاحت او بلاغت کښے فرق رانغلو او که یو شاعر صرف دَ رښتیاؤ چا پابند کړي نو دَ هغه کلام به بے خونده پاتے شي، او بلاغت به ئې هم ختم شي دا یواځے قرآن دے چه د رښتیاؤ د پابندۍ سره د هغے خوند مزه نوره هم زیاتیږي او بلاغت کښے ئے هر وخت څلا تونده کیږي،

(۲) انسانان او دَ هغه قوّتونه محدُود دی په دے وجه بلیغ شاعر به یو خاص میدان کښے دَ خپل فصاحت زور ښودلے شی لکه دَ اِمرؤ القیس دَ شاعرئ زور دَ ښځو او آسونو په تعریفونو کښے محدُود دے، دَ نابغه دَ بیان جوش دَ ویرے دَ مضامینو سره مخصوص دی، دَ اَعشیٰ دَ شرابو سره، دغه رنګ فِردوسی او نظامی دَ جنګ په مضامینو کښے لا جواب دی، شیخ سعدی په اخلاقو کښے بےمثاله دے خو په قرآن کښے دَ هر قسم مضامینو باوجود دَ هغے په فصاحت بلاغت کښے هیڅ فرق نه راځی

(۴) دَ قرآنی بلاغت خصوصیت دا دے چه په لږو ټکو کښے دا سے اعلیٰ مضمُون بیان کړی چه دَ هغے په کتابونه جوړیدے شی، خو بیا هم دَ قرآن په خوږوالی کښے هم فرق نه راځی او نه په مضمون باندے دلالت کولو کښے کمزوریځ او کړکیچن راځی مثلاً: وَفِیْٓ اَنْفُسِکُمْ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ○

(سورۃ الذّٰریٰت، آیة ۲۱)

(۵) سل کاله پس هره ژبه بدلیږی، خکه دَ هر کتاب سَل کاله پس هغه مزه نۀوی، بلکه دَ هغے دَ مضامینو نه په مطلب اخستو کښے ګرانی راولاړیږی دَ حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله ترجمه قرآن بےمثاله ده لیکن دَ زمانے په تیریدو سره که هغے دَ بعضے اُردو الفاظو استعمال پاتے شو نو دَ دے وجه که هغے اِفادیت کمزورے شو بیا حضرت شیخ الهند رحمه الله دَ دغه ترجمه دَ نوو الفاظو په قالب کښے دَ هغے اِفادیت قائم ساتلو دپاره واچوله، لیکن دَ قرآنی الفاظو په افادیت څوارلس سوه کاله پس هم هیڅ فرق رانغلو د دے نه معلومیږی چه دَ قرآن دَ الفاظو انتخاب خالق کائنات دے دپاره کړیدے چه دا به تر قیامته د ویرے مُد دے دپاره برقرار وی، دَ دے غلور واُمور و ملاحظه کولو نه پس دے کښے هیڅ شک نه پاتے کیږی چه دا دَ ول کلام دَ بلاغت دا سے حد ته رسیدلے دے چه هغے ته دَ انسان



رسائی هیڅ رے نۀ شی کیدے هم دغه وجه ده چه قرآن څه وخت نازل شو نو خانه کعبه کښے هغه آویزان اُوه بیمثاله او مشهُورے قصیدے دَ شاعرانو خپلوانو راکوځے کړے یوائځے دَ اِمرؤ القیس یو قصیده هم هغسے آویزان خکه پاتے شوه چه دَ هغه خور دَ هغے د راکوځولو نه انکار کړے وو، لیکن هر کله چه هغے دَ طُوفان نوح علیه السلام متعلق دَ قرآن دا ایت واوریدلو،

وَقِیْلَ یٰٓاَرْضُ ابْلَعِیْ مَآءَکِ وَ: اے مزکے خپلے اُبه جذب کړه. یٰسَمَآءُ اَقْلِعِیْ وَغِیْضَ الْمَآءُ: او اے آسمانه اُودریږه او اُبه کمے شوے

سورۃ هود آیة ۴۴

نو دَ امرؤ القیس خور سمدستی دغه قصیده هم راکوځه کړه،

(اعجاز القرآن الرافعی):

جارج سیل لیکی چه دیوانسان قلم هم دا سے معجزانه کتاب نشی لیکلے او دا دَ مړو ژوندی کولو نه هم لویه معجزه ده: ارمیکسو تل کنګ لیکی کجرے وَحی څه شے وی، نو بیشک قرآن یو الهامی کتاب دے (تاریخ اسلام عبدالقیوم ندوی جلد ۱ صفحه ۳۲)

## قانُونی اعجاز

دَ قرآن بلاغی اعجاز خو بیان شو اُس د دے خبرے چه قرآن دَ الله تعالیٰ کلام دے دویم دلیل قانونی اِعجاز دے، انسانی قانون که یو تن جوړ کړے وی که ګنړو تنانو (پارلیمنټ) او دوی ډیر ماهران هُم وی خو بیا هم دغه قانُون په مختلفو قومونو او ملکونو کښے ډیره موده نشی چلیدے او ځا ځایه دَ کښن دا سے یو کمزوری ښکاره شی چه په هغے کښے دَ ترمیم او تغیُّر ضرورت راولی، هم دغه وجه ده چه کړیو حکومت او بادشاهئ په قوانینو کښے دَ هغے قانون سازے اسمبلئ او پارلیمنټونه دیما دبه لګی دا وَلی او

اوهمدغه دَ انسانی قانون دَ خامئ اوکمزورئ دلیل دے لیکن دَ قرآن
قانون چه هغه دَ انسانی ژوند دَ ټولو اړخونو نه زیاتررون لری او دَ هغے ښکاره
کوونکے هم صِرف د پیغمبر علیه السلام هغه یو ذات دے چه لیکل لوستل
ئے نه وُو کړی او اُمّی ورنا خوانده وو بللے شو، دَ هغے وطن ټول خلق نالیکلی
اونالوستلی وُو په کوم کښے چه دوی ښکاره شوی وو په دغه وطن کښے نه دَ
تعلیم زور شوروو او نه دَ څه قانون نه خلق خبر وو خو سره دَ دے دَ
ایشیا، یورپ او افریقے په درے واړو براعظمونو کښے د ذدوا کالو نه
زیاته مُوده په دے فیصلے کیدے نه شی دے کښے چا نقص ښکاره کړو او
نه په کښے دنن میراو تبدیلئ ضرورت پیش شو په مُوجُوده زمانه کښے
چه تعلیم عام دے او دَ ټولے نړئ خلق دَ یو بل سره نږدی
دی خو صرف مُسلمانان نه بلکه دَ یُورپ مُخالفین هم د قُرآن قانون
بے مثاله معقول او جامع بولی حالانکه په دے څوارلس سوه کاله تیر
شوی دی،

(۱) ډاکټر سموئیل لیکی، چه دَ قرآن کریم مطالب داسے همه ګیراو دَ
هرے زمانے په مناسب دی چه ټول آوازونه ئے خامخا قبلوی او مخلوق
-شګلنو، ښارونو او بادشاهو کښے کړ نکیږی"

(۲) مسټرولف لیکی "دَ رُشد و هدایت وسیع جمهوریت، انصاف او عدالت
نوجی تنظیم، مالیات، دغریباؤ د حمایت او دَ ترقئ اعلیٰ آئین په قُرآن
کښے موجود دے"۔

(۳) د فرانس ډاکټر موریس لیکی" دَ قُدرت مهربانو چه کوم کتابونه
انسان ته ورکړی دی قُرآن د هغے ټولو نه بهتر دے دَ تاریخ اسلام
عبدالقیوم ندوی جلد ۱ ص ۳۲۱ تا ۳۳۲ نقل شوی صِرف په درے
حوالو مونږه اکتفا کوو، د دے نه تاسو اندازه اولګوئ چه دا دول



کتاب دانسانی فکر پیداوار کیدے شی ؟ هیچرے نه بلکه دَ دے کتاب
مَاخذ دَ الله تعالیٰ هغه بے اندازه علمی سرچشمه ده چه هغے نه دَ ټولو
قومونو او دَ ټولو زمانو د ضرورریاتو علم وو او په دے کتاب کښے ئے
ټول را څلاره کړه۔

ابیات اقبال مرحوم

آن کتابِ زنده قُرآنِ حکیم — حکمتِ او لایزال است و قدیم
حرفِ اُورا ریب نے تبدیل نے — معنی اش شرمندهٔ تاویل نے
نسخهٔ تکوینِ اسرارِ حیات — بے ثبات از قُوتش گیرد ثبات
صد جهانِ تازه در آیاتِ او — عصرها پیچیده در آفاتِ او
نوعِ انسان را پیامِ آخرین — حاملِ او رحمة للعلمین !!

(۴) ددینه علاوه سرِ امنډ برلیکی، د قرآن قوانین دتاجدار نه
ترکمتر فرد پورے، باندے حاوی دی او دا دومره معقُول دی چه مثال ئے
نشته" (حواله بالا تاریخ عبدالقیوم ندوی)

(۵) آرنلډ لیکی چه قُرآن هغه اُصول پیش کړه چه دَ سائنس هغه مخ په
وړاندے ترقی هم دے ته ماتے نشی ورکولے،

(د تاریخ عبدالقیوم ندوی هم دغه حواله)

## تاثیری اعجاز ④

قرآنِ حکیم د خپلو تاثیراتو د مخه هم یو معجزه ده ځکه چه په هیڅ انسانی کتاب کښے دا
دول تاثیر نشته کوم چه قُرآن خرد کړو، او ټوله نړئ پرے دو ښاذ کړه
داثر آچولو والے ترُون دانسان رُوح سره دے، ځکه چه دا بدل شی نو
انسانی تصوُّرات۔ ګفتار او کردار کښے پخپله تبدیلی راځی، د دے درے وارد
مرکز رُوح یا زړه دے، لکه څنګه چه حدیث د احتیقت ښکاره کړیدے چه

په بدلون کښې يو توپير دا چه هغه درسته دی تو ټول بدلون درست وی د بخاری شريف، د اصلاح مرکز روح دے خو روح امر ربّی او آسمانی څيز دے، زمينی نه دے لهذا اکوم کتاب چه آسمانی وی نو کلام ربّی به وی په هغې به د روح اصلاح کيږی کوم چه امرِ ربّی دے. قرآن حکيم کوم قوم او ملک (عرب) کښې چه ښکاره شو هغه د ټولے نړئ د خرابو مرکز وو، اعتقادی خرابئ دومره وے چه د خُدا پرستئ ځايونه هم نه وو بلکه هر ځائے بُت پرستی وه انصاف ورک وو ټول ظُلم ظُلم وو، هر زورور په کمزوری لُوټ وو او بغير د لوټ مار نه د هغوی بله ذريعه معاش نه وه د دوی د ظلمونو نه د دوی اولاد هم خلاص نه وو، تر دے چه خپلے ژوندئ لونړه به ئې په خاورو ور منډلے او دريابه به ئې بے پرے غورځولے به ئې دومره کولے چه د هغوی هيڅ مجلس به د شرابو څښلو نه خالی نه وو، د اتفاق بُونئ هم په دوی کښې نه وو، او د هرے قبيلے او قوم خلق به د هر بل سره په جنګ کښې بُخت وُو او دائے په ټولو کښې زيات خوښه مشغله وه، د اصلاح ټولے ذريعے (تعليم، تربيت، قانون) دوی کښې نه وے، جهالت لاقانونيت او خودسری عامه وه. د احالات انسانی ذرائع او وسائلو سره په زرګونو کاله کښې هم نه شو بنه کيدے د چا په خوب خاطر کښې هم نه راتله چه د دے وجری نيوونکی خرابئ به چرته ختم شی، ځکه چه د اصلاح د ذرائعو نوم و نشان هم د غلته نه وو، اُس چه دا هر څه شته تعليم عام دے، د نشر و اشاعت ټولے ذريعے شته، قانون موجود، د اصلاحِ معاشره انجمنونه قائم، اصلاحی فلمونه هم شته خو بيا هم په خرابو او شر و فساد کښې اضافه کيږی او د جرمونو نوی نوی صورتونه راځی. اُس د دے منظر او د قرآنی اِصلاح د منظر نسبت اوکړه:-



چه هغه په دوه دوه نيم کاله کښې دا مُشکل ترين کار په ډير آسانئ حل کړو او هغه اصلاحی انقلاب ئے په عربو کښے راوستو کوم چه ټولے نړئ ته معلوم دے، د تاريخ په صفحو کښې ښکاره دے او دوست دُشمن د دے اقرار کوی، په عربو کښې بت پرستی، د بيخه ختم شوه او کور په کور د خُدا پرستئ او توحيد دا سے شور بنت اُشو چه دغه بت پرست بت شکن شول، سرئے صرف وحده لاشريک ته ټيټ شو، په ژبه هر وخت د الله توحيد جاری شو، په زړونو کښې د الله خوف ځائے شو د غير الله خوف ئے د زړه نه اُوتو. دغه قوم چه د خپلو سکه رونړو دُشمنان وو د اسلامی او قرآنی تړون په وجه ئے بلالِ حبشی، صهيب رومی، او سلمان فارسی غونده بے پردی خلق " د خپلو سکه رونړو نه هم زيات اوګڼل، خانه جنګی ختمه شوه، او ټول عرب قوم د مينے او رورولئ په مزی کښې پيئلی فولادی ديوال جوړ شول، جواری کول او سُود خوړل شراب څښل - غلا - ډاکه - قتل، او ظُلم نه بولئے، د عربو نه ورک شول، بلکه د ی قدم چه کوم ځائے ته اُرسيدو د هغه ځائے نه دا ټولے خرابئ ختمے شوے، دليوپ يوا هل قلم ليکی چه د قرآن نازل کيدو نه پس عرب د انسانانو په شکل کښې فرښتے جوړے شوے، دا يو تاريخی حقيقت دے چه دا سے اصلاحی کارنامه چه سرته يا يه معجزه ده صرف د قرآن په وجه اُشوه چه د ټولو انسانی کتابونو په جمع او د نړئ د ټولو حکومتونو د طاقت په جمع، نه بهروه نو دا د دے خبرے دليل نه دے چه قرآن کلام الٰهی دے او د خداوندی تاثير په وجه دا هغه اصلاحی کارنامه ئے اوکړه؟ ولے نه دا خو د دے خبرے تاثيری دليل دے، چه قُرآن کلام الٰهی دے، دا کوم چه ما اُليکل د موجوده دور اسلام دشمنانو عيسايانو هم د هغې اقرار کړے دے د هغې تفصيل بيا تولونه ورا ندے

داوضاحت کول غوارم چه ما دوه دوه نیمه کاله ولے اُ ٔیکل حالانکه قرآن خو دیرویشت کاله نازلیده، د هغے وجه دا ده چه دَ مکے دیارلس کاله خو کُفارو په خپل ظالمانه طاقت دَ قرآن آواز بند کړے وو او ددے دَ تبلیغ ټولے لارے ئے هم بندے کړے وے دَ هجرت نه پس اته کاله کُفارو دغه کار د جنګ په زور دَ فتح مکے پورے جاری اُساتلو دا یوویشت کاله خو قرآن نازلیده ولیکن کُفارو ددے تبلیغ او آواز په مذکوره طریقو بنده اُساتلو او باقی پاتے زمانه یعنی په دیرویشتو کالو کښے، صرف دوه دوه نیمو کالو کښے دا کار اُشو، ددے وضاحت نه پس بیا خپل مقصد ته راګرځو:-

## دیورپ په نظر کښے دَ قرآن تاثیر

ډاکټر ماریس لیکی، چه قرآن په دنیا هغه اثر اُخور ځولو چه دَ هغے نه بهتر ممکن نه وو، دفرانس یسیان لیکی چه قرآن داسے ژوندئ او پُرزور یمانی جوش پیدا کوی چه بیا پکښ دشک ګنجائش نه پیدا کیږی سر ولیم میور لیکی۔ چه قرآن دَ کائناتو دَ فطرت په دلائلو سره خدائے پاک دټولونه اعلیٰ هستی ثابته کړه او انسان ئے دَ هغه په اطاعت راهیبت کړلو:-

مسټر جی۔ ډی لیکی چه قرآن په بیشمیره انسانانو اثر واچولو او دَ سائنس دنیا دَ قرآن ضرورت نو هم واضح کړو:-

مسټر عمانوئل ډی انش لیکی، چه د قرآن رڼا په یورپ کښے هغه وخت راښکاره شوه چه تیاره خوره ده او په دے دَ یونان مرعلم او عقل نه ژوند حاصل شو:-

مسټر ایچ۔ ایس لیبور لیکی چه دَ قرآن دَ تعلیم نه دَ حکمت او فلسفے ظهور اُشو او داسے ترقی ئے اُکړه چه دَ هغه وخت دَ ټولو نو



## (۴) انجذابی تاثیر

دَ قرآن کوم اصلاحی تاثیر چه مونږ بیان کړو هغه هم داسے یو معجزه ده چه بیا ئے انسانی کتاب نه ظاهریدے نشی، لیکن دَ اصلاحی اعجاز نه علاوه د قرآن انجذابی تاثیر هم یو مُعجزه او ددے خبرے ښکاره دے چه قرآن کلام الٰهی دے،

(۱) ځکه چه قُرآن ډیر غټ کتاب دے د هغے یادول ډیر ګران دی (۲) دویم دا چه دغیر عرب مسلمانانو دپاره دَ عربی ژبه پردئ ده چه د هغے په یادولو کښے دویم بندش دے خپله ژبه کښ کتاب یادول آسان او پردئ ژبه کښے یادول ډیر ګران دی،

(۳) دریمه خبره داده چه په دے کښے یو رنګ آیاتونه ډیر دی چه په هغه سړی پزل کیږی، او غلطیږی، دا هم دَ هغے په یادولو کښے یو بندش دے

(۴) څلورمه دا چه دَ قرآن حافظ دپاره د قوم یا دَ حکومت نه څه تنخواه نه ده ټاکلے شوے نه ئے په دوی کښے څه خاص عزت شته:-

(۵) پنځمه دا چه د قرآن یادولو دپاره ډیر وخت په کار دے او بیا دَ یاد ساتلو دپاره ئے ټول عُمر ترمرګه دَ دور او تکرار ضرورت دے، دومره خواری کچرے د دنیاوی ډګرئ حاصلولو دپاره کړے نو ډیر مال او عزت به ئے ګټلو، دا ټول دَ حفظ قرآن په لار کښے غټ خنډان دی، لیکن سره دَ دے په مسلمان قوم کښ لکهونه حافظان دَ قرآن موجود دی او ددے دِ حفظ رواج په دے بے تپوسه حال کښے هم مخ په ترقئ دے چه دا دَ دے دلیل دے چه د قرآن په ذات کښے معجزانه او انجذابی داسے کشش موجود دے چه دَ دے بندَ شو نو سره هم مسلمانان خپل ځان ته راکاږی او هیڅ یو بندیز په دے اثر نه غورځوی دا کشش او انجذابی تاثیر دَ قرآن یو مستقله معجزه ده او دَ دے دلیل دے چه قرآن کلام

الٰهي دے ځکه چه بل يو کتاب دومره حفظ کوونکي په مخ د ځمکے نشته نه دا سے کشش په بل کتاب کښے شته تر د ے حده ، چه د تورات او انجيل يو حافظ هم نشته :۔

## د قرآن اعجازي تاثير په شخصيت د رسول الله صلی الله عليه وسلم

د اصلاحي او انجذابي تاثير نه علاوه د شخصيتي تاثير هم د قرآن يو مستقله معجزه ده ، د قرآن په باره کښے صحيح او غلط دواړه رائے دي ، يو صحيح رائے ده چه دا کلامِ الٰهي دے او بله غلطه رائے ده چه دا کلامِ الٰهي نه دے صحيح رائے ثابتولو او د غلط رائے د بيکاره کولو د پاره موږ د قرآن د شخصيتي تاثير اعجاز هم وړاندے کوو :۔

د شخصيتي تاثير اعجازي درے صورتونه دي :۔

① نزولي اثر ② قلبي اثر ③ قالبي اثر

① شخصيتي نزولي اثر :

مخالفين وائي ، چه قرآن د الله تعالیٰ کلام ځکه نه دے چه دا د رسول الله محمد صلی الله عليه وسلم کلام دے ، که دا غلطه رائے اومنلے شي نو بيا خپل هغه کلام چه په هغے کښے به خدائے تعالیٰ د دروغ د تپلے شوی وي ځکه به زور اثر په دغه انسان اغېزکوي لکه څنګه چه د عربو د هغه مشهورو او قصيدو خاص اثر په هغه شاعرانو نه پريوتو کوم چه د اپخپله جوړے کړے وے که دا سے وے نو تاريخ کښے به ئے څه تذکره ذکر شوے وے ليکن د قرآن وحي :

### په يخنئ کښے خولَه

به چه په حضور عليه السلام څه وخت په يو عامه جمع کښ کيده نو د يخ موسم باوجود د هغوی د مخ مبارک نه به د خولو غټ غټ څاڅکي په ډيرزور څڅېدل ، د حضرت صديقه رضا نه په اول د بخاري کښ منقول دي :۔



لَقَدْ رَأَيْتُهُ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فِي الْيَوْمِ الشَّدِيدِ الْبَرْدِ فَيَفْصِمُ عَنْهُ وَإِنَّ جَبِينَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا

ما حضور عليه السلام اُليدو چه په سخته يخنئ کښے به پرے وحي نازليده او ختمه به شوه نو د هغوی د تندي مبارک نه به دا سے خوله راڅڅيده لکه څنګه چه وهلي رګ نه وينه دارے وهي په يخنئ کښے دا سے سخته خوله راتلل غير اختياري ده چل ول په دے کښے نشي کيدے اُس دا ښکاره خبره چه دا سے تاثير په انساني کلام کښے نشي کيدے معلومه شوه چه دا د حضور عليه السلام خپل کلام نه وو بلکه الٰهي دے :۔

### دروند والے او بيخے

کلام د الفاظو نه جوړوي په هغے کښے دروند والے او بيخے نه وي ، ځکه چه دا خو په اجسامو کښے خاص وي او قرآن خو الفاظ وي جسم خو نه وي بيا هم په حضور عليه السلام به چه قرآن نازليدو نو د هغوی په شخصيت کښے به د معجزے په ډول دروند والے او بيخے پيدا کيدو او لګ هم بلکه ډير زيات :۔

بخاري شريف کښے زيد بن ثابت رض نقل کوي :۔

كَادَتْ فَخِذِي أَنْ تَرُضَّ ، ترجمه : قريبه وه چه زما د پتون هډوکے د بيخے د زوره چوره چوره شوے وے :

د سورة مزمل په تفسير کښے مستدرک حاکم د صديقه رض نه نقل کوي ، چه حضور عليه السلام په سفر کښ په اوښه سور روان وو ، چه وحي قرآني نازله شوه ، هغه اوښه د وحي قرآني د بيخے د زوره کيناسته ، دا ښکاره خبره ده چه په زيد بن ثابت رضا او په اوښه دا ډول اثر نه د وحي راتلو نه وړاندے او نه وروستو چرے شوے وو ، دا صرف د قرآني نزول اثر وو چه دا په قرآن کښے هم ذکر دے :۔

إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا ۝ اے پيغمبره عليه السلام موږ به تا باندے

بو دروند قول د روا چوو :-

هرکله چه دا خبر قرآن او حدیث کښے راغلو عامو خلقو ئی کتلو کچرے دا تاثیر د وا قعاتو نه خلاف وے نو د قرآن مخالفینو کفارو به خامخا اعتراض او انکار د وا په کړے وے، هرکله چه هغوی داسے ئی نه کړه، نو دا دلیل شو ودے خبرے چه دا تاثیر واقعی په تواتر سره ثابت دے، دا تاثیر صرف قرآن سره ترلے نه دے بلکه د هغے قرآن سره چه د جبرائیل علیه السلام په واسطه نازل شوے نو داسے شوه، لکه چه د وخت دنازلیدو او د جبرائیل علیه السلام دفعل او عمل هم په دے کښے داخل وی دا د قرآن د تاثیر معجزه د ه چه بل انسانی کلام کښے نشته:

## ۲- د قرآن شخصیتی قلبی تاثیر

د صاحب قرآن حضور علیه السلام په زړه مبارک باندے د قرآن دا اثر وو چه د حضور علیه السلام په فرمائش حضرت عبد الله بن مسعود رض د دوی په وړاندے قرآن شریف تلاوت کړو، نو خلقو ئی کتل چه د هغوی د سترګو مبارکو نه بے اختیاره اوښکے جاری وے۔ وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ

(۲) مطرف بن عبد الله بن شخیر رض نه نقل دے، هغه وائی چه د شپے په تهجد کښے حضور علیه السلام ولاړ و (هیڅوک هم نه وو) قرآن لوستلو څه په لاره تیریدم نو د حضور علیه السلام د ژړا په وجه د هغوی سینے مبارکے داسے جوش وهلو لکه په دیچکی کښے وریشیدلے به چه جوش وهی، فَلِجَوْفِهِ اَزِيْزٌ كَاَزِيْزِ الْمِرْجَلِ : بنه! چرے د چل ول د خسرو نه چلولی سری پخپله د شپے به تیرے کښے په ولاړ څے، داسے اثر کیدے سی، دا تاثیر خو د کلام الٰهی کیدے شی۔

## ۳- تاثیر قالبی

په وینا کښے دومره تکلیف نه وی څومره چه په عمل کولو کښے وی د



چل ول خبرے یو اځے د خلقو بسودلو د پاره وی چلولی سرے پخپله نل ترنله د په د وئ کے عمل پرِ نشی کولے ترڅو چه هغه کلام الٰهی ئی نه ګنړی او د هغے مضامین حق ئی نه ګنړی لیکن د حضور علیه السلام په قالب او بدن مبارک باندے د قرآنی احکامو څه اثر به کیدو؟ کوم وخت چه دا آیت نازل شو:-

فَاِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ وَاِلٰى رَبِّكَ فَارْغَبْ : سورة الانشراح آية ۷-۸ اے پیغمبر علیه السلام ته چه څه وخت د ضروری کار نه فارغ شے نو خپل ځان د الله تعالٰے په عبادت کښے ستړے کړه، او الله طرف ته توجه ساته دده نه پس حضرت صدیقه رض فرمائی چه هغوی به تر دومره شپه عبادت کولو تر دے حده چه (تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ) د هغوی قدمونه مبارک به ئی پړسیدل (بخاری)

(۲) بخاری شریف کښے دی چه د صدیقه رض نه د حضور علیه السلام د اخلاقو په باره کښے تپوس ئی شو نو هغوی ئی فرمایل چه پوره قرآن د هغوی اخلاق وو، لکه څنګه چه هیڅوک خپل عادتونه او اخلاق نشی پریښودے د غه شان د حضور علیه السلام اخلاق او عادات قرآنی احکام جوړ شوی وو څه په قرآن کښے وو هم هغه د هغوی په عمل کښے موجود وو، بنه! چرے په یو انسان د خپل چل ول د کتاب په دے درول تالیی، جسمانی او عملی تاثیر کیدے شی؟ کچرے نشی کیدے نو دا د لیل د دے خبرے دے چه قرآن کلام الٰهی دے او پخپله حضور علیه السلام په دے د کلام الٰهی په حیثیت د تولو نه زیات عمل کوونکے وو:-

## د قرآن سیاسی اعجاز

قرآن عربو کښے نازل شو او دوی د ټولو قومونو نه کمزوری بے علمه او بے هنره وو، د سیاسی غلبے حاصلولو هیڅ ذرائع دوی سره نه وو. څکه چه سیاسی غلبے او اقتدار حاصلولو د پاره اول دا فرا دو زیاتولے ضروری دی

او دوی کنړ نه وو. عرب به په هغه وخت کښې صرف سعودی عرب
او یمن ته وئیلے شو، عراق، شام، فلسطین، اردن، لبنان، بیروت
مصر او شمالی افریقه دا عرب ملکونه نه وو، خو د اسلامی فتوحاتو
نه پس عرب ملکونه جوړ شو، (۲) دویم خیز تعلیم دے او عرب ډامیانو،
یعنی د نالوستو ملك وو، (۳) دریم خیز اتفاق او یو والے وو، لیکن د عربو هره
قبیله د بلے دُشمنه وه تر دے چه د مدینے منورے دا انصارو دوه مشهورے
قبیلے اوس او خزرج پخپلو کښے یو بل دُشمنان وو، (۴) څلورم خیز کاریګری
ده او په عربو کښے نه کارخانه وه او نه کاریګری د نوره او د معمولی
پوشاك دپاره هم هغوی د هندوستان او د شام د عیسائیانو محتاج وو،
(۵) پنځم خیز زراعت او غذائی کفالت دے، او د کجورو نه بغیر هغوی
د نورو تومونو محتاج وو، ځکه چه د هغوی وطن د کروندے جوګه نه وو
چنانچه قرآن هغے ته پخپله "وَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ" اُو ئیلے۔
(۶) شپږم خیز معدنی دولت دے او په دغه وخت په عربو کښے یو معدنی
دولت هم نه وو اُس چه موږ څه ګورو هغه د اُسنی زمانے پیداوار دے۔
(۷) اُوم جسمانی قوّت دے، او دا هم په دوی کښے ځکه نه وو چه دغه
ملک ډیر ګرم دے ضروری غذا ورته حاصله نه وه، د داوبو هم کموٗت
وو د یخنئ او ګرمئ نه ځان ساتلو دپاره دوی سره کوڅونه وو نه یا تو
خلقو به په تنبوانو کښے ګذاره کوله او د علاج څه انتظام هم ورسره
وو، (۸) اتم خیز روحانی او اخلاقی قوّت دے چه د توحید اعلیٰ او پاکیزه
تصوّر نه پیدا کیږی، لیکن د عربو خلقو به د کاڼړو یا د کاڼړو نه جوړ
بُتانو عبادت کولو،
په دے حالاتو کښے قرآن په عربو کښے ښکاره او عربو ټولو په جمع
دے رڼړا د دُور کولو بنه زور اُلګولو دوه نیم کالونه زیات وخت



قرآن د آزاد اشاعت (خورولو) دپاره وخت نه وو موندلے شوے،
لیکن دے لږه موده کښے قرآن عربو لره د کوم ځائے نه تر کوم ځائے
اُرسول د دے اندازه د قرآن نه وړاندے او د قرآن نه وروستو د عربو
د نسبت کولو نه معلومیدے شی عرب قبل القرآن هغه وُو چه د کومو
مُونږ ذکر اُوکړو او عرب بعد القرآن داسے یو قوم جوړ شو چه په تنظیم
اتحاد، اخلاق، بلند خیالئ، اولو العزمئ، ایثار، قربانئ، خُدا پرستئ
شجاعت، سخاوت، عفت، پاکدامنئ، رحم او شفقت، عقل و تدبیر،
جهانبانئ، جهانګیرئ، دیانت، امانت، صدق او راستئ، د وعدے پُوره
کولو او په عدل و انصاف کښے د دوی یو قوم هم سیال نه وو، بلکه د بشریت
ټول تاریخ د دوی د مثال پیش کولو نه تش دے هم دغه وجه ده چه
د تیر شوو اتلسو کمزورو سره هم هغوی د مشرق او مغرب دوه لویو
متمدنو او بے اندازے سامان نه ډک پك بادشاهو (قیصرا و کسرىٰ)
په یو وخت ټکره اُوهله او په ډیر لږ وخت کښے هغوی تار په تار کړه
د هغوی دُوبے ئے واړو خورولے او د هغوی لوخے او تخت و تاج ئے ټس ټس
کړل۔
اُوس سوال دا دے چه دا سیاسی غلبه عربو ته په کومه وجه حاصله
شوه، چه د ورو د هغے طوفانی چپے په مشرق کښے کاشغر او دیوار چین
سره راُ ټمبیدے او په مغرب کښے مراکش او فرانس پورے؟
د دے جواب دا دے چه سیاسی اقتدار او غلبے حاصلولو دپاره دوه
قسمه اسباب کیدے شی، (۱) یو مادی (۲) او دویم روحانی او غیبی،
اُس ذکر شُو چه مادی هیڅ اسباب عربو سره نه وو، بلکه د عربو د
دُشمنانو او حریفانو سره وو، کچرے په مادی اسبابو د غلبے فیصله
کولدے نو عرب به د هیڅ کذ ئے نه قطعاً و ډک وو او نتیجه به ا ړ و لے،

(په عکس) وه، نو معلومه شوه چه دا هرڅه په هغه غیبي او روحاني طاقت چه کوم عربو ته د قرآن او صاحب قرآن علیه الصلوٰة والسلام د برکته نصیب شوے وو، اُس ښکاره خبره ده چه دا سے معجزانه طاقت د کتاب الٰهی د طاقت نه بغیر ممکن نه دے هم دے نه معلومه شوه چه قرآن کلام الٰهی دے او په کوم پاك ذات چه دا نازل شو هغه د تولو نه زیات کامل او خاتم النبیین ذات وو د مسلمانانو اُوسنی زوال باعث هم دا دے چه دوی د اسلام او د قرآن په هدایاتو عمل پریښے دے ورنه دے دوا ړو اُس هغه طاقت د چه کوم وو- د قرآن دا نسخه د زرو کالونه هم زیات وخت ازمیښت شوے او تجربه شویده، وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ[1] - قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّ شِفَآءٌ[2] - لیکن په کاغذ لیکلے شوے او په خولے ویلے شوے بهترینه نسخه تر هغے اثر نشی کولے تر څو چه په هغے عمل اُونشی دیورپ مستشرقین دا راز ښه پیژنی چه که چرے مسلمانانو اسلام او قرآن ته رجوع اُوکړه نو نوی کیدی به.

مسلمانان په یو ځائے شی په یو مرکز کښے به راشی د هغوی خوارة واره طاقتونه او د ترقی ذرائع به یو ځائے شی او د دُنیا ړو هیے ښر طاقت به جوړ شی او ځمونږ دلاس نه به د غه ښکارا ځی، نو ځکه څه مودے راسے هغوی مسلمانانو لره د قرآن او اسلام نه د بیرته کولو کوششونه شروع کړی دی، او دا وائی چه د مسلمانانو زوال د قرآن او د اسلام په وجه دے او دا هم وائی کچرے مسلمانانو د مغرب هغه کلتور او ځنلے ویزاره تهذیب اختیار کړو نو دوی به ترقی اُوکړی او هم دا وجه ده چه په اسلامی ملکونو کښے زوړ او نوے جنګ جاری دے او ورځ تر ورځے په مسلمانانو کښے انتشار او مرکزنه تښتیدو نکی جذبات پالنم موی - مونږ به خپلو

---

[1] سورة بنی اسرائیل آیة ۸۲ [2] سورة حٰم السجدة آیة ۴۴



دوو کتابونو ترقی او اسلام، اشتراکیت او اسلام کښے دا مسئله پوره حل کړے ده چه د هغے روح دوه خبره دی هغه دا چه دیورپ کاریګری، هنر او علمیو خیز دے او د هغه طرزِ ژوند، معاشرت او تهذیب بل شے دے، اول شے دا سلام دے چه یورپ پرے قبضه کړیده، یعنے یورپ هغوی صنعتکاری چه هغه وا خلئی او دوئم د هغوی ګنهکاری ده چه پریږدی په دے د زور تعلیمیافته ... اعتراض نشته ځکه چه هغه اسلام سره پخپله فِټ دے دفِټ کولو ضرورت ئے نشته دلائل ځما په نورو کتابونو کښی شته او دیورپ تهذیب ګنهکاریانے پریږدی چه هغه د اسلام او ترقئی دواړو نه خلاف او پخپله یورپ د هغے په وجه د تنزل ښکار دے او د ځنکدن په حالت کښے دے، دا سے ځمونږ خانه جنګی ختمیدے شی، دنوی او زوړ تعلیم دواړه وزرے د ترقی د پرواز د پاره ضروری دی دواړه دِ لے یو ځائے کړی جنګوئی ئے مه.

## ۴- غذائی اعجاز

انسان د جسم او روح نه جوړ دے دا دواړه په دے بدلیدونکی او خرابیدونکی جهان کښے آباد دی، ځکه په دوی کښے هم بدالی او خرابے راځی، نو تر څو چه دے دواړو د پاره د غذا انتظام نه وی نو د دوی باقی پاتے کیدل ناممکن دی په دے وجه قدرت د جسم او د بدن د بقا د پاره د غذا انتظام کړے دے، چه دے د ختمیدو نه بچ شی او د دے د پیدا کولو نه چه کوم فائدے اخستل مطلب وو هغه هم پوره شی او دے کښے څه نقصان رانشی او د روح د غذا د پاره ئے هم په دے غرض انتظام کړے دے چه دے هم ژوندے پاتے شی او د ده د پیدا ئش مقصد پوره شی، قدرت د انسانی بدن د غذا دا سے لوئے انتظام کړے دے چه د زمکے نه واخله تر آسمانه او تر نمر او سپوږمئ پورے د ده د غذا په

په تیاری کښې لګیا دی مثلاً د بدن غذا (ډوډۍ) د پاره ځمکه غنم را اُټوکوی اُوبه او هوا هغه شنه او تازه ساتي د ستورو په کشش هغه دانه نیسي او غټیږي، نمر د سمندر نه بړاس اُوچت کړي پورته ورېځ شي او هغې نه باران په شکل کښې د اُبو انتظام اُکړي او بخیلې ګرمۍ هغه د غنمو دانې پخوي، باد و نه بوس او غنم جُدا کولو کښې مدد کوي شپه ورځ یو بل پسې لګیدلي دي نو دې کښې اعتدال پیدا کوي مطلب دا چه ټوله کارخانه د جهان په غنمو جوړه ولو کښې لګیا ده چه انساني بدن له د خوراک تیار کړي حالانکه د روح نه د بدن قیمت او قدر ډیر لګ او لاندې دې چه د غه لاندې او کمزوری جُز د پاره دومره لوئې او وسیع انتظام د قدرت د طرفه موجود دې نو دا څو هیڅ رې نشي کیدې چه د رُوح د غذا د پاره د څه انتظام نه وي دا څو نه عقل مني او نه ئې حکمت څو بیلتُون صرف دومره دې چه بدن د ځمکې شې دې د دې غذا سامان هم د ځمکې نه اُشو او رُوح آسماني او امر ربي دې له دې وجې د دې غذا هُم د غه ځائې نه پکار ده:-

## د رُوح آسماني غذا

د رُوح د ژوند د پاره قُدرت یو روحاني غذا تجویز کړې ده څو هغه داسې ده چه څوک د هغې کیفیت او مقدار نشي بنودلې ځکه چه د رُوح په دې کښې الله تعالیٰ سره مشابهت او مناسبت دې نو د دې د پاره به غذا هم داسې پکار وي چه د الله ذات سره تړون لري، بلکه د هغه صفت وي د الله د غه صفت صِرف هم د هغه کلام کیدې شي چه روح انساني ته مُنتقل شي او د ې ژوند ې اُساتلې شي نو د کلامِ الٰهي او وحي ربّاني نه بغیر د انساني رُوح ژوند ناممکن دې، لکه څنګه چه د جسماني غذا نه بغیر د جسم ژوند ناممکن دې:-



## د روحاني ژوند معیار

د روح اصلي ژوند او مرګ هُم هغه معیار لري کوم چه یو انساني اندام لري دا فیصله به د غذا په مُقرّر معیار موقوف وي چه واقعي کلامِ الٰهي یا قرآن الٰهي روحاني غذا ده که نه؟

## د غذائیت معیار

د غذائیت معیار دوه څیزونه دی (۱) طبعي میلان (۲) ترقي او نشونُما. (۱) مثلاً ډوډۍ او غوښه جسماني غذا ده او اُسپنه او لرګې جسماني غذا نشي کیدې د دې په منځ کښې بنکاره بیلتُون دا دې چه ډوډۍ او غوښه خوړل د انسان طبیعت غواړي او دا ئې طبیعت نه غواړي چه د اُسپنې او لرګي ټوټې جوړه کړي او وې خوُري؛

(۲) دویم معیار دا دې چه ډوډۍ او غوښې خوراک سره بدن غټیږي او ترقي کوي مګر اُسپنې او لرګي خوراک سره دا سې نه بلکه نقصان کیږي، د غه رنګ قرآن هم طبیعت غواړي، ځکه خو په لکهونو حافظان د بیر عُمر لګیا وي قُرآن یاد کړي او بیا د هغې د ساتلو د پاره تر مرګه پورې عُمر ه هغې دورُونه او تکرارُونه کوي. د دې قرآن د علم او عمل سره په رُوح کښې داسې اصلي (حقیقي) ژوند پیدا کیږي چه بیا یو موټې خلق په زرګونو زرګونو خلقو بر کیدې شي لکه موبږه سیاسي اعجاز، کښې چه بیان کړه کچرې رُوح ته قرآني غذا ورنکړې شي نو رُوحاني ژوند داسې ختمیږي، لکه چه څنګه بدني ژوند د بدني غذا نه موندلو په وجه ختمیږي:-

## د روح مرګ او ژوند

د هر څیز ژوند د هغه د پیدا کولو د مقصد نه معلومیږي:-

(۱) د سترګې پیدا کولو مقصد لیدل. او د غوږ پیدا کولو مقصد آوریدل دي سترګه چه لیدل نشي کولې او غوږ چه آوریدلې نشي نو دا د دوی مرګ

دے دغه شان د رُوح پیدا کول د "معرفتِ الٰهی" د پاره دی خو پورے
چه دا مقصد حاصلیږی نو روح ژوندے گوندی مَړ دے:-

(۲) د الله په معرفت او د الله په تعلُّق سره روح کښے یو لوئے دا سے
طاقت دا شی، چه د هغے مقابله د دُغ قُوت نه خالی روحونه نشی
کولے اُس د دے طاقت نوم رُوحانی ژوند او د دے نیشتوالے رُوحانی مرګ
دے، دا سے ژوند قُرانِ حکیم په دے الفاظو بیانوی:

يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا اسْتَجِيبُوْا لِلّٰهِ ؛ اے مؤمنانو تاسو د الله او رسول حکم
وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ ط: اُمنئ هغوی تاسو دا سے خیز ته
سورة الانفال - آية ۲۳ ؛ : دا بلی کوم چه تاسو ته ژوند درکوی،

دے نه معلومه شوه چه رُوحانی ژوند د جسمانی ژوند نه اعلیٰ او زیات
اوچت دے د دے رُوحانی ژوند په برکت او طاقت سره صحابه کرامو
د خپل نه خوچند لا زیات لښکرو ته ماتے ورکړه سره د دے چه
هغوی سره به هیڅ سامان نه وو او تحیرانئ دا سے کارنامے به ئی اوکړے
چه صرف د جسمانی ژوند خاوندانو به نشوے کولے دا ژوند هغوی ته
د قُرآن او اسلام نه حاصل وو، د ابن جریر طبری په تفسیر کښے.

وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ ط در سورة آل عمران آية ۱۰۳ :-
د حضرت ابو قتاده وضاحت دا سے بیان شوے دائے ترجمهٔ) چه "د
عربو خلق ډیر ذلیل خوار او د بتولو نه زیات گمراه وُو هغوی سره نه
خوراك او نه پوشاك وو هغوی د رُوم او فارس غوندے د دُوو زمرو
په مینځ کښے ترلی وو دوی سره د پخخید و هیڅ خیز نه وو، هغوی د خوراك
نه محروم وو، تو دوگوانړی خلقو به هغوی خوړل تر دے چه اسلام راغے
اسلام ور نه یو کتاب (قُرآن) ورکړو چه هغه دوی لره د قومونو
سرداران او حاکمان جوړ کړل:-



## قُرآن رُوحانی غِذا ده

د غذا د پاره مونږ وپاندې دوه معیاره بیان کړی دی (۱) د طبیعت میلان (۲) او
ترقی (۱) قرآن طرف ته د ماتے خو دا حال دے چه د نړئ بل یو کتاب دومره
نشی لوستے خومره چه دا لوستے کیږی نړئ کښے د هیڅ کتاب دومره حافظان
نشته خومره چه د قرآن دی، حالانکه د دے غریبانو حافظانو ته نه د
مسلمانانو له طرفه څه عِوضانه ورکولے شی نه د قوم یا حکومت له طرفه
او یا خو د قرآن ژبه هم غیر عربو د پاره اُپراده چه د مجبوری نه بغیر
هغے ته طبیعت نه ورځی، هم د دے نه معلومیږی چه قرآن رُوحانی غذاده
څکه خو د دے پټولو مشکلا تو با وجود دے ته د طبیعت میلان شته.

(۲) دویمه خبره دا ده چه غذا خوړونکی ته د غذا نه ترقی او طاقت
حاصلیږی نو د قرآن تاریخ هم دا ښائی چه د قرآن په برکت کمزوری انسانان
طاقتور شول، بے اخلاقه بااخلاقه شول، لاندے خلق بَرَه او ناپاک خلق
پاک شول، د دے نه پس د هیڅ هم په دے کښ شک نه پاتے کیږی، چه قرآن
آسمانی غِذا ده چه د رُوح د پاره د آسمان نه نازله شوے ده او قُرآن با ندے
یقین لرونکو ته هم دے قُرآن هغه عظمت او شان ورا بخښلو چه د هغے
مثال په انسانی تاریخ کښے نشی موندے او دا شان یوائے د کلامِ الٰهی کیدے شی

## (۶) دلیل نظامی

قُرآن حکیم د انسانی ژوند د پاره دا سے نظام قائم کړے دے چه د هغے نه
بخپله دا یقین پیدا کیږی چه دا د خالق انسان له طرفه دے د انسان
جوړ شوے نه دے ځکه چه د انسانی ژوند راز ونه او رمزونه صرف
خالق حیات پیژنی نه چه بل څوك انسان چه کله هم د دے لاندے نه
واوریده او په یو انسانی لائحه حیات باندے د تنگ کوشش اکړونو
هغه ته امن او آرام نصیب نشو د قُرآن نظام حیات دومره کامل او د

ژوند په ټولو اړخونو باندے خور دے چه کچرے دَ هغې تفصیل بیان شي نو دیرغټ کتاب به ترجوړ شي لهٰذا مونږ د قُرآن د صداقت په غرض یو څو بنیادی اُصول پیش کوو،

(۱) دانسان تعلق دَ خالق کائنات سره (۲) دانسان تعلق د خپلو هم جنسو انسانانو سره،

(۳) دَ انسان تعلق د ټول عالم دَ کائناتو سره:-

(۴) دانسان دَ ژوند مقصد:-

(۵) دانسان دَ ژوند اخیری پړاوئ:-

(۱) پړومبے اصول ـــــ دَ انسان تعلق خالق کائنات سره:-

خالق کائنات دَ انسانی ژوند مرکز دے، دانسان ژوند، د هغې ضرورتونو د ژوند دَ ظاهری او باطنی فائدو اخری فیصله دَ خالق کائنات مرضئ سره تړلے دهٔ دَ خپل مرکز حیات نه دَ انسان جُدا کیدل د هغه مرګ دے او دَ هغې سره یوځائے کیدل دَ دهٔ حقیقی ژوند دے لهٰذا دَ انسان ټومبئ ذمه واری دا ده چه هغه دَ خالق کائنات په ریاندے په دے حیثیت (رشان) یقین اُلری۔ دانسان دے حیثیت ښکاره کولو دپاره قرآن ړومبے ارشاد اُفرمائیلو،-

خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ (سورهٔ ملك آیة عـ۲ـ) یعنے خالق کائنات دانسان د مرګ او ژوند خالق دے،- بیائے اعلان اُکړو،-

وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ (سورة النحل آیة ع۵۳) انسان ته ټول حاصل نعمتونه د خالق کائنات بخشش دے، بیائے ارشاد اُفرمائیلو چه انسان خپل کوشش سره چه کوم څیزونه حاصلوی د هغې آخری فیصله هم د قدرت په لاس کښے ده انسان له صِرف خپل کوشش نیاز بدل نه دی بکار۔

وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ (سورة التکویر آیة ع۲۹) ستاسو خوښه



## دَ الله دَ خوښے تابع دهٔ

قُرآن دَ سید الکائنات دَ خولے مبارکے نه دا اعلان اُکړو:-

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا : اعلان اُکړه چه زهٔ دَ خپل ځان د اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ط (سورهٔ اعراف آیة ۱۸۸) : بارهٔ هم د سود او زیان اختیار نه لرم ترڅو چه دَ الله خوښه دا فیصله اُنکړی:-

د دے خیالاتو لازمی نتیجه به دا وی چه (۱) رب العلمین سره به دَ انسان د مُحبت یو مضبوط رشته پیدا شي، چه کله هُم نشلیږی،

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ط : د ټولو نه زیات محبت دَ الله سره دَ ایمان سورهٔ البقرة آیة ع۱۶۵ : او یقین دَ خاوندانو وی هم د دے محبت دا ثبوت وی چه دَ هغه فکری او عملی ژوند دَ الله سره اُتړلے شي او دَ هغه ظاهر او باطن دَ الله په مخکښ سر ټیټے شي، دَ هغه ظاهر او باطن دَ الله په یاد وا باد شي او په کائناتو دَ هغه نظر دا سے وی چه هغه دا دَ جمال د محبوب صرف یو آئینه ګنړی، هغوی په ولاړے په ناستے او په ملاستے يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيَامًا وَّقُعُوْدًا وَّ : الله یادوی او په دے خیال او فکر په عَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ : آسمانونو او زمکے نظر اَچوی چه اے السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ : دَ عالم خالقه تا دا عالم بے مقصده نه هٰذَا بَاطِلًا ط (سورهٔ آل عمران آیة ۱۹۱) : دے پیدا کړے :

او دَ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ه : په تصور کښے دے د دین دُنیا دَ کامیابو چښمه رب العلمین ګنړی او اعتقادی، قولی او عملی عبادت صرف دَ هغه کوی، او دَ خپلو منډو ترړو نه پس د دین دُنیا دَ خپلو مشکلاتو دَ حل دَ پارهٔ هم دَ هغه مدد غواړی هغه خپله رضا دَ الله په رضا کښے ورکه کړی او دَ الله تعالیٰ په امر، نهی باندے عمل کول یعنے دَ هغه د حکمونو تعمیل د خپل ژوند ضروری حصه جوړ وی، قُرآن نه چه جا فائده (فیض)

حاصل کړے ده قرآن پخپله ددغوی حال پخپلو دے الفاظو کښے بیان کوی وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ: الله ستاسو په زړونو کښے د ایمان مینه فِیْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ: واچوله او ستاسو په زړونو کښے ورو وَالْعِصْيَانَ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الرّٰشِدُوْنَ: نو ستوا و ستاسو په زړونو کښے دکفر گناه او نافرمانئ کرکه واچوله هم خلق په سمه لار دی (سورهٔ حجرات آیة ۷)

داهم هغه څیز دے چه په دے دخالق کائنات او د مرکز حیات سره تړون پیدا کیږی او دا تړون بیا هغه څیز دے چه هغے سره دانسان زړه او دماغ ته تسلّی او آرام نصیب کیږی او د بټولو دنیوی پریشانو خاتمه اُشی اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ؕ (الرعد آیة ۲۸) صرف دالله په یاد زړونو ته اطمینان حاصلیږی۔

## دویم اُصول، دانسان دنورو انسانانو سره تعلق

دانسان ژوند په تمدن او اجتماعیت بنا دے یعنے په گډه وخت تیرولے شی بواځے په خپل ژوند ضروریات دنورو انسانانو په مدد حاصلوی۔ حجامت د پاره د نائی ضرورت مند وی، جامو د پاره د جولا د لوښو د پاره د کولال د مکان جوړولو د پاره د مستری او علاج د پاره د طبیب او ډاکټر محتاج وی دا رنګ د بے شمیره نورو ضرورتونو د پاره د بے شمیره نورو انسانانو محتاج وی، تر څو چه د ده د نورو انسانانو سره تعلق نه وی نو هغه ژوند نشی تیر ولے نو ضروری شوه، چه د انسانانو په مینځ کښے تعلق د پاره داسے بنائسته اصول وی چه انسان په هغے د اجتماعی ژوند فائدے حاصلولے شی۔ قرآن حکیم د حقوق انسانی متعلق داسے ښکاره احکام او جامع هدایات ورکړی دی چه په هغے عمل کولو سره دانسان دګډ ژوند د بے خوشحاله او پُرامن جوړیدے شی د تفصیلاتو ګنجائش نشته کښے دانسان دګډ ژوند د خوږے اصول قرآن



قائم کړی دی، (۱) د بشریت د یو والی اعتقاد یعنے د رنګ نسل او وطن داختلاف باوجود ټول انسانی قومونه د یو تبر مثال لری لهذا یو انسان د ټولو انسانانو سره هم هغه سلوک کوی کوم چه هغه د خپل تبر (خاندان) سره کوی، ځکه چه ټول انسان د یو مور پلار یعنی د آدم علیه السلام او د حوا اَیٔ اولاد دی،

(ب) رنګ، نسل او د ملک اختلاف صرف د پیژندګلئ د پاره دے د جنګ جګړو یا د کرکے د پاره نه دے۔

## دریم اُصول، دانسان دکائنات عالم سره تعلق

دانسان تعلق دکائناتو سره د خادم او د مخدوم په حیث دے کل کائنات د انسان په خدمت کښے لګیا دی انسان ته معلومه دی او که نه خوسفلی عناصر ټول یعنی زمکه، باد، اوبه او اور، د زمکے آسمان مینځ کښے وریځ او باران او برنی نمر، سپوږمئی او ستوری دا ټول په خپل خپل ځائے دانسان په خدمت کښے لګیا دی او د دی د ژوند ضرورتیاتو تیارولو کښے لګیا دی هم دغه حال د ځناورو، اُونو بوټو او د معدنیاتو دے چه د هر یو د فائدو تحقیق یو مستقل علم دے د دے حقیقت قرآن حکیم په دے الفاظو کښے اعلان کړے دے:-

خَلَقَ لَكُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا (اے انسانه د زمکے او د آسمان ټول څیزونه سورهٔ البقرة آیة ۲۹) ستا د فائدے د پاره پیدا دی)

وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ او لګیا کړی دی ستاسو د فائدے سورهٔ الجاثیة آیة ۱۳ د پاره د زمکے او آسمانونو ټول څیزونه دکائناتو دے تعلق معلومیدو سره په انسان باندے څو حقیقتونه پرانستے شی (۱) د دے جهان ټول برنی او لاندینی څیزونو کښے دانسان فائدے دی انسان له بکار دی چه د الُلیتوی د دے نه دانسان په زړه کښے په

چه دا د عربو عوام هم معلوم نه شي او د دې د پاره د عربي دبا ديکو ضرورت نه وي او نه په دې باندې د نه پوهيدو څه عذر قبول دې، (۳) چه صرف مجتهدين علماء پرې پوهيږي او عموماً دې ته تاويل ويلے شي مثلاً د فقهي احکامو استنباط، بيان د مجمل تخصيص د عام او تقييد د مطلق. حقيقت لغويه باندې حقيقت شرعيه ته ترجيح ورکول او حقيقت عرفيه ته په حقيقت لغويه باندې ترجيح ورکول خو هله چه په خلاف نې دليل قائم نه وي، لکه وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ: چه دليل په معنىٰ لغوي شته نو معنىٰ عرف به ترې مطلب نشي اغستے:-

(۴) څلورم هغه چه د هغې علم الله سره خاص دې، لکه د متشابهاتو د وخت د قيامت او د روح وغيره علم (الاتقان جلد ۲ ص ۱۸۲)

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ کښے د مذکوره آسانئ نه مطلب دويم قسم دې لفظ د ذکر کې دې قرينه ده چه يولځ هغه قرآني مضامين آسان کړے شوي دي چه وعظ او نصيحت سره تړون لري او هغه هم دغه دويم قسم دي. امام زرکشي دا تقسيم خوښ کړيدے، او په دې تقسيم کښے علماء سره چه کوم قسم خاص شوے دے هغه په عامه اصطلاح کښے تاويل بللے شي خو تاويل محمود په دې لا نه يني شرطونو مشروط دے که دا سے نه وي نو بيا تاويل مذموم او تحريف دے:-

(۱) دکوم ايت تاويل چه کيږي هغه به د وړاندينې آيت سره جوړ خوري (۲) د روستنې آيت سره به هم جوړ خوري (۳) د لغت په اعتبار سره د آيت په مطلب کښے د دے ځائے وي (۴) د کتاب الله او سنت رسول نه به خلاف نه وي:- الاتقان جلد ۲ ص ۳۱ کښے وي:-



قَالَ قَوْمٌ مِّنْهُمُ الْبَغَوِيُّ وَالْكَرَاشِيُّ التَّاوِيْلُ صَرْفُ الْآيَةِ إِلَىٰ مَعْنًى مُّوَافِقٍ لِمَا قَبْلَهَا وَمَا بَعْدَهَا تَحْتَمِلُهُ الْآيَةُ غَيْرَ مُخَالِفٍ لِلْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ:

د تاويل د صحت بغوي او کراشي د ۳ شرطونه نقل کړيدي (۱) د وړمبي ايت سره جوړ بنت (۲) د روستي ايت سره جوړ بنت (۳) د کتاب الله او سنت سره نه مخالف کيدل) امام زرکشي د علامه زمخشري نه دا پنځم شرط هم نقل کړے دے، چه د دے تاويل او تفسير نه د قرآن په معجزانه بلاغت کښے څه نقصان نه پيښيږي، بلکه اعجازي بلاغت په خپل ځائے باقي وي

قَالَ الزَّمَخْشَرِيُّ مِنْ حَقِّ مُفَسِّرِ كِتَابِ اللهِ الْبَاهِرِ وَكَلَامِهِ الْمُعْجِزِ أَنْ يَتَعَاهَدَ فِي مَذَاهِبِهِ بَقَاءَ النَّظْمِ عَلَىٰ حُسْنِهِ وَالْبَلَاغَةِ عَلَىٰ كَمَالِهَا (البرهان جلد ۲ ص ۳۱۱).

(۱) د مفسر قرآن د پاره دا ضروري ده، چه هغه د تفسير په ټولو لاروکښے دا خبره په نظر کښے ساتي چه د قرآن د نظم (عبارت) خوبي او د قرآن د بلاغت کمال په خپل ځائے پاتے وي،، دے نه پنځم بشرط هم معلوم شو د علامه زمخشري رائے بالکل صحيح ده د قرآني ايت اصلي مقصد د پاره په قرآني تفسير کښے اعجازي شان موجود دے کچرے معنے بدله شي او د خپلے خوښے معنے اخکرے شي نو د قرآني تفسير اعجازي شان به ختم شي او په قرآني الفاظو کښے د نظم قرآني او د سياق سباق د ارتباط او د دلالت شان د دغه ځائي معنے رانه مبلو په وجه کمزورے شي، (۲) کتاب او سنت کښے چه کوم بيان شوے دے هغه بونا قابل تقسيم آسماني حق دے نو د قرآن د کوم ايت چه تفسير کيږي نو دا به کتل پکار وي، چه دا تفسير يا مطلب په بل ځائے کښے د قرآن يا د سنت نبوي د مطالبو سره خو ټکره نه وهي

چه د انفسیر خپل ځانی او تحریف (که تګړه وهی نو دا به د دے خبرے دلیل وی) دے حق یو د بل سره نه ټکرا و یږی نو تفسیر به هم هغه صحیح وی چه په هغې کښے یو بل سره ټکرا و تعارض نه وی خو تعارض نه مطلب حقیقی تعارض دے هسے خو ظاهری تعارض مُضِر ځکه ندے چه هغه په قرآن کښے غور کولو سره ختمیږی، هم دغه وجه ده چه د هدایت په تفسیر کښے د مُفسِّر نظر د په ټول کتاب او سُنّت وی دے د پاره چه د هغه تفسیر د مجموعی کتاب او سنت نه خلاف نشی. (۲) دا رنګ د خیرالقرون (یعنے صحابهٔ تابعین او تبع تابعین چه د قرآن د پوهے یوغنه او مُمتاز برخه لری) د تفسیرو نو د مجموعی توګه ټیچرو سنے کوم تفسیر خلاف وی نو هغه به تحریف وی او د قبلولو قابل به نه وی، البته کچرے یو ماهر مُفسِّر د تفسیر د شرائطو په رڼا کښے داسے مطالب قرانی بیان کړی، چه سلفونه وی بیان کړی خو د هغې خلاف ئے هُم نه وی کړے، نو د داسے معارفِ قرانیه و دروازه د د سنو خلقو د پاره بنده هم نه ده او په قرآن کښے د صحیح غور او فکر په زور د معارفو او اسرارو د استخراج کار به تر قیامته جاری وی، په حدیث شریف کښے راځی. لَا يَنْتَهِي عَجَائِبُهُ: د قرآن عجیبه مضامین نه ختمیږی د دے متعلق د امام شافعی رح ارشاد دے

جَمِيعُ مَا تَقُولُهُ الْأُمَّةُ شَرْحٌ لِلسُّنَّةِ وَجَمِيعُ السُّنَّةِ شَرْحٌ لِلْقُرْآنِ وَجَمِيعُ الْقُرْآنِ شَرْحٌ لِلْأَسْمَاءِ الْحُسْنٰى وَصِفَاتِهِ الْعُلْيَاءِ: (ائمه مجتهدینو چه کوم احکام په اجتهاد رایاً بنکلی دی، هغه د حدیث او سُنّت شرح ده او پوره سنت د قرآن شرح ده او قرآن د الله تعالی د اسماء حسنیٰ او د صفاتِ عالیهٔ شرح ده) او د دے اسرارو متعلق د حضرت ابن مسعود رض ارشاد دے:

قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ رض مَنْ اَرَادَ الْعِلْمَ: خوک چه علم غواړی نو د قرآن



فَلْيُثَوِّرِ الْقُرْاٰنَ فَاِنَّ فِيْهِ عِلْمُ: د مضامینو لټون دِ اُن کړی ځکه الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ رَوَاهُ: چه په دے کښے د اوّلینو او آخرینو البَيْهَقِيُّ فِي الْمَدْخَلِ) : علم دے (مراد اصول د علم دی)

او هم په دے باره دا ارشادات د باری تعالی دی، تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ تَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ، غرض دا چه د دین ټول اُصول په قرآن حکیم کښے موجود دی او په فیضانِ الٰهی سره د الله تعالی په خاص بندګانو د قرآن نه د دین اسرار راڅرګندیږی د دے فیضان ذکر په روح المعانی جلد ۱ ص ۷ کوری، د دے قِسم فُیُوضاتو ته تفسیر اشاری وئیلے شی د باطنیه وُ په تفسیر اشاری کښے چونکه د ظاهری معنی انکار دے په دے وجه هغه مردود دے، د اهلُ السُّنة صُوفیه وُ چه کوم اشاری تفسیرونه کړی دی په هغې کښے اهم خلود دی، تفسیر نیشا پوری، تفسیر الآلوسی. المتوفی سنه ۱۲۷۰ ه تفسیر التستری سهل بن عبد الله التستری المتوفی سنه ۲۸۳ ه ولم یتم. (یعنے پوره نه دے) او تفسیر د محی الدین بن عربی المتوفی بدمشق سنه ۶۳۸ ه دا ټول صاحبان د قرآن ظاهری معنے تسلیم کولو نه پس اشاری تفسیرونه کوی چه د هغې متعلق زرکشی په برهان کښے لیکی:

كَلَامُ الصُّوْفِيَّةِ فِيْ تَفْسِيْرِ الْقُرْاٰنِ: د صُوفیه وُ کلام تفسیر نه دے بلکه قِيْلَ لَيْسَ بِتَفْسِيْرٍ وَّاِنَّمَا هُوَ مَعَانٍ: هغه واردات او وجدانیات دی وَمَوَاجِيْدُ يَجِدُوْنَ عِنْدَ التِّلَاوَةِ: چه هغوی د تلاوت په وخت محسوسوی) ابن الصلاح په خپله فتاوی کښے لیکی:

وَجَدْتُ عِنْدَ الْاِمَامِ اَبِي الْحَسَنِ الْوَاحِدِيِّ: ما د ابوالحسن الواحدی اَنَّهٗ قَالَ صَنَّفَ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيُّ: نه معلومه کړه هغه او وئیلے حَقَائِقَ التَّفْسِيْرِ فَاِنْ كَانَ اعْتَقَدَ اَنَّهٗ تَفْسِيْرٌ: چه عبد الرحمٰن السلمی

فَقَدْ كَفَرَ قَالَ ابْنُ الصَّلَاحِ اَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْهُ تَفْسِيْرًا وَلَا ذَهَبَ بِهِ مَذْهَبَ الشَّرْحِ لِلْكَلِمَةِ فَاِنَّهُ لَوْ كَانَ كَذَالِكَ كَانُوْا قَدْ سَلَكُوْا مَسَالِكَ الْبَاطِنِيَّةِ وَاِنَّمَا ذَالِكَ مِنْهُمْ ذِكْرُ نَظِيْرٍ لِمَا وَرَدَ بِهِ الْقُرْاٰنُ فَاِنَّ النَّظِيْرَ يُذْكَرُ بِالنَّظِيْرِ:

حقائق التفسیر لیکلے دے کچرے هغه دا تفسیر گنړی نو کافر دے ابن الصلاح فرمائی چه هغوی دا د تفسیر په توګه نه دے ذکر کړے او نه ئے د دغه لفظ تشریح گنړی، کچرے داسے وے نو دا باطنیت دے، داخو یواځے د قرآنی مدلول نظیر ذکر کړے دے، ځکه چه یو نظیر نه بل نظیر را یادیږی:)

د دے اقوالو نه معلومه شوه چه صُوفیه داسے قسم تفسیر نه بولی بلکه د قرآنی مقاصد و نظیر بیانوی او د دے سره د باطنیه ؤ او د صوفیه ؤ د تفسیر بیلتون را غلو او ل د قرآن د ظاهر نه اِنکار کوی لیکن صُوفیه د قرآن ظاهری معنی مقلو نه بعد داسے قسم بیان کوی، په مناهل العرفان جلد ۲ ص ۵۴۷ کښے دی:-

وَمِنْ هٰهُنَا يُعْلَمُ الْفَرْقُ بَيْنَ تَفْسِيْرِ الصُّوْفِيَّةِ الْمُسَمّٰى بِالتَّفْسِيْرِ الْاِشَارِيِّ وَبَيْنَ تَفْسِيْرِ الْبَاطِنِيَّةِ الْمَلَاحِدَةِ فَالصُّوْفِيَّةُ لَا يَمْنَعُوْنَ اِرَادَةَ الظَّاهِرِ بَلْ يَحُضُّوْنَ عَلَيْهِ وَيَقُوْلُوْنَ لَا بُدَّ مِنْهُ اَوَّلًا اِذْ مَنْ اِدَّعٰى فَهْمَ اَسْرَارِ الْقُرْاٰنِ وَلَمْ يُحْكِمِ الظَّاهِرَ كَمَنْ اِدَّعٰى بُلُوْغَ سَطْحِ الْبَيْتِ قَبْلَ اَنْ يُجَاوِزَ الْبَابَ:

د دے ځائے نه د صُوفیه ؤ د تفسیر اشاری او د باطنی مُلحدینو د تفسیر فرق معلوم شو، صُوفیه د ظاهری معنی انکار نه کوی، بلکه د هغے ترغیب ورکوی او وائی چه دا ډیره ضروری ده، ځکه چه د ظاهری مُراد د پخنګی نه بغیر د قرآن په اسرارو د پوهے دعوے داسے ده لکه چه څوک دعوی اُلری چه په دروازه د ننوتو بغیر څه د ننه کور ته لاړ م:



صاحب د مناهل د تفسیر اشاری قبلو لو د پاره پنځه شرطونه بیان کړی دی

(۱) ظاهری معنی دِ د قرآن خِلاف نه وی:-

(۲) دا دعوی دِ هم نه وی چه معنی مُراد ه یواځے معنی اشاری ده نه چه معنی ظاهری:-

(۳) د قرآنی الفاظو ډیر لرے تاویل دِ نه وی چه د الفاظو عربی حیثیت د هغے خِلاف وی:-

(۴) تفسیر اشاری دِ د شرع او عقل مُقابل او مُعارض نه وی:-

(۵) اِشاری مضمون دِ په شرعی دلیل مضبوط او مُؤید وی:-

مناهل العرفان جلد ۲ ص ۴۹ باندے امام ابن تیمیه رح د قرآن هر هغه تفسیر غلط بنودلے دے چه د صحابه ؤ او د تابعینو د تفسیر نه خلاف وی، اصول التفسیر کښے لیکی:-

وَفِي الْجُمْلَةِ مَنْ عَدَلَ عَنْ مَذَاهِبِ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ وَتَفْسِيْرِهِمْ اِلٰى مَا يُخَالِفُ ذَالِكَ كَانَ مُخْطِئًا فِيْ ذَالِكَ بَلْ مُبْتَدِعًا لِاَنَّهُمْ اَعْلَمُ بِتَفْسِيْرِهٖ وَمَعَانِيْهِ كَمَا اَنَّهُمْ اَعْلَمُ بِالْحَقِّ الَّذِيْ بَعَثَ اللّٰهُ بِهٖ رَسُوْلَهٗ انتهی:-

هر هغه تفسیر چه د صحابه ؤ او تابعینو د تفسیر نه خلاف وی نو د دے مُفسّر په غلطه دے بلکه بدعتی دے، ځکه چه د قرآن په تفسیر او د هغے په معنو دوی ډیر ښه پوهه وو لکه څنګه چه هغوی د حضور علیه السلام د راوړلی شوی حق ډیر زیات عالمان وو۔

امام سیوطی رح په اتقان جلد ۲ ص ۱۸۱ کښے هم د دے په باره کښے لیکی وَهُوَ نَفِيْسٌ جِدًّا چه دا ډیره قیمتی او اعلی خبره ده لیکن د دے سره لیکی چه د صحابه ؤ او تابعینو د سند د صحت تحقیق پکار دے ځکه چه په دے قسم روایاتو کښے ضعیف او موضوعی هم موجود دی هر دغه

یا اَلْاِعْلَامُ فِیْ خَفَآءٍ (فتح الباری ابتدا، جلد اول) یعنے بل ته پټ خبر ښودل، دا د وحی لغوی معنی دی، او د دے شرعی معنیٰ اَلْاِعْلَامُ بِالشَّرْعِ یعنے صرف شرعی احکام ښودل وحی ده. د وحی لغوی، درے قسمه دی

(۱) فطری (۲) ایجادی (۳) عرفانی

**فطری** لکه د خدائے پاك په الهام د نود و مچو کبین جوړول او په هغے کښے شهد جمع کول د غه رنګے د نورو حیواناتو کار نامے خو دا قسم وحی صرف حیواناتو (ژناورو خارو) دپاره وی، په قرآن کو بیان کښے دی:

وَاَوْحٰی رَبُّكَ اِلَی النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِیْ: موږ د شهد و مچو ته په وحی مِنَ الْجِبَالِ بُیُوْتًا (سورة النحل ایة ۶۸). فطری سره ښودل چه تاسو په غرونو کښے کبیتونه جوړ کړئ)

**ایجادی** لکه د یورپ سائنسدان چه یو آرخ ته مخه کړی او هغے دپاره کوشش کوی نو د غه مطلوب خیز صورت او نقشه الله پاک د ده په ذهن کښے واچولی او دغه خیز بیا جوړ شی، مثلاً رو ضبی سری هوائی جهاز جوړ ول غوښته هغه آول د الوتکے شکل ذرو لیده لے د یو الوتونکی خیز شکل ئے په خیال کښے راو ستلو و کار ئے پرے شروع کړو تجربے ئے کولے او تکلیفونه او تاوانونه ئے برداشت کول ترڅو چه قدرت د الوتکے مکمله نقشه د ده په ذهن کښے واچوله، د موجد کار خپل ذهن متوجه کول وو او د خدائے کار د مطلوب خیز نقشه جوړول دا هغه وحی او الهام دے چه عام و انسانانو ته کیږی هغه دی کافرو لے نه وی:

كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ: یعنی مومن او کافر دواړه چه کوشش رَبِّكَ وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُوْرًا کوی نو موږ د هغه مدد کوو ستا



سورة بنی اسرائیل ایة ۲۰ د خدائے بخشش او فیض په چا بند نه دے دا قسم وحی عامو انسانانو دپاره خاص ده اګرچه هغه کافر هم وی:

**عرفانی** دریم قسم وحی عرفانی ده چه اولیاؤ سره خاص ده هله چه یو ولی د شریعت په تابعداری او په ریاضت سره د زړه صفائی بیا مومی نو په ده باندے خاص علوم د الهام په ذریعه د الله د طرفه وارد یږی چه هغے ته قرآن اشاره کوی:

وَالَّذِیْنَ جَاهَدُوْا فِیْنَا لَنَهْدِیَنَّهُمْ: خوک چه د دین په لاره کښے او د سُبُلَنَا (سورة عنکبوت آیة ۶۹: الله په فرمانبرداری کښے محنت کوی نو موږ به هغوی د هدایت خاص لارے پرانیځو:

د دے هدایت مطلب الهامی معارف دی چه د هدایت ایمانی نه سوا دی، ځکه چه ایمانی هدایت خو د محنت کولو نه وړاندې هم حاصل دے دا درے واړه قسمه الهام په لغت او په معنیٰ عامه کښی وحی ده دا حیوان انسان اولیاءِ کرامو ته کیدے شی اګرچه د مرتبو فرق ( پکښی هغه دے چه کوم ما وړاندے بیان کړو او دا وحی یوازے د پیغمبرانو نه ده بلکه د پیغمبرانو وحی خاص وحی شرعی ده:

### وحی شرعی

څلورم قسم شرعی ده چه انبیاء علیهم السلام سره خاص ده خو هر نبی ولی هم وی نو هغه ته وحی عرفانی هم کیږی چه د هغوی حیثیت د وحی شرعی دے، چه د قانون او احکامو حیثیت لری بخلاف د ولی د وحی عرفانی چه هغه قانونی حیثیت نه لری او دا د علم کلام یو عام مسئله ده:- وَالْاِلْهَامُ لَیْسَ بِحُجَّةٍ عِنْدَ الشَّرْعِ: یعنے د ولی الهام قانون شرعی نشی جوړیدے، د وحی شرعی حقیقت دا دے چه د الله د جانبه د فرښتے په واسطه یا ښیغ په ښیغه په خوب یا په

(۱) د یو جسم په یو مکان کښې ښکاره کیدل لکه
نَزَلَ الْأَمِيْرُ الْمَدِيْنَةَ ، (امیر په ښار کښې ښکاره شو)
رَبِّ أَنْزِلْنِيْ مُنْزَلًا مُّبَارَكًا : ترجمه :- اے خدایه ما د برکت
سوره مؤمنون آیة ۲۹ : واله ځائے کښې ښکاره کړه.
(۲) د یو جسم پاندے نه لاندے را تلل، لکه
وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبَارَكًا : موږ د آسمانه د برکت اوبه راکوزے
کړې دی:
د قرآن حکیم الفاظ د جسمیت او مکانیت نه بهر (پاک) دی په دے وجه
د نزول قرآن مطلب اعلام (ښودل) دے مطلب دا چه قرآن په ذریعه
د فرښتے رسول علیه السلام ته ښودل' دا نزول قرآن دے او په
دے تعبیر (نزول) کښې د قرآن د شان لوئی ښکاره کول مقصود دی
(مناهل العرفان جلد ۱ ص ۳۲) چه انسان ته د لوړ مقامه پرخیز
راغلے دے، یا قرآن باندے د نزول اطلاق په دے اعتبار دے چه
جبریل علیه السلام د لوړ مقامه په زمکه راکوز شو دا خو حقیقت
دے نو په دے واسطه قرآن ته هم (نزول) منسوب شو.
(۳) دریمه معنی د نزول دا هم ده چه پخپله خو یو څیز راکوز نه شو
خو اسباب ئے د عالم بالا سره تړون لری چه ارادة الٰهی هم کیدے شی
یا آسمانی تاثیرات او هم په دے اعتبار سره اوسپنه څاروو او انسانی
لباس د پاره هم قرآن د (نزول) لفظ استعمال کړے دے.
وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَأْسٌ شَدِيْدٌ : موږ اوسپنه راکوزه کړه چه د هغه
وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ ، سورة الحدید آیة ۲۵ : نه د جنګ سامان هم جوړیږی،
وَأَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ : موږ ستاسو فائدے د پاره د
أَزْوَاجٍ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ : څاروو اته جوړے راکوزے کړیدی
سَوْآتِكُمْ ، سورة الاعراف آیة ۲۶ : موږ لباس راکوزه کړو چه د هغه
په اغوستو ستاسو د حیا ځایونه پرده شی،
دے درے وارو څیزونو اسباب آسمانی وی نو دے د پاره هم د
(نزول) لفظ استعمال شو.



نزول نه پیدا دوه نور لفظونه، (۱) اِنْزَال او (۲) تَنْزِيْل جوړیږی، (۱) تنزیل
په وار وار راکوزیدو ته وائی، او انزال په وار وار او په یو ځل راکوزیدو
د پاره استعمالیږی، لکه چه عذاب د پاره هم دے استعمال شوے
دے:-
إِنَّا مُنْزِلُوْنَ عَلٰٓى أَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ : موږ په دے کلی د آسمانه عذاب
رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ (سورة عنکبوت : نازلوونکی یو
آیة ۳۴)
ښکاره خبره ده چه عذاب په یو ځل نازل شویدے. او قرآن په
وار وار او د دے دوارو د پاره د (انزال) لفظ استعمال شو، فرمائی
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ أَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ : ټولے خوبئ د هغه الله دی، چه په
الْكِتَابَ (سورة کهف آیة ۱) : خپل بنده ئے دا کتاب نازل کړو
(مفردات امام راغب ص ۵۰۲):

## د قرآن درے تنزلات

(۱) نُزُوْلِ اَوَّل — د بارګاه خداوندی نه لوح محفوظ ته نزول، چه هغه
دے آیت کښے ذکر دے. بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ مَّجِيْدٌ فِيْ
لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ○ سورة البروج آیة ۲۱ و ۲۲:
(۲) دویم نزول — د لوح محفوظ نه د لاندینی آسمان د بیت العزة
مقام ته نزول چه په سورة دخان سورة
قدر او سورة بقره کښے ذکر دے.

إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ ؛ هم موږ دا په مبارکه شپه کښے نازل کړے دے.
(سورۃ دُخان آیة ۳)

إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ ؛ هم موږ دا په شپه د قدر کښے نازل کړے دے.
(سورۃ القدر آیة ۱)

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ (سورۃ البقرۃ آیة ۱۸۵) ؛ د رمضان میاشت هغه ده په کومه کښے چه دا قرآن نازل کړے شوے دے.

دے ټولو درے وارو (نزول) مطلب په یوځل نازلیدل دی، شپه د قدر او شپه مبارکه دواړه یو دی او په رمضان شریف کښے دی نو ایتونو کښے هیڅ تعارض نشته لکه څنګه چه مستدرک، حاکم او نسائی او بیهقی هم دا ابن عباس رض نه نقل کړی دی.

## (۳) دریم نزول

دریم نزول د جبریل علیه السلام په واسطه د نبی علیه السلام په زړه مبارک شویدے، لکه فرمائی الله جل شانه

نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ ۝ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ ۝ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ۝ (سورۃ الشعراء آیة ۱۹۳ تا ۱۹۵) ؛ دا روح الامین ستا په زړه راکوز کړے دے، چه نه ویروونکے شے په صفا عربی ژبان کښے.

دا نزول تقریبًا په درویشت کاله کښے مکمل شو، د لته دا شبه کول بے ځایه دی چه د نبی علیه السلام په زړه مبارک د قرآن د نزول مطلب دا چه صرف معانی به نازل شوی وی الفاظ به نه وی نازل ځکه چه د قرآن (بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ۝) الفاظ دا ګواهی ورکوی، چه د قرآن الفاظ هم نازل شوی وو، ځکه چه الفاظ د ژبان (ژبے) وی.

قرآن دوه کرته په یوځل نازل شویدے اول کرت په لوح محفوظ کښے او



او دویم کرت د دُومبی آسمان په بیت العزت مقام کښے او دریم کرت نزول ئے په وار وار په حضور علیه السلام اُشو، نور آسمانی کتابونه په یوځل په کتابی صُورت کښے نازل شوی دی د قرآن دا دواړه قسمه (په یو ځل، په وار وار) نزول دا بنائی چه د خدائے حِکمت فرښتو ته دا ښودل وو، چه دا آخری کتاب دے. یا د دُومبی آسمان ته د نازلولو مطلب د نبی علیه السلام شوق زیاتول وو، ځکه چه د محبوب شے راتلل دے کیدل شوق نور هُم زیاتوی. یا دا حکمت وو چه د قرآن د مکمل حفاظت یقین راشی او شک شُبه بالکل ختم شی (مناهل العرفان جلد ۱ ص ۳۶ تا ۴۰)

د الله حقو دا خیال دے، چه د قرآن د حفاظت مُکمل انتظام کول په دے وجه مقصود وو چه دا آخری کتاب دے. یو ځل د عمومی انتظام په صورت کښے قرآن په لوح محفوظ کښے محفوظ کړے شو چه د حکومتِ الهیه مرکزی محافظ خانه ده- دویم ځل په بیت العزت کښے د آسمانی حفاظت انتظام اُشو او دریم ځل د نبی ع په زړه نازلیدو سره د زمینی حفاظت انتظام اُشو، په خلورم ځل د اُمت په سینو د دے د حفاظت انتظام اُشو لکه فرمائی: إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ (سورۃ الحجر آیة ۹)

پنځم ځل د حضرت ابو بکر، عُمر او عثمان رضی الله عنهم اجمعین په ذریعه د تحریر په صُورت کښے د دے د حفاظت انتظام اُکړے شو په زړه دلو کښے خبره اچوونکے او په سینو کښے محفوظ کوونکے یواځے الله دے،

جبرائیل علیه السلام قرآنی الفاظ څنګه حاصل کړل،

صحیح خبره دا ده چه جبرئیل علیه السلام الله نه قرآن واوریدو او د دے الفاظ ئے حاصل کړل، لکه څنګه چه بیهقی د (إِنَّا أَنزَلْنَاهُ) په تفسیر کښے لیکلی دی او د دے تائید د طبرانی هغه حدیث شریف دے چه د

نواس بن سمعان رضی الله نه مرفوعاً نقل کړے دے:

| إِذَا تَكَلَّمَ اللهُ بِالْوَحْيِ أَخَذَتِ السَّمَاءُ رَجْفَةٌ شَدِيدَةٌ مِّنْ خَوْفِ اللهِ فَإِذَا سَمِعَ أَهْلُ السَّمَاءِ صَعِقُوا وَخَرُّوا سُجَّدًا فَيَكُونُ أَوَّلُهُمْ يَرْفَعُ رَأْسَهُ جِبْرَائِيلُ فَيُكَلِّمُهُ اللهُ بِوَحْيِهِ مَا أَرَادَ فَيَنْتَهِي بِهِ حَيْثُ أُمِرَ | څه وخت چه الله تعالیٰ د وحی کلام کوی نو آسمان د خدائے د ویرے نه رږیږی څه وخت چ د آسمان فرښتے واوری نوبیہو شی او په سجده پریوځی د ټولو نه وړومبے جبرئیل علیه السلام سر |
| --- | --- |

راپورته کوی نو الله تعالیٰ د وحی کلام هغه سره اوکړی چه کوم ځائے ته ورته حکم اوشی هلته د خدائے وحی اورسوی:

د جبرئیل علیه السلام د وحی حاصلولو غیبی معامله ده په هغے کښے درائے څه خدشه نشته لهٰذا د صورت د ټولو نه زیات غوره دے، په مناهل العرفان جلد ۱ صفحه ۴۳ کښے الله تعالیٰ نه د جبرئیل نبغ په نیغه روحانی حصول او د لوح محفوظ نه حاصلول هم ذکر دی

## د قرآن نازل شوی الفاظ

کلام د انسان په ذهن کښے وی بیا ئے په ژبه د الفاظو په شکل کښے ادا کوی

دا کلام که کوم یو نه خلق هم وائی نو دغه رومبی کښ کلام به بللے شی مثلاً د امروؤ القیس قصیده یا د حریری مقامات چه څوک هم لولی او وائی نو دا به هم د امروؤ القیس او د حریری کلام ګڼړلے شی، دغه د الله تعالیٰ خپل کلام د قرآنی الفاظ په شکل کښے ظاهر کړو بیا جبرائیل علیه السلام اولوستو حضور علیه السلام اولوستو په اربونو انسانانو اولوستو او لولی به ئے مګر کلام به د الله ګڼړلے شی نه چه د جبرئیل علیه السلام یا د محمد علیه السلام په قرآن کښے دی ﴿حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ﴾ و ﴿بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ﴾ د هغه نه ښکاره ثابتیږی چه د قر



الفاظ د الله د جانبه دی، او دا د الله کلام دے، کچرے مضمون دیو زید وی او د دغے مضمون ادا په الفاظو د بل (عمرو) وی نو دے نه به د زید کلام نه بلکه د عمرو کلام ویلے شی په دے وجه چه د قرآن الفاظ او معنے دواړه د الله د جانبه دی او قرآن له هم د دے ذات ترتیب شوے دے، موږ نور زیات د خبرو په ولو نو کښے ځان نه نسلوو ځکه چه څه ډیره فائده ئے نشته، په مناهل العرفان کښے دا پوره ذکر مضمون شبته دے:-

## د قرآن، سنت او د حدیث قدسی بیلتون

امام سیوطی رحمه الله د امام جوینی نه نقل کړیدی، چه د قرآن الفاظ او معنے دواړه د جبرائیل علیه السلام په واسطه د الله تعالیٰ د جانبه نازل دی او د حدیث مضمون د الله د جانبه دے مګر الفاظ د رسول الله صلی الله علیه وسلم دی، (اتقان جلد ۱ صفحه ۴۴) او حدیث قدسی به هغه وی چه الفاظ ئے هم د الله د جانبه وی لیکن معجزه نه وی او نه د هغے د الفاظو په تلاوت هغه ثواب حاصلیږی کوم چه د قرآنی الفاظو په تلاوت حاصلیږی او نه ئے په مونځ کښے د دے لوستلے کیدے شی (مناهل العرفان فی علوم القرآن جلد ۱ صفحه ۴۴)

د احقر په رائے کښے د حدیث نبوی او حدیث قدسی دواړو مضمون د الله د جانبه دے لیکن د حدیث نبوی نسبت الله تعالیٰ ته کول معنوی دی، مطلب د جانبه د الله خو مضمون دے لیکن په ښکاره الفاظو کښے ئے نسبت الله تعالیٰ ته نه دے شوے مګر د حدیث قدسی نسبت په ښکاره الفاظو کښے الله تعالیٰ ته کول ځکه ضروری دی چه دا د الله تعالیٰ حکم او امر دے او هم په دے وجه د حدیث قدسی الفاظ بدلول او روایت بالمعنیٰ جائز نه دے او د حدیث نبوی جائز دے

خو په شرط د دے چه اصلی معنو کښے ئے فرق را نشی همدغه وجه ده چه حدیث قدسی ته ئے حدیث اُوئیل چه الفاظ نبوی د پاره دا (حدیث) خاص دے د (قدسی) لفظ زیاتے د بنکاره نسبت په وجه شوے دے چه د حدیث نبوی نه د دے زیات اهمیت او خصوصیت ثابت شی، والله اَعْلَمُ :-

## د وحی د نازلیدو قسمونه

د وحی نازلیدل به یا په ذریعه د فرښتے وی یا نیغ په نیغه د الله د جانبه

## د دویمی قسم بیا درے قسمه دی

(۱) وحی تصلصلی (۲) وحی تمثلی (۳) وحی رُوعی

(۱) وحی تصلصلی کښے جبرئیل علیه السلام په خپل اصلی حقیقت (ملکیت) باندے قائم وی او وحی راوړی، چه په حدیث د بخاری کښے دے ته ډیره سخته وحی ویلے شوے ده، فرمائی (وَهُوَ اَشَدُّهٗ عَلَیَّ) دا شدت په دے وجه دے چه بشریت او ملکیت دواړه یو ځائے کیدل ډیر لوے پیښے ځکه دے چه فرښته او انسان یو جنس نه دے او بله وجه ئے دا ده چه نبی علیه السلام د بشریت نه ملکیت ته عُروج اُکړی گویا کښ دواړه حضرت جبریل او حضور علیهما السلام) فرښتے خپل منبع کښے یو ځائے شی او دا ځکه پیښے دے چه گویا کښے د حضور علیه السلام جنس بدل شی د د بشریت نه ملکیت ته او دا څه آسان خبره نه ده :-

(۲) دویم وحی تمثلی ده چه جبرئیل علیه السلام د انسان په شکل کښے وحی راوړی په دے صورت کښے حضرت جبرئیل علیه السلام د ملکیت نه بشریت ته تنزل اُکړو او د وُهم جنسو یو ځائے کیدل څه پیښے نه جوړوی دا دواړه قسمه وحی را او د دویمی قسم وحی شدت د بخاری په ابتدا کښے ذکر



او قرآنی وحی عمومًا په دے دوؤ طریقو راغلے ده :-

(۳) دریم قسم وحی رُوعی ده : چه جبرئیل علیه السلام وحی په زړه مبارک د نبی علیه السلام د الله په حکم نازله کړی او د حضور علیه السلام د آوریدو (په غوږو مبارکو) هغے سره څه تعلق نه وی :-
(اَخْرَجَهُ الْحَاکِمُ)

## د بالذات (نیغ په نیغه) وحی دوه قسمه دی

(۱) په ویښه لکه د معراج په شپه د الله د جانبه نیغ په نیغه (بلا واسطه) په وحی شوے وه :-

(۲) یا په خوب کښے لکه د حضرت معاذ رض په حدیث کښے دی، آتَانِیْ رَبِّیْ فَقَالَ فِیْمَ یَخْتَصِمُ الْمَلَاُ الْاَعْلٰی، یعنے خوب کښے ما ته الله تعالیٰ راغے او وے فرمائیل چه د عالم بالا فرښتے په څه کښے بحث کوی (اتقان جلد ۱ ص ۴۳)

# پنځم فصل

## (د قرآن جمع کول او د هغے تدوین)

قرآن د خالق کائنات آخری کتاب دے، ځکه الله تعالیٰ د دے د محفوظ ساتلو مکمل انتظام اُکړو عالم بالا کښے ئے په لوح محفوظ او بیت العزت کښے محفوظ کړو او په زمکه ئے د دے د حفاظت دوه قسمه انتظام اُکړو، یو حفاظتِ صدری، چه د نبی علیه السلام او د اُمت په زړونو کښے ئے د دا غو کښے ئے محفوظ کړو، چه دا قرآن پخپله ذکر کړیدی په بخاری کښے د ابن عباس رض نه منقول دی، چه د قرآن د نازلیدو په وخت به جبریل علیه السلام سره حضور علیه السلام لوستل او تلاوت کولو د کښے قرآنی وحی محفوظه شی تر دا آیت نازل شو :-

لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ط دزړه د کولو د پاره نه په دے اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ۝ سورة : خپله ژبه مه خوزوه خوښ په القيامة ايت ع۱۲ و ۱۷) ذمه دی دده جمع کول ستا سينه کښے او لوستل ستا په ژبه

ده نه پس به دوی عليه السلام په چپه خوله د قرآن وحی آوریده او هم د غسے به ئے یا دیدله او نورو خلقو ته به ئې رسوله دا رنګ د قرآن د حفظ ذمه واری یو بل ځائے کښے الله پخپله اخستے ده . فرمائی . سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰى " : مونږ به تا نه (قرآن) لولو بيا به تا نه هيريږی . د اُمت په سينو کښے د قرآن محفوظ کولو ذکر هم قرآن کښے شته فرمائی بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ (د قرآن شکاره ايتونه دی چه د اهل علمو په سينو کښے موجود دی :-

قدرت دا اخری کتاب په سينو کښے محفوظ سا تل غوښته نو دے د پاره د زوميے نه دا سے قوم جوړ کړو چه د هغوی حافظه بيمثاله وه د هغوی سينے د قومی وا قعا تو او د قبائلی نسبونو خزانے وے او دوی به يو ځل د سوو لو شعرونو قصيدے چه واوريدے نو ورته به ياد شوے او د عربو تاريخ په دے ګواه دے ، او بيا دا تالو سے قوم وو د دوی د هر آوريدلی شوی شی ټول دارومدار په قوت حافظه باندے وو نو د دوی دے قوت حافظے له قرآن او اسلام نور هم ترقی ورکړه او دا نور هم زيات شو د دے نه بغير عربو سره د قرآن محفوظ سا تلو د پاره د هغوی د زړه لګولو ، او شوق زياتولو نور اسباب او محرکات هم چه د هغے په زور دوی د خپل ذهن او دماغ قرآن یا دولو ته دلته زيا ته مخه کړه چه هغه دا دی

**اول محرک** د عربو ساده او د تکلف نه خالی وو ، د هغوی ژوند



ضروريات ډير مختصر وو چه هغه د پاره د ډير محنت او منډو ترړو ضرورت نه وو چه کوم به ئے بيا مونده نو هم په هغے به ئے قناعت کولو او نور وخت به ئے مخه نه اوړه هم په دے وجه د هغوی ژوند فارغ وو او د قرآن د حفظ د پاره دوی سره ډير ازګار وخت وو مطلب دا چه د ازګار وخت زياتوالے هم يو سبب او محرک وو :

**دويم محرک** قرآن او وحی سره د دوی د حد نه زيا ته مينه او عشق وو او دا دواړه دا سے څيزونه دی چه د يو څيز را بنکلو او حاصلولو د پاره د ټولو نه لوئے محرک دے چه دوی ئے ، د يو عاشق په شان په قرآن يا دولو مجبوره کول د صحابه کرامو قرآن سره د عشق او محبت ډير تاريخی واقعات موجود دی چه د دے کښے د شک کولو هيڅ ځائے نه پاتے کيږی هر کله چه يو څيز سره د مضبوط حافظے والا قوم په عاشقانه توګه محبت پيدا شی نو بيا د هغه څيز ډير زر یا دول شی :-

**دريم محرک** د قرآن حيران کن او تعجب پيدا کونکے رنګ دريم محرک وو ، خصوصاً چه ټول د عربو فصيحان او بليغان د دے د مثل راوړو نه پاتے راغلی وو او دا هم د صحابه کرامو خپل ځان ته د را بنکلو يو باعث وو ، ځکه چه د انسان په طبيعت کښے دا پراته دی چه هغه د هر عجيبه او نا آشنا څيز د یا دولو کوشش کوی لهٰذا دے محرک هم د صحابه کرامو زړونه د قرآن یا دولو ته را تيټ کړه او دوی په پوره توجه سره د دے په یا دولو کښے لګيدلو او د قرآن حيران کن اعجاز په دوی کښے د دے د یا دولو زبردست جذبه او اشتياق پيدا کړو

**څلورم محرک** په حديث کښے د قرآن په زده کړے او د دے په یا دولو او په دے د عمل کولو ترغيب ورکړے

شوے دے چه په هغې دَ صحابه کرامو ایمان او کامل یقین وُو تر دے حده چه په قرآن عمل کولو باندے به هغوی ښځې بچې ځانونو قربانو لو څخه اوو بار کولو، او کله به چه صحابه کرامو دَ ترغیب الهٰی آیتونه واورید ل نو دَ هغوی دَ شوق او دَ به نور زیات په لمبو شو مثلاً دا آیتونه:-

(۱) اِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتٰبَ اللّٰهِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ (سوره فاطر ایة ۲۹)

(۲) كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْا اٰيٰتِهٖ وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ۝

دَ صحیح مسلم په روایت دَ حضرت عثمان رض یو حدیث شریف دے خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَعَلَّمَهٗ: په تاسو کښے دَ ټولو نه زیات ښه هغه کس دے چه قرآن زده کړی او بل ته ئے زده کړی:-

او بل حدیث دَ عبدالله بن مسعود رض په روایت دَ ترمذی دے مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِّنَ الْقُرْاٰنِ فَلَهٗ بِهٖ حَسَنَةٌ وَّالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا لَا اَقُوْلُ الٓمّٓ حَرْفٌ بَلْ اَلِفٌ حَرْفٌ وَّلَامٌ حَرْفٌ وَّمِيْمٌ حَرْفٌ:

په دے حدیث کښے دَ قرآن په یو یو لفظ دَ لسو لسو نیکو بدله او ثواب مومن لوو عده شوے ده نو دا سے قسم ترغیبا تو او تشویقاتو به په صحابه کرامو دیر غټ اثر غورځیده و کوم نه چه قرآن او حدیث ډک دے، همدغه وجه وه چه صحابه کرامو خپل ټول ژوند دَ قرآن په حفظ کولو کښے تیر کړو:-

**پنځم محرک** | دَ صحابه کرامو دَ دین دَ نجات اُکی یوه ذریعه هم دا قرآن وو دوی به خپله ټوله کته او کامیابی هم قرآن سره تړله او دا عشق جذبه او یقین دَ دے باعث شو چه هغوی به قرآن دَ دے دَ عاشق په توګه یا دولو:-

**شپږم محرک** | صحابه کرامو به قرآن حکیم په لمانځه کښے په



تراویحو کښے لوستلو دَ ژوند په ټولو کارونو کښے به ئے هم په دے فیصلے کولے په عقائدو، عباداتو، اخلاقو او اعمالو کښے به کَه دے په هدایت تلل غرض دا چه اسلامی ما حول او معاشره کښے دَ قرآن حفظ دَ یر عزت او شرافت ذریعه وه نو ځکه دَ دے باعث شو چه قرآن یوفظ یاد کړے شی:

## دَ قرآن یادول او صحابه کرام

دَ دے تیر وشوو محرکاتو اثر وو چه صحابه کرامو خپله ټوله عمر قرآن یاد دولو نه کړے وه - دَ عرب و قبائلو دیر لرے لرے منزلونه کول او دَ قرآن دَ یادولو دَ پاره به مدینے منورے ته راتلل او نبی علیه السلام به هُم قاریان او حافظان دَ قرآن، قبائلو ته په دے غرض لیږل چه قرآن هغوی ته وَرِ یاد کړی په صفر سنه ۴ هـ دَ ابو براء په درخواست نجد یا نو ته دَ قرآن دَ تعلیم او تبلیغ په غرض دَ حضرت منذر بن عمرو ساعدی په مشری کښے د اویا دَ قاریانو یو ټولے حضور علیه السلام ورو لیږلو خو دَ عامر بن طفیل په ټګئ سوا دوو صحابه کرامو منذر بن محمد رض او عمرو بن اُمیه رض ټول شهیدان کړے شو دَ شهید کیدو په وخت چه حرام بن ملحان رض ته نیزه پورے را پورے اُو ته نو هغوی اُوفرمایل اَللّٰهُ اَكْبَرُ فُزْتُ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ (الله اکبر خُدا دَ کعبے په پروردګار قسم وی چه زه کامیاب شوم)

دَ دے ټولی نوم (سَرِيَّةُ الْقُرَّاءِ ط) وُو او هم دَ دینه په دغه وخت کښے دَ قاریانو او دَ حافظانو دَ ګنړوالی پته لګی (فتح الباری جلد ۷ صـ ۲۹۶)

علامه ذهبی په طبقات القُرّاء کښے دَ اُوو مشهورو حافظانو او قاریانو نومونه ښودلی دی کوم نه چه دَ قاریانو دَ قرأت سند رسیږی، هغه دا دی، (۱) عثمان بن عفان رض (۲) علی بن ابی طالب رض (۳) اُبی بن

کعب رضؓ (۴) عبد اللہ بن مسعود رضؓ (۵) سالم مولیٰ رضؓ (۶) ابی حذیفہ (۷) معاذ بن جبل رضؓ چہ پہ دے کښے اُبی بن کعب رضؓ دَ قاریانو سردار دے پہ مفتاح السعادات جلد ۱ کښے دی چہ ابوموسیٰ الاشعری پُورہ قُرآن یاد کړے وو او حضور علیہ السلام تہ ئے واوروّلو، پہ صحابہ کِراموکښے لس زرہ حافظان صحابہ کِرام ډیر مشهُور وو چہ پہ هغوی کښے اُوہ دیرشو تہ اعلیٰ مقام حاصل وو دَ هغوی نُومُونہ دا دی (۱) ابوبکر صدیق رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۲) عُمر فاروق رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۳) عُثمان بن عفان رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۴) علی بن ابی طالب رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۵) عبد اللہ بن مسعود رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۶) طلحہ رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۷) سعد بن ابی وقاص رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۸) حذیفہ بن الیمان رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۹) ابوهریرہ رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۱۰) عبادۃ بن الصامت رضی اللہ عنہ (۱۱) معاذ بن جبل رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۱۲) مجمع بن حارثہ رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۱۳) فضالہ بن عبید رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۱۴) ابوموسیٰ اشعری رضی اللہ تعالیٰ (۱۵) عمرو بن العاص رضی اللہ تعالیٰ عنہ (۱۶) سعد بن عبادہ رضی اللہ تعالیٰ (۱۷) عبد اللہ بن عباس رضؓ (۱۸) ابوایوب انصاری رضی اللہ (۱۹) عبد بن ذو ذوالبجادین رضی اللہ تعالیٰ (۲۰) عبیدہ بن مُعاویہ بن زید بن ثابت رضی اللہ تعالیٰ (۲۱) ابوزید رضی اللہ تعالیٰ (۲۲) سالم مولیٰ ابی حذیفہ رضی اللہ تعالیٰ (۲۳) سلمہ بن مخلد بن الصامت رضی اللہ تعالیٰ (۲۴) سعد بن عبید بن نعمان الانصاری رضی اللہ تعالیٰ (۲۵) زید بن ثابت رضی اللہ تعالیٰ (۲۶) اُبی بن کعب رضی اللہ تعالیٰ (۲۷) عبد اللہ بن السائب رضی اللہ تعالیٰ (۲۸) سلیمان بن ابی حثمہ رضی اللہ تعالیٰ (۲۹) تمیم الداری رضی اللہ تعالیٰ (۳۰) معاذ بن الحارث رضی اللہ تعالیٰ (۳۱) ابوالدرداء رضی اللہ تعالیٰ (۳۲) عُقبہ بن عامر الجُهنی رضی اللہ تعالیٰ (۳۳) عبد اللہ بن عُمر بن الخطاب رضی اللہ (۳۴) سعد بن المنذر بن اوس رضی اللہ تعالیٰ (۳۵) قیس بن صعصعہ رضؓ



(۳۶) عبد اللہ بن عمرو بن العاص رضی اللہ (۳۷) ابوحلیمہ معاذ رضؓ (بحوالہ تهذیب، طبقات ابن سعد، تذکرۃ الحفاظ ذهبی، مفتاح السعادات، اتقان، صحیح البخاری) دا خُو دَ پُورہ قُرآن دَ حافظان لنډ بیان دے او چا تہ چہ نیمګړے قُرآن یاد وو دَ هغوی خو شمیر نشی کیدے او دا دَ قُرآن دَ حافظانو رُوحیے دَور وو تو اسلام چہ څومره به خوریدو هومره به ورسره حافظان دَ قُرآن هم زیاتیدل، سر ولیم میور غوندې دَ اسلام دُشمن هم خپل کتاب "لائف آف محمد" کښے اِقرار کړے چہ د صحابہ کِرامو حافظه (یادداشت) بے مثاله وه لکه چہ لیکی چہ دَ دوی حافظه ډیره اُوچته وه خو دَ قُرآن د پاره به ئی دا دیره زیاته استعمالوله، دَ دوی حافظه دومره مضبُوطه وه او محبت ئے هُم دومره قوی وو چہ اکثرو صحابه وُ دَ پیغمبر علیه السلام په حیاتِ مُبارک کښے به وحی صحیح لوسته او یادوله، په شپږمه صدئ عیسوی کښے عرب ئیه چہ تقوله دُ نیا کښے دیکونکو لوستونکو خلقو شمیر ډیرو کښے یو نه هم کم وو د پریس او چاپ خانے انتظام نه وو په دے دَ دوی زیات کار به په یادولو روان وو کوندای په بیخو تحریرونو کښے خو زیاتے کمے او سنتل ډیر آسان وو، هم دغه وجه ده چه دَ دُنیا ټولو مذهبی کتابونو کښے تحریف اُشو. قُرآن حکیم په زمانه دَ پیغمبری کښے په زرګونو سینو کښے پُوره محفُوظ وو او لکھونو سینو کښے نیمګړے محفوظ وو دا بیان په سورۃ عنکبُوت کښے شوید ے،

بَلْ هُوَ اٰیٰتٌۢ بَیِّنٰتٌ فِیْ صُدُوْرِ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ (سورۃ عنکبوت ایۃ ع ۴۹) قرآن دَ واضحو آیتونو مجموعه ده چه دَ اهلِ علمو په سینو کښے محفُوظ دی؛

دَ قُرآن دَ یادولو او دَ تلاوت کار ټولو مُسلمانانو جاری ساتلو، مُسلمانانو به څکه قُرآن په نمونځ کښے لوستو چه د دے لوستہ په نمانځ کښے فرض وه

تر دے چه عثمان غنی رضی الله تعالیٰ عنه او تمیم داری رض به په یو یو رکعت کښے ټول قرآن ختمولو (تهذیب التهذیب و استیعاب) عبد الله بن عمر او عبد الله بن عمرو العاص به په یو شپه کښے قرآن ختمولو (فتح الباری) سعد بن المنذر به په درے ورځو کښے قرآن ختمولو (اسد الغابة) د سلفو د قرآن د تلاوت دا حال وو چه به بعضے شوا روز کښے اته کوته قرآن شریف ختمولو، یعنی څلور ختمه د ورځے او څلور ختمه د شپے بعضے به د ورځے درے کړ نه او بعضے به دوه خو حالا تکه حضور علیه السلام د درے ورځو نه کم وخت کښے د قرآن شریف د ختمولو نه منع کړیده، چه د قرآن د مطالب په پوهه کښے څه نقصان رانشی، ترمذی کښے عبد الله بن عمر رض مرفوعاً روایت کړے دے:-

لَا يَفْقَهُ مَنْ قَرَءَ الْقُرْآنَ فِيْ اَقَلِّ مِنْ ثَلٰثٍ. (اتقان جلد ۱ ص ۳)

په سینو کښ د حفاظت دا انتظام هیڅ یو انسانی کتاب ته نصیب شوے نه دے کوم کتاب چه د مسلمانان په غوبنه خرمن څه چه په زرګ زرګ او په زره او دماغو کښے ننوتے وی او مشرق او مغرب دواړو کښ د دے داسے حافظان موجود وی چه د هغوی الفاظ او حروف بالکل یو شان وی، څه کمے زیاتے پکښے نه وی، د دے بیمثله انتظام باوجود د قرآن په حفاظت کښے بیا هم د چا شک شبه کیدے شی:-

## د قرآنِ حکیم تحریری حفاظت

په اتقان کښے د مستدرک حاکم په حواله نقل دی چه قرآن په تحریری صورت کښے درے کرته جمع شوے دے (۱) د پیغمبر علیه السلام په زمانه کښے (۲) د ابوبکر صدیق رضی الله په زمانه کښے (۳) د حضرت عثمان رضی الله تعالیٰ عنه په زمانه کښے د اوومبئ دوه جمع په بخاری وغیره کښے د زید بن ثابت الانصاری د روایت نه ثابتے دی (اتقان جلد ۱ ص ۵۹ تا ۶۰). او دا دریمه جمع،



یعنے عثمانی جمع د حضرت حذیفة بن الیمانی د روایت نه منقوله ده د دے درے واړو جمعو په نوعیت کښے فرق وو، د رومبی قسم (نبوی) جمع مقصد دا وو چه قرآن ضائع نشی نو ځکه قرآن په مختلفو څیزونو لیکلے شو - څه خو د سپینو کانړونو جوړے کړو تختو باندے، څه د سپینو څرمنو په ټکړو او څه د کړکی په هوارو تختو باندے، نو دا جمع د یو کتاب په شکل کښے نه وه د صدیقی رض جمع مطلب قرآن د کتاب په شکل یو ځائے کول وو چه د ځان ځان له ټکړو د ضائع کیدو هیڅ څه خطره پاتے نشی دا جمع په کاغذ شوے وه چه د نبی علیه السلام په زمانه کښے نه وو (کاغذ) او د ابوبکر صدیق رض په زمانه کښے د شام نه مدینے منورے ته رارسیدلے وو۔ موطا امام مالک رح کښے د سالم بن عبد الله نه روایت دے:-

جَمَعَ اَبُوْبَكْرٍ الْقُرْاٰنَ فِي الْقَرَاطِيْسِ (ابوبکر رض صدیق قرآن په کاغذ جمع کړیوو) مغازی موسیٰ بن عقبه کښے دی:-

حَتّٰى جُمِعَ عَلٰى عَهْدِ اَبِيْ بَكْرٍ فِي الْوَرَقِ. (اتقان جلد ۱ ص ۵۹) د ابوبکر رض په زمانه کښے قرآن په کاغذ لیکلے شو او جمع شو:

د حضرت عثمان رضی الله تعالیٰ عنه په زمانه کښے د قرآن جمع کولو مطلب دا وو چه د مختلف قسمه تلفظ نه دا محفوظ کړے شی، چه دے نه فساد پیدا نشی، دا فرق امام سیوطی په اتقان کښے د ابن تین نه نقل کړیدے (اتقان جلد ۱ ص ۶۰)۔

## صدیقی رض جمع

د دے جمع محرک فاروق اعظم رض وو بخاری کښے د زید بن ثابت نه روایت دے، چه کله په جنګ یمامه کښے او یا (۷۰) حافظان شهیدان شول نو ابوبکر صدیق رض ... بلالی، څرچه لا یم نو هلته حضرت عمر رض

هم موجود وو، حضرت صدیق رضي الله تعالیٰ اُفرمایل چه:

أَنَّ عُمَرَ رضـ أَتَانِي فَقَالَ إِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ الْقُرْآنِ وَإِنِّي (۲) أَخْشٰى أَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ فِي الْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبَ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْآنِ وَإِنِّي أَرٰى (۳) أَنْ تَأْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْآنِ فَقُلْتُ كَيْفَ نَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم

(۱) ماته عمر رضـ راغلو او وې ویل چه د یمامه په ورځ ګرم جنګ کښې د قرآن قاریان شهیدان شول؛ (۲) که چرې نورو جنګونو کښې هم داسې قاریان شهیدان کېدل نو د قرآن د اکثر حصو د ضائع کېدو خطره ده (۳) لهذا تاسو حکم ورکړئ چه قرآن د تحریري صورت کښې جمع شي ما هغه ته اُوویل چه مونږ څنګه هغه کار اُوکړو کوم چه پېغمبر علیه السلام نه دې کړې

(۴) فَقَالَ عُمَرُ رضـ هٰذَا وَاللهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ: (۴) حضرت عمر رضي الله تعالیٰ
(۵) يُرَاجِعُنِي حَتّٰى شَرَحَ اللهُ صَدْرِي لِذٰلِكَ: اُوویل چه خدائې م د قسم وي
چه دې کښې خیر دې، نو همیشه به (۵) ماته هم داسې ویل تر دې چه
چه ځما سینه الله دې کار د پاره پرانسته:

مونږ ړومبې لیکلي دي چه نبي علیه السلام په خپله زمانه کښې د قرآن لیکلو حکم ورکړې وو، لیکن هغه په کتابي شکل کښې نه وو، خو د حضرت عمر رضـ مطالبه دا وه چه دا د کتابي صورت کښې جمع شي، ځکه خو حضرت ابوبکر رضـ اُفرمایل چه مونږ څنګه داسې کار کولې شو کوم چه حضور علیه السلام نه دې کړې لیکن حضرت عمر رضي الله تعالیٰ د دې هغه ضرورت په ابوبکر رضـ اُمنلو کوم چه د دې وخت کښې راپیښ وو د نبي علیه السلام په زمانه کښې نه وو پیښ شوې، د نبي علیه السلام زمانه کښې قرآن چه کتابي شکل کښې جمع نه وو د هغې وجې دا دي (۱) د نبي علیه السلام په زمانه کښې هغه حالات نه وو کوم چه صدیق رضـ په زمانه کښې راپیښ شوا و د هغې په وجه



قرآن ته کتابي شکل ورکړې شو. (۲) د نبي علیه السلام په زمانه کښې هغه څیزونه نه موندې کېده کوم چه د صدیق رضـ په زمانه کښې موندې شوه لکه کاغذ او نور د لیکلو سامان وغیره:-

(۳) د نبي علیه السلام په زمانه کښې لا د تلاوت منسوخ کېدو احتمال وو، که چرې دغه وخت د کتاب په شکل کښې قرآن لیکلې شوې وې، نو بیا به د بعضې تلاوت منسوخ کېدو په وجه هغه ټول کتاب به لګولې شو چه هغه ډېر ګران کار وو۔

(۴) قرآن به د احوالو او واقعاتو په ترتیب نازلېدو او آیتونه او سورتونه به د مضامینو په ترتیب لګېدل که چرې د نبي علیه السلام په زمانه کښې قرآن د کتاب په شکل جمع شوې وې، نو د نوي آیتونو ځای کول به مناسبو آیتونو او سورتونو سره بیا ډېر ګران وو، دا صورت د حضرت ابوبکر صدیق په زمانه کښې ختم شو، ځکه چه وحي راتلل بند شو، کاغذ او نور سامان د لیکلو پیدا مونده شو، حافظان ډېر شهیدان شول، نو ځکه قرآن ته کتابي شکل ورکول ضروري شول:

## د صدیقي جمع دستور

حضرت صدیق رضـ د قرآن په جمع کښې پوره احتیاط کړې وو او داسې انتظام ئې کړې وو، چه د قرآن په کتابي جمع کښې د هېرې یا د بلې غلطۍ څه احتمال هم پاتې نشي هغوی په جمع کولو د قرآن کښې صرف په دې اکتفا اُنکړه، چه هغه آیاتونه دې را جمع کړې شي کوم چه ځانته یاد وي، یا په څه څیز لیکلي وي، یا د حضور علیه السلام نه اورېدلي شوي وي، بلکه دې بارې کښې په دوه قاعدو عمل اُوکړو:-

(۱) هغه لیکلي شوي آیتونه دې جمع کړې شي، چه د رسول الله صلی الله علیه السلام د خپل وړاندې په چا لیکلي وي او د دوو عادلو ګواهانو په

ذریعه دګ ے ثبوت اُمُوندے شي، په ابوداؤد کښے دَ حضرت عرُوه رح نه روایت دے،

إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَالَ لِعُمَرَ وَزَيْدٍ اقْعُدَا عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ فَمَنْ جَاءَكُمَا بِشَاهِدَيْنِ عَلَى شَيْءٍ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ فَاكْتُبَاهُ:

حضرت ابوبکر رض حضرت عمر رض او زید رض دواړو ته اُو ئیل چه تاسو دَ جماعت په دروازه کښے کینئ چه دکتاب الله په کوم لیکلی شوی ایتونو دوه کسان ګواهان

تیر شول نو هغه ایتونه اُ لیکئ،

(۲) دویم دا چه دغه لیکلی آیتونه دِ دَ ډیرو صحابه کرامو رض په سینو محفوظ هُم وی (مناهل العرفان جلد ۱ ص ۲۴۵)

دغه رنګ ابن ابی داؤد په کتاب المصاحف کښے سند سره بیان کړے دے چ وَمَا كَانُوا يَكْتُبُونَ فِي الصُّحُفِ وَالْأَلْوَاحِ. صحابه کرام رض به چه کوم قرآن په صحیفو وَالْعُسُبِ وَكَانَ لَا يَقْبَلُ مِنْ أَحَدٍ حَتَّى. په تختو او دَ کجورو په ښاخونو لیکلی وُ يَشْهَدَ شَاهِدَانِ ؛ ؛ ؛ ؛ ؛ نو هغه به دَ دوو کسانو دَ ګواهئ نه پس قبلولے شو

## عثمانی جمع

دَ اسلام دائره هر کله چه لویه شوه نو کوم مسلمانانو قرآنی ایتونه دَ کوم اُستاذ نه په کوم تلفظ او قرأت کښے چه زده کړی وو، نو په هغوی کښے او به نورو هغه مسلمانانو اختلاف پید شو کوم ته چه په بل قرأت کښے تعلیم ورکړے شوے وو، لکه څنګه چه بخاری کښے دَ حذیفه بن الیمان دا ذکر شوے خبره دده قسمه فتنے دلیل دے کوم چ دَ آرمینیا او دَ آذربایجان دَ فتح کولو نه پس مدینے منورے ته واپسی کښ دَ حضرت عثمان رض په خدمت کښے دا عرض وړاندے کړو۔

أَدْرِكْ هَذِهِ الْأُمَّةَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَلِفُوا. په دے اُمت کښے دَ یهودو او نصارا اِخْتِلَافَ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى ؛ ؛ پشان اختلاف پیدا کیدو نه وړا



تاسو دا سنبال کړئ :۔

ترد ے چه په مدینه منوّره کښے هم دَ اُستاذانو او شاګردانو په مینځ کښے دَ قرأت دَ اختلاف فتنه پیدا شوه . نو څنګه خو حضرت عثمان رضی الله په خطبه کښے اُ فرمائیل چه " هر کله تاسو کښے دا اختلاف دے (چه په مدینه کښے یئ) نو لرے ښارونو کښے خو دے نه هُم دَ زیات اختلاف پیدا کیدو خطره ده هغوی څېل الفاظ دادی،

أَنْتُمْ عِنْدِي تَخْتَلِفُونَ فَمَنْ نَأَى عَنِّي مِنَ الْأَمْصَارِ أَشَدُّ اخْتِلَافًا.

(مناهل العرفان جلد ۱ ص ۲۴۵ واتقان ص ۵۹)

نو بیا هغوی دا قضیه صحابه کرامو ته وړاندے کړه او دَ هغوی په اتفاق سره حضرت عثمان رض دَ حضرت حفصه رض نه دَ قرآن هغه نُسخه را اُ بلله کومه چه دَ حضرت صدیق رض په زمانه کښ لیکلے شوے وه او دَ هغے نورے نقلونه ئے واخستل دے دَ پاره چه هغه مشهور دو ښارونو ته اُ لیږی او هم دَ هغے په مُطابق دے قرآن ذکر کړے او بِشوَ نه جاری وی او ددے نه علاوه دَ نورو قراءتونو بندیز ئے اُ کړو، ددے عثمانی مجموعے نوم " امام " حُکم کیښودے شو چه هغه دَ ټولو قرآنی نسخو پیشوا او امام دے، په اجماع دَ صحابه کرامو سره ددے لیکل چه دَ کوم مجلس (کمیټی) په حواله شو، هغه څلور تنه وو، درے قریش او یو انصاری وو دَ قریشو صاحبان دا وو،

(۱) عبد الله بن زبیر رض (۲) سعد بن العاص رض (۳) عبد الرحمان بن الحارث رض (۴) او زید بن ثابت انصاری وو:۔

## دعثمانی رض جمع دستور (آئین)

په عثمانی جمع کښے دَ دے خبرو خیال اُ ساتلے شی:۔

(۱) په مصحف کښے هم هغه څیز درج دی کوم چه یقینی قرآن منلے شی،

(۲) دا هم معلومه وی چه د حضور علیه السلام په آخری دور کښے د دے تلاوت باقی وو :-

(۳) د کوم صحیح والے چه حضور علیه السلام نه ثابت وی او د هغے تلاوت منسوخ نه وی (مناهل العرفان جلد ۱ صفحه ۲۵۰) : امام سیوطی رح نقل کړیدی چه د دے نسخو شمیر اوه وو چه اوو ښارونو سره تړون لری، یوه نسخه حضرت عثمان رض په مدینه منوره کښے اساتله او نورے ئے مکے مکرمے، شام، یمن، بحرین، بصرے، او کوفے ته اولیږلے (اتقان جلد ۱ صفحه ۶۰) بیا د دے نسخو نه مسلمانانو بیشمیره نسخے نقل کړے او حضرت عثمان رض حکم اوکړو، چه د دے نه سوا په کوم موجودو نسخو کښے چه د قراءت اختلاف وی نو هغه ضائع کړی، د حارث محاسبی نه په اتقان کښے نقل دی چه مشهوره داده چه حضرت عثمان رض جامع قرآن دے مګر په اصل کښے جامع قرآن حضرت ابوبکر رض دے، حضرت عثمان رض خلق د تلفظ (قراءت) په یوه طریقه راجمع کړل ځکه چه په وړاندے نسخو کښے د بیر قراءتونه موجود وو خو په اصل مضمون د قرآن کښے ترینه هیڅ فرق نه را تلو، حضرت علی رض فرمائی کچرے څه په دغه وخت کښے امیر المؤمنین وے، نو ما به هم هغه کول چه کوم حضرت عثمان اوکړل (اتقان جلد ۱ صفحه ۶۰)

## د قرآن آیتونه او سورتونه

عثمانی جمع په ۲۵ سنه ه کښے اشوه امام زرکشی او نورو علماؤ اجماع په دے خبره نقل کړیده چه د قرآن د آیتونو ترتیب توقیفی دے مطلب دا چه د الله په حکم شوے دے د څښتن د چار لته او خیال کار نه دے کړے د هر ایت په باره کښے به جبریل علیه السلام دا حکم راوړو چه فلانے ایت د فلانی ایت سره یو ځائے اکلوئ، امام احمد د عثمان بن



العاص نه په اسنادِ حسن سره نقل کړیدے، حضور علیه السلام فرمائیلی دی چه فلانے ایت په فلانی سورت کښے شامل کړئ همدغه رنګ ابوداؤد ترمذی او نسائی کښے د ابن عباس رضی الله تعالیٰ نه نقل شویدی،

كَانَ اِذْ نَزَلَ عَلَيْهِ الشَّيْئُ دَعَا بَعْضَ : یعنی په حضور علیه السلام به چه مَنْ كَانَ يَكْتُبُ فَيَقُوْلُ ضَعُوْا هٰذِهِ : څه وخت څه ایتونه نازل شو نو الْاٰيَاتِ فِي السُّوْرَةِ الَّتِيْ يُذْكَرُ : لیکونکے به ئی راا بللو او وے به ئے فِيْهَا كَذَا وَكَذَا : فرمائیل چه دا آیتونه په هغه سورت کښے شامل کړه په کوم کښے چه دا دا مضمون دے،

د سورتونو په ترتیب کښے غوریزه خبره داده چه هغه هم توقیفی دے، مطلب دا چه دا هم د الله په حکم شویدے :- امام جلال الدین سیوطی رح د کرمانی رح د کتاب البرهان نه نقل کړیدی :-

تَرْتِيْبُ السُّوَرِ هٰكَذَا هُوَ عِنْدَ اللّٰهِ فِي اللَّوْحِ الْمَحْفُوْظِ : د سورتونو ترتیب هم دغه شان د عَلٰى هٰذَا التَّرْتِيْبِ وَ عَلَيْهِ كَانَ صَلَّى اللّٰهُ يَعْرِضُ : الله په نزد په لوح محفوظ کښے دے عَلٰى جِبْرِيْلَ كُلَّ سَنَةٍ : او هم په دغه ترتیب به حضور علیه السلام هر کال جبریل ع م له آوروله :-

دغه شان د امام بیهقی نه هم منقول دے امام بیهقی په المدخل کښے هم لیکلی دی،

كَانَ الْقُرْاٰنُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ : د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرَتَّبًا سُوَرُهٗ : کښے د قرآن سورتونو او آیتونه وَاٰيٰتُهٗ عَلٰى هٰذَا التَّرْتِيْبِ اِلَّا الْبَرَاءَةَ : هم په دے ترتیب وو، وَالْاَنْفَالَ :- سوا د سورة براءة او سورة انفال :-

ابو جعفر نحاس نه هم دغسے منقول دی، امام سیوطی رح په اتقان

جلد ۲ ص ۶۳ کښې دَ حُذیفه ثقفی رض په روایت یو حدیث دا سې نقل کړے دے کوم چه په مُسند احمد او په سُنن ابی داؤد کښې هم موجود دے او دَ ابن رُشد دَ کتاب المصاحف نه هم په تائید کښې دا سے روایت نقل کړیدے چه دَ قُران دَ آیتونو او سُورتونو ترتیب هُم دَ الله په حُکم شوے دے (توقیفی دے)،

امام زرکشی رح په (برُهان) کښې لیکلی دی که چه څوک دَ سُورتونو ترتیب نه اجتهادی وائی نو هغوی ئې هم توقیفی مَنی جګړه یواځې دَ لفظونو ده، ځکه چه توقیف عام دے که قولی اوکه فعلی، بهرحال دَ حدیثو دَ ذخیرے نه ثابته ده چه دَ سُورتونو نومونه په زمانه دَ نبوت کښې مشهور او معروف وو کوم چه په اتقان کښې شته او دا دَ دے خبرے ثبوت دے چه دَ سورتونو ترتیب توقیفی دے،

## دعثمانی رض مَصحفُونو تاریخ

**مصحف مدنی** دَ عثمانی مصحفونو کومه نسخه چه په مدینه منوره کښې ایښودے شوے وه نو هغه دَ شهادت تر وخته حضرت عثمان رض سره وه دَ هغوی نه پس حضرت علی رض سره او بیا دَ خلافت مِلاویدو سره حضرت معاویه رض ته اُسپاردے شوه بیا د اُندلس ته اُرسیده بیا دَ مراکش دارالسلطنت "فاس" ته اُرسیده (تاریخ ادریسی تذکرة المصاحف) بیا په څه طریقه مدینے منورے ته اُرسیده په رُومی جنګ عظیم کښې دمدینے ګورنر فخری پاشا نورو تبرکاتو سره قسطنطنیه ته یوړه او تر اُوسه هلته پرته ده،

### مکی مصحف

مکی نُسخه سنه ۶۵۷ هجری پورے په مکه معظمه کښې پرته وه، محمد بن جبیر اندلسی په سنه ۵۷۹ھ دغلته دَ هغې زیارت کړے وو،



مولٰنا شبلی نعمانی لیکلی دی چه ده هغه دَ سیاحت په وخت دغه نُسخه په جامع دمشق کښې پرته وه او هغوی ئې غالباً د نولسمے صدئ په آخر کښې زیارت کړے وو، کشاف المهدی ص ۱۵۶ کښې لیکلی دی، چه سلطان عبد الحمید خان سنه ۱۲۸۲ھ نه تر دیرشو کالو پورے حکومت کړے وو په دغه زمانه کښې جامع دمشق کښې اُور اُولګیدو او دغه نُسخه پکښې اُوسوځیده

### شامی مصحف

مورخ احمد مُقری سنه ۱۰۲۵ھ کښې دَ دے نُسخے زیارت کړے وو دا دَ کوفے نه دَ اُندلس دَ بادشاهانو بیا دَ سلاطین موحدینو، بیا دَ سلاطینو بنی مرین په قبضه کښې راغله او جامع قرطبه کښې پرته وه، قرطبے والو سلطان عبد المؤمن ته وړکړه او هم دَ دَه په حُکم ابن الشکوال دَ مراکش دارالسلطنت ته په ۱۱ شوال سنه ۵۵۲ھ یوړه سنه ۶۴۶ھ کښې خلیفه معتضد علی بن مامون سره وه او هُم په دغه کال دَ هر کله چه په تلمسان حمله اُوکړه نو دے په کښې مړ شو په دے هله ګُله کښې دغه نُسخه ورکه شوه خو بیا دَ تلمسان بادشاهی خزانے ته رااُرسیده دَ هغه ځائے نه یوسوداګر په بیعه واغسته او فاس ته ئے راوړه چه تر اُوسه هلته پرته ده

### بصری مصحف

دا نُسخه دَ مِصر په کُتب خانه خدیوکښې پرته وه، دَ سلطان صلاح الدین ایوبی یو وزیر په سنه ۵۷۰ھ کښې دا په دیرش زره اشرفوو واغسته،

### یمنی مصحف

یمنی مصحف دَ مصر دِ جامع ازهر په کتب خانه کښې اُوس هُم شته

### دَ بحرین مصحف

دا دَ فرانس په یو کتب خانه کښې پروت دے۔

## کوفي مصحف

دا د قسطنطنیې په کتب خانه کښې شته دے، د حضرت عثمان رضی الله عنه دره نور مصحفونه هم دي په دے کښې دویم مصحف عثمانی د قاهرې په جامع سید نا حسین رضی الله عنه کښې شته - دریم مصحف عثمانی رضی الله عنه په جامع ملیه دلې کښې وو، کچرے د تقسیم په هغه کاله کښې گم او شو ے دے ورته هلته به پروت وی، څلورم مصحف عثماني د لنډن په انډیا آفس کتب خانه کښې شته یه دے لیکل دی، "کَتَبَهُ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانٍ"، دا د مغلو بادشاهانو سره وو، د اکبر باچا مُهر هم پرے شته په ۱۸۵۷ء کښې دا میجر راوَنس له گوتو ته ورغلو هغه د ایسټ انډیا کتب خانې ته ورکړو. د دے یو سل یوا تیا صفحے دی او په یو صفحه کښې شپاړس کرښے دی۔

د قرآن محفوظوالے یو داسے حقیقت دے، چه د هغے اقرار عبد د اسلام مخالفینو هم کړے دے لیکن بعضے مستشرقینو مثلاً گولډ لیټر وغیره د مسلمانانو د یقین او عقیدے کمزورے کولو د پاره بے سرو بنیاده شکونو پیدا کولو کوشش کړے دے، نو مونږ اُس د دے نا سوخته دوره دے خلقو اصلی غرض په قرآن کښې گډوډون او بدلون راوستل دی او د گولډ لیسټر یهودی مستشرق خو بیا په دے ډیر وړ لگولے دے په تفسیری مذاهب کښې هغه د بیشیره اسلامی کتابونو مطالعه کړیده او داخیل کتاب ئے د علمی تحقیق په نوم اُلیکلو لیکن بیا هم د مستشرقینو د عادت په توگه د دوی هر کتاب تحقیقي او علمي شان کم لري خو سیاسی شان ډیر زیات لري د دوی یقین دے، چه مسلمانان د خپلو مرکزو نور قرآن او صاحب قرآن نه د ښکاره سیاسی طاقت په ذریعه لرے ساتل ممکن نه دی نو د خپل اصلی مقصد د تکمیل د پاره مے د جنگ



او د سیاست د میدان په ځائے علمی میدان غوره کړو او د استشراق په زهرجنه وسله ئے د مسلمانانو د یقین کمزوری کولو او په دوی کښې ئے د شک د زهرو خورولو د پاره د اسلامی تحقیق په نوم کوم روښې اُلگولے او کتابونه لیکل ئے د کامیابئ په اُمید شروع کړه د دوی د کامیابئ اُمید نه دادی

(۱) د مغربی طاقتونو سیاسی ترقی او د مسلمانانو سیاسی تنزل چه د دے نه هغوی دا غلط نتیجه را اُبنکله چه پریوتی قومونه د غالب قومونو هر قسم (غلطه هم) خبره منی او پرے یقین کوی:

(۲) انگریزی دان یوازے نه بلکه ټول مغرب زده خلق (چه احساس کهتری کښې مبتلا دی) د یورپ هر مصنف محقق گنړی او د خپل دینی عالمانو نه کرکه لری، ځو ځکه نوی تعلیم یافته خلق د دینی تعلیم نا خبره د یورپي مصنفینو هر یو خبره بے تحقیقه منی او دینی علماؤ ته د کوم په وجه هډو گوری نه چنانچه د مسلمانانو دا قسم کمزوری د مستشرقینو د کامیابئ باعث شوے او مسلمانانو په خپله د دے نه په شکوک او شبهاتو کښې راگیر شو۔ د قرآن د محفوظیت په باره کښې د دوی شبهے اُصولاً دا دی

① د بعضے آیتونو او روایتونو نه د قرآن د غیر محفوظ کیدو دلیلونه نیول۔

② د اختلافِ قرأت او سبعه احرافونه دلیل نیول۔

③ د شیعه وُ د روایتونو نه حجت نیول۔

مونږ به دا ټول په لنډو نقل کوو او د دے جوابونه به ورکوو

د بعضے ایتونو او روایتونو نه دلیل نیول

| د سورة اعلیٰ ایت | سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسَىٰ إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ : البته |
|---|---|

مونږ به تا ته اُلولو نو ته به هیر نکړے خو چه کوم الله اُغواړی،

د دې ایت نه مستشرقینو دا نتیجه را اُبنکے ده چه د قرآن څو آیتونه هیر کړه

خو دا غلط خکه ده (۱) چه دا استثناء صوری ده حقیقی نه ده، په علمی اصطلاح کښې دا قسم استثناء د خپل فضل یا د قدرت د اظهار د پاره استعمالیږی دے نه دیو څیز مستثنیٰ کول مطلب نه وی بلکه مطلب دا دے چه مونږ به تا نه قرآن داسے اُو نه لُوو چه ته به ئے هیر نکړې نو دا د الله فضل او احسان اګنړه ددے مثال داسے دے، لکه د قرآن کریم په بل یو ځائے کښې په جنت کښې د جنتیانو د همیشه پاتے کیدو بیانونه پس اِلَّا مَا شَاءَ اللهُ چه ذکر دی، او مطلب ئے دا دے چه جنت کښې همیشوالے د الله فضل دے ګوندی الله تعالیٰ خو دا همیشوالے د جنتی ژوند واپس هم اخستے شی خو د الله وعده ده چه واپس به ئے نه اخلی (۲) دهٔ نه علاوه که دا مطلب هُم واخستے شی چه ته به ئے نه هیروے خو هله که مونږ ه ئے هم نه هیرول اُغواړو، یعنے دا ستا نه هیرول د الله په مرضیٰ موقوف دی. نو بیا هم هیرول څکه ثابت نه دی چه قرآن کریم په بل ځائے کښې صفا فرمائیلی دی، چه مونږ ه ئے تا نه هیرول نه غواړُو بلکه څمونږ دا خوښه ده چه قرآن دِ ستا سینه کښې محفوظ وی، لکه چه سورهٔ قیامة کښې دی:

اِنَّ عَلَیْنَا جَمْعَهُ وَقُرْاٰنَهُ: (سورة القیامة) ستا په سینه کښې د قرآن جمع کول د هغے محفوظ کول او ستا په ژبه د هغے د لوستلو ذمه واری څمونږ ده په دے سُورت کښې د استثنائی صورت جوړه ئے هدو پریکړه اُس خو هغو د هیرولو یا هیریدلو سوال نه پیدا کیږی.

(۳) دریم جواب دا دے کچرے څه آیتونه هیر کړے شی نو دا به د هغے د منسوخ کیدو یو شکل وی په دے د قرآن په محفوظیت کښې هیڅ فرق نه راځی یعنی کوم آیتونه چه د حضور علیه السلام په سینه مبارکه کښې الله تعالیٰ محفوظ اُساتل او هغوی اُمت ته د رسول نو هم دا



قرآن دے او که د حکمت په وجه د حضور علیه السلام نه هیر کړے شو نو هغه قرآن پاتے نشو، بلکه خالق کائنات پخپله هغه د قرآن برخه جوړه نکړه، لکه څنګه چه هر حاکم ته اختیار وی چه خپل فرمان کښې څه تکی او جملے لیکی او څه تکی او جملے ترلرے کوی دا کار د فرمان د محفوظیت نه خلاف نه دے، دا خو د صاحب فرمان خپل کار دے د بل چا کار خو نه دے، چه فرمان پرېکاره کیږی د قرآن کریم ارشاد دے،

قُلْ مَا یَکُوْنُ لِیْٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآءِ نَفْسِیْ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا یُوْحٰٓی اِلَیَّ: اے پیغمبره دا اعلان اُکړه چه څه خپله ځان د په وحی الهٰی کښې ردو بدل (سورة یونس آیة ۱۵) نشم کولے څه خو صرف د وحی تابعداری کوم:

## د حضرت عائشهؓ حدیث

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهٗ عَلَیْهِ السَّلَامُ سَمِعَ رَجُلًا یَقْرَأُ مِنَ اللَّیْلِ قَالَ یَرْحَمُهُ اللهُ لَقَدْ اَذْکَرَنِیْ کَذَا وَکَذَا اٰیَةً کُنْتُ اُسْقِطُهَا مِنْ سُوْرَةِ کَذَا وَکَذَا (رواه مسلم)

حضور علیه السلام د شپے یو سړی قرآن واورید و نو وے فرمائیل چه الله دِ په ده رحم اُکړی ده ماته فلانی فلانی آیتونه د فلانی فلانی سورتو نو رایاد کړی دی.

ددے روایت نه دا ثابتیږی چه د قرآن د څه آیتونه بالکل بیکاره او ضائع شول بلکه د دے سړی د لوستلو نه ورانه ئے حضور علیه السلام نه دا یاد وُو، صحابه کرامو ته هم یاد وو، لیکلے شوی هم وو، صحابه کرامو پرستل لکه څنګه چه دغه سړی اُلوستل، نو په دے وجه ددے آیتونو د ضائع کیدو خو څه احتمال پاتے نشو البته دومره خبره ده چه د نبی علیه السلام توجه ورته نه وه او د دغه سړی په لوستو د نبی علیه السلام

توجُّه بیا ورته اُشوه دا سے نه چه حضور علیه السلام بالکل هیر وو، دا خو یو عامه محاوره ده خو دے سره هو کله چه قرآن دَ لیک په شکل کښے موجُود وو، لکهونو ته یاد وو، نو بیا خوکسانو نه که هیر هم شی نو دَ سره دَ قران په محفُوظیت هیڅ اثر نه پریوځی.

**یو عامه ضابطه** یو عامه قاعده داده چه دا سے قسم هر ځائے کښے بکار راځی، هغه داده چه قرآن په تواتر او قطعی اجتماع سره ثابت دے دَ اعتراض دَ پاره کوم روایتونه چه پیش کولے شی هغه خو یا ضعیف وی او یا ن یاتے نه زیات خبرِ واحد وی، خبرِ واحد ظنّی وی، او ظنّی دَ قطعی په مُقابله کښے بیکاره دے، نو ځکه دا سے ټول قسمه اعتراضُونه بالکل بے ځایه وی:۔

## دَ ابن مسعودؓ روایت

مسندِ احمد او طبرانی او ابنِ حبان کښے دَ حضرت عبد الله بن مسعودؓ نه منقول دی، چه هغوی به قرآن کښے مُعوّذتین یعنی قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ او قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ دَ دواړه سورتونه نه لیکل، دَغه شان ابو عبیدؒ په روایت دَ ابن سیرینؒ دَ ابن مسعودؓ نه نقل کوی چه هغوی به سورتِ فاتحه په قرآن کښے نه لیکله او حافظ بن حجرؒ دَ بخاری په شرح کښے دے روایتونو ته صحیح و ثیلی دی خو دَ دے ځو جوابُونه دی:۔

(۱) دَ سورةِ فاتحه او دَ دواړو معوّذتینو قرأت په یقینی تواتُر سره ثابت دے نو ظنّی خبر دَ دے مُقابله کښے هیڅ نه دے او که چیرے دَ ابن مسعودؓ دا انکار ثابت هُم شی نو اجماع او تواتُر دیو کس په مخالفت نه ماتیږی که دا سے کیدے شوے نو بیا خو یو مُتواتر هم نه وو پاتے او دَ دین ټول کاروبار به بیا ړنګ وو: (۲) قاضی ابو بکرؒ دَ ابن مسعودؓ دا انکار جواب دا ورکړے



چه دا دَ هغے دَ قرآنیت نه انکار نه دے، بلکه په مصحف کښے د ننه دَ لیکلو نه انکار دے، ځکه چه لیکل دَ هغه څیز ضروری وی چه دَ کوم دَ هیریدو ویره وی او سورةُ فاتحه او معوذتین دا سے سورتونه دی چه دَ دے دَ هیریدو هیڅ امکان نه وو، هم دا جواب ابن قُتیبهؒ په مشکلات القرآن کښے ورکړے دے اګرچه په روایت کښے اِنَّهُمَا لَيْسَتَا مِنْ كِتٰبِ اللّٰهِ "دا دواړه دَ کتاب الله نه نه دی" راغلی دی خو دَ کتاب الله مطلب مصحف وی او پوره مطلب به ئی دا شی چه دَ دے دوا ړه په مصحف کښے دَ لیکلو ضرورت نشته۔

(۳) ابن الصباغؒ جواب ورکړے دے، چه دا سورتونه دَ ابن مسعودؓ په زمانه کښے متواتر وو مګر هغوی ته دَ تواتُرِ علم نه وو رسیدلے په دے وجه ئے احتیاط کولو، څو وخت چه دوی ته دَ تواتُرِ علم اُشو نو دَ خپل قول نه ئے رُجوع اُکړه، لکه چه عاصمؒ په واسطه دَ زِرؒ دَ ابن مسعودؓ نه قرأت نقل کړیدے چه دا دے واړه سورتونه پکښے ثابت دی نو دا دَ خپل پُومبی قول نه ئے دَ رُجوع کولو دلیل دے،

دَ دے ټولو جوابونو ضرورت هله پیښیږی چه دَ ابن مسعودؓ دا انکار ثابت شی، لیکن ډیرو محققینو دَ ابن مسعودؓ دا انکار تردید کړیدے او دے روایت ته ئی موضُوع، باطل او غلط وئیلی دی:۔

قَالَ النَّوَوِيُّ فِيْ شَرْحِ الْمُهَذَّبِ اَجْمَعَ الْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى اَنَّ الْمُعَوِّذَتَيْنِ وَ الْفَاتِحَةَ مِنَ الْقُرْاٰنِ وَ اَنَّ مَنْ جَحَدَ شَيْئًا مِّنْهَا كَفَرَ وَمَا نُقِلَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍؓ بَاطِلٌ لَيْسَ بِصَحِيْحٍ وَقَالَ ابْنُ حَزْمٍ فِيْ تَدَحِ الْمُعَلّٰى الْمُجَلّٰى

امام نوویؒ په شرح مهذب کښے لیکلی دی چه دَ مسلمانانو په دے اتفاق دے چه معوّذتین او فاتحه دَ قرآن حصه ده چه څوک دے نه انکار کوی هغه کافر دے او کوم چه دَ ابن مسعودؓ نه نقل دے

هٰذَا كَذِبٌ عَلَى ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَاِنَّمَا صَحَّ عَنْهُ قِرَاءَةُ عَاصِمٍ عَنْ زِرٍّ عَنْهُ وَفِيْهَا الْمُعَوَّذَتَانِ وَالْفَاتِحَةُ (اتقان جلد ۱ صفحہ ۸۰) ؛ ؛

نو هغه باطل دے درست نه دے ابن حزم محدث په قدح معلٰے کښے لیکلی دی چه انکار کول په ابن مسعود رض باندے دروغ تړل دی، ځکه چه دَ هغه په روایت دَ زرّ د عاصم قرأت دا سے ثابت دے چه دے کښی دا دوه وا په سُورتونه دی)

دغه رنگ امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښ لیکلی دی په اتقان جلد ۱ صفحہ ۷۹ کښ تفصیل شته، چه د ابن مسعودؓ انکار کول ته نوویؒ باطل ویلی دی او ابن حزم ورنه دروغ او موضوع ویلی دی

## دَ قرأت اختلاف او اوه احُراف

مُستشرقین دَ قُرآن دَ تحریف یو دا دلیل هم وړاندې کوی چه د ے کښے کښے قِراَتونه وی (یعنی یو قِرأت نه دے) نو دا دلیل ځکه غلط دے چه تحریف هغه دے چه په بادشاهی دستاویز کښے دَ اصل متکلم او دَ دستاویز جوړونکی نه بغیر بل څوک زیاتے کمے اُکړی، که بادشاه یخپله دے کښے زیاتے کمے اُکړی نو هیڅ عقلمند دے ته تحریف نه وائی۔

دَ قُرآن پاک قِراٰت دوه قسمه دے (۱) متواتِر او (۲) غیر مُتواتر، دا دویم قِراٰت دَ قُرآن ځکه نه دے چه دَ اُصول اِمامان په دے متفق دی چه قُرآنیت دَ پاره تَواتُر شرط دے، او هم قِراٰتِ متواتر قُرآن دے دے نه تحریف نه ثابتیږی، تحریف دے ته ویلی شی، چه غیر قُرآن په قُرآن کښے داخل کړیشی او یا دَ قُرآن څه برخه دَ قرآن نه بهر کړیشی نو دَ قِراٰت اختلاف په دے دواړو کښے یو هم نه دے لا نو دا چه امام زرکشیؒ په بُرهان کښے لیکی چه قُرآن دَ الفاظو نوم دے او دَ قِرأت قِراٰت دَ الفاظو د تلفظ او دَ ادا طرز دے، نو دَ دے په زیا توالی دَ



دَ قُرآن په الفاظو کښے هیڅ کمے زیاتے نه راځی (اتقان جلد ۱ صفحہ ۸۰)

## اووه قِراَتُونه

په بُرهان کښے امام زرکشی لیکلی دی چه قُرآن دَ وحی هغو الفاظو ته ویلی شی چه حضور علیه الصلوٰة والسلام ته دَ احکامو بیا نولو دَ پاره کوم چه په معجزانه انداز نازل شویدی او قِراٰت دَ دے تلفظ او دَ ادا طرز ته ویلی شی، اووه قِراٰته تر اووو قاریانو په تواتر ثابت دی. او بیا دَ دغه اووو اِمامانو نه تر حضور علیه السلام پورے سند دَ قرأت په کتابونو کښے موجود دے، چه یو راوی د بل نه نقل کړیدی لیکن په اتقان کښے دَ ابن جزری نه نقل دے چه حضور علیه السلام پورے هم دا اووه قِراٰته متواتر دی:-

وَقَدْ نَصَّ عَلٰى تَوَاتُرِ ذٰلِكَ كُلِّهٖ ؛ دَ اُصولو امامانو بنکاره بیان کړیدے اَئِمَّةُ الْاُصُوْلِ كَالْقَاضِيْ اَبِيْ بَكْرٍ ؛ چه اووه قراتونه سراسر دَ حضور غَيْرِهٖ وَهُوَ الصَّوَابُ لِاَنَّهٗ اِذَا ؛ علیه السلام پورے متواتر دی ثَبَتَ تَوَاتُرُ اللَّفْظِ ثَبَتَ تَوَاتُرُ ؛ نو هرکله چه الفاظ متواتر شو نو دَ هَيْئَةِ اَدَائِهٖ لِاَنَّ اللَّفْظَ لَا يَقُوْمُ ؛ هغے تلفظ او ادا هم مُتواتره شوه اِلَّا بِهٖ وَلَا يَصِحُّ اِلَّا بِوُجُوْدِهٖ ؛ ؛ ځکه چه تلفظ او ادا الفاظو سره تړلی (اتقان جلد ۱ صفحہ ۸۰) ؛ ؛ دی ځکه له دَ دے وجود نشته)

## صحابه رض قاریان

هغه قاریان اووه دی کوم چه نیغ په نیغه دَ حضور علیه الصلوٰة والسلام نه قِرأت زده کړو، دَ قاریانو په نوم مشهور شول، دَ دوستنو قاریانو اُستاذان او شیوخ دی او دَ دوی قِرأت په ټولو مُسلمانو ملکونو کښ خور شو حتّٰے چه تر اُوسه دا شته (۱) حضرت عثمان رض (۲) حضرت علی رض (۳) اُبی بن کعب رض (۴) زید بن ثابت رض (۵) عبدالله بن مسعودؓ

(۲) ابوالدرداء رض (۷) ابوموسیٰ اشعری رض (مناهل العرفان جلد ص ۴۰۶)

**اُوه قرأتونه**

(۱) ابن عامر رح چه نوم ئې عبدالله یحصبی دے یحصب دَ حمیر قبیلے دَ یو شاخ نوم دے دا هغے ته منسوب دے، ابونعیم او ابوعمران ئې کُنیت دے، تابعی دے، دَ ده دَ مُغیره بن ابی شهاب المخزومی نه قِرأت حاصل کړے وو او هغه دَ حضرت عثمان رض او هغوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه، دا عامر به سـ۱۱۸ـنه هـ کښے په دمشق کښے وفات شو؛

(۲) ابن کثیر۔ نوم ئې عبدالله بن کثیر دارمی، ابو محمد یا ابومعبد ئې کُنیت دے، دا دَ مکے مُعظمے دَ قرأت امام وو دوی دَ مجاهدؒ نه قِرأت حاصل کړے وو هغوی دَ ابن عباس رض نه دوی دَ اُبی بن کعب رض نه او اُبی بن کعب دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه حاصل کړے وو، دَ ابن عامر دوه بالواسطه شاگردان هشام او ابن ذکوان مشهور دی او دَ ابن کثیر دوه بالواسطه شاگردان البزی او قُنبلُ مشهور وو، دا ابن کثیر رح په سـ۱۲۰ـنه هـ کښے په مکه مکرمه کښے وفات شو:

(۳) عاصم، عاصم بن ابی النجود ئې نوم، په قرأت، فصاحت او خوش آوازئ کښے مشهور وو۔ دوی دَ زر بن حبیش او هغوی دَ عبدالله بن مسعود رض او هغوی دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم نه قرأت حاصل کړے وو۔ په سـ۱۲۷ـنه هـ کښے په کوفه کښے وفات شو دَ دوی په خاصو (بلاواسطه) شاگردانو کښے شعبه بن عباس رح او حفص بن سلیمان رح زیات مشهور دی؛

(۴) ابوعمرو مازنی بن العلاء عمار البصریؒ، دوی دَ سعید بن جبیر رح او مجاهد رح او بیا دے دواړو دَ ابن عباس رض نه او هغوی، دَ اُبی بن کعب رض



او هغوی دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم نه قِرأت حاصل کړے وو دَ یزیدی په واسطه دَ هغوی مشهور شاگردان دوه دی (۱) دوری ابوعمر حفص بن عمر المُقری العزیز البغدادی المتوفی سـ۲۴۶ـنه هـ (۲) ابوشعیب صالح بن زیاد المتوفی سـ۲۶۱ـنه هـ

(۵) حمزه بن حبیب بن الزیات الکوفی مولیٰ دَ عکرمه بن ربیع التیمی دوی دَ اعمش او هغوی دَ یحیی بن وثاب نه هغوی دَ زر بن حبیش نه او هغوی دَ عثمانؓ، حضرت علیؓ او حضرت عبدالله بن مسعود رض نه او بیا دوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه قرأت حاصل کړے وو۔ دے دَ عربیت دَ علم فرائضو او دَ علم حدیث ماهر وو په سـ۱۵۶ـنه هـ کښے په حلوان کښے وفات شو، دَ ابو عیسیٰ په واسطه دَ دوی دوه مشهور شاگردان سُلیم بن عیسیٰ الکوفی خلف المتوفی سـ۲۲۹ـنه هـ او خلاد المتوفی سـ۲۲۰ـنه هـ وو او دَ دوی دَ قرأت سِلسِله په دواړو روانه شوے وه:۔

(۶) نافع بن عبدالرحمٰن بن ابی نعیم المدنی، دوی دَ ابوجعفر القاری او دنورو اویاؤ تابعینو نه قرأت حاصل کړے وو، کوم چه دَ ابن عباس رض او دَ ابوهریره رض نه او دے دواړو دَ اُبی بن کعب نه او هغوی دَ رسول الله علیه وسلم نه قرأت حاصل کړے وو، دَ نافع رح کُنیت ابورویم دے دَ دوی (۱) قالون ابوموسیٰ، عیسیٰ بن مینا النحوی، دَ قالون معنیٰ "ګړه" دَ ده قرأت ډیر ګړه وو ځکه ورته قالون ویلے شی المتوفی سـ۲۲۰ـنه هـ او (۲) ورش نوم ئې عثمان سعید المصری دے، په قرأت او خوش آوازئ کښے بے مثاله وو په مصر کښے سـ۱۹۷ـنه کښے وفات شو دَ دوه هغه مشهور شاگردان دی کوم چه دَ ده دَ قرأت سِلسِله چلیدلے ده۔

(۷) الکسائی، ابوالحسن علی بن حمزه الکسائی النحوی په احرام کښے به ئې کساء (څادر، رنګ) اغوستو ځکه په کسائی مشهور شو، په نحو عربیت

او په قرآن کښې بې مثاله وو سنه ۱۸۶ هـ کښې وفات شو۔
په لسو قاریانو کښې نور درې دا دی:

(۸) ابوجعفر یزید بن القعقاع دَ دوی دَ قرأت سند دَ ابن عباس رضـ
او ابی هریره رضـ دَ دے دواړو دَ ابی بن کعب رضـ نه او دَ ګر رسول الله ﷺ
علیه وسلم نه دے المتوفیٰ سنه ۱۳۰ هـ:

(۹) یعقوب بن اسحاق الحضرمی، دوی دَ عاصم او ابوعمر بن العلاء نه
قرأت حاصل کړے وو المتوفیٰ سنه ۲۰۵ هـ:

(۱۰) خلف بن هشام بن ثعلب، کنیت ابومحمد دے دَ عاصم بالواسطه
شاګرد وو المتوفیٰ سنه ۲۲۹ هـ (طبقات القراء لابن الجزری و
مناهل العرفان جلد ۱ ص ۴۲۹ تا ۴۵۷)

## اَحرفِ سبعه

په اُوو احرفو دَ نزولِ قرآن حدیث دَ بوولسو
صحابؤ نه روایت شوے دے ابوعبید ښکاره کړے
چه دا متواتر دی، اتقان جلد ۱ ص ۴۵ په صحیحینو کښې دَ ابن عباس رضـ دروایت
الفاظ دا دی چه حضور علیه السلام اُو فرمائیل چه جبرئیل علیه السلام ما ته
یو حرف اُولولو ما نو، هم اُ غوښته نو هغوی به ما زیاتول ...
ترڅو چه اُوو ته رارسیدل دَ دے حدیث په شرح کښې امام سیوطی
په اتقان جلد ۱ ص ۴۵ کښې څلویښت اَقوال او علامه آلوسی
المعانی کښې اُوه اقوال نقل کړیدی، غوره خبره دا ده چه دَ اُووه
مطلب دَ عربو قبیلو اُوه لغتونه دی، کومې چه ډیرې فصیحې او وې قبیلو وه
دا دی (۱) قریش (۲) هذیل، (۳) تمیم (۴) آزد (۵) ربیعه (۶) هوازن
سعد بن بکر دا غوره قول دے ځکه چه ابوعبید، ثعلب، زهری او
علماؤ بلکه عطیه هم دے ته مختار (غوره) وئیلے دے او بیهقی په شعب
الایمان کښې دے ته صحیح وئیلی دی، اتقان جلد ۱ ص ۴۷ وروح المعانی



په دے قول امام سیوطی رحـ دا اعتراض کړے دے، چه دا اُووه قرأتونه
یوازے دَ قریشو وو، ځکه چه دَ عمر او دَ هشام دَ قرأت په جګړه کښې حضور
علیه السلام دَ دواړو ته صحیح اُو وئیل حالانکه دا دواړه قریشیان وو، دا سے
ابوقتیبه او ابوعلی الاهوازی هم وائی، خو څومونږ په خیال کښې دا اعتراض
صحیح نه ښکاری، ځکه چه کیدیشی چه دَ نبی علیه السلام زمانه یو
صاحب دیوے قبیلے په قرأت او دویم صاحب دَ بلے قبیلے په قرأت آوریدلی
وی نه دا چه کوم یو دَ قریشو دا اُوه قرأته (لغاته) وو:

## دَ اُوو احرفو حکمت

په شروع کښې دَ اُوو واړو لغاتو قرأت
او بیا صرف دَ یو لغت قرأت مقرر کولو حکمت
دا دے (والله اعلم) دَ قرآن ښکاره بیان دے بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ۝
چه قرآن په عربی ژبه کښې نازل شوے دے، خو په بعضے مخصوصو الفاظو
کښې دَ عربو قبیلو اختلاف وو لکه څنګه چه کړی او لکهنؤ په اُردو کښې
یا دَ پیښور او دَ قندهار په پښتو کښې:-
وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ: مونږ هر رسول دَ هغه دَ قوم
په ژبه کښې جوړ کړے وو)
ښکاره خبره ده چه دَ حضور علیه السلام خاص قوم قریش وو او عام
قوم ئے عرب وو دَ عربو قبیلے په تعصّب کښې دومره زیاتے وے چه
ژبے به خاصو ټکو په خاص طرز او تلفظ بانده به مړه کونه کول
نو دَ الله تعالیٰ حکمت دا وو چه اسلام په ابتداء کښې کچرے دوی ته
یوازے دَ قریشو لغت مخصوص او مقرر کړیشی، نو کیدے شی چه
دَ دغ تعقب په وجه دَ عربو هغه نورے قبیلے دَ قرآن نه فیض
وا نخلی نو هر یو قبیلے ته په دے غرض په خپل لغت کښې دَ قرأت
اجازت ځکه ورکړے شو چه یو خو به دَ قرآن نه فیض یاب شی

اوبل به د خپلې محرومۍ په سبب د تعقُّب او ضد بنکار. نشی د
عثمانی رض جمع قُرآن په وخت کښې هرکله چه اسلام ډیر خور شو د
قبیلو خصوصیتو نه او ځان ځانی ختمه شوه ټول مسلمانان یو ګوټ
شول د ژبې وغیره هیڅ فرق پر دوی اثر نشو غورزَ ولے نو په مُصحف
عثمانی کښې صرف د قریشو په لغت د نبی علیه السلام په ژوَبی حکم
او یا د مذکور علت او سبب ختمید و په وجه اکتفا اُکړے شوه لکه څنګه
چه مؤلفة القلوب پر زمانه د نبوت کښې د زکوٰة مصرف وو، لیکن فاروقی
زمانه کښې د اسلام د طاقت اخستو په وجه دا علت او سبب پاتې نشو
ځکه دوی بیا مصرف د زکوٰة نه خارج کړے شو دلے نور هُم ډیر
احکام امام زرکشی په بُرهان کښې نقل کړیدی چه د علت او سبب
ختمیدو په وجه هغه ختم کړے شوی دی ؛

د قرآن تحریف ثابتولو د پاره مستشرقینو دا اُوه حرفو نه یا اُوه
لُغتُونه هم دلیل جوړ کړیدے، خو دا ځکه صحیح نهٔ دے لکه څنګه
مو بڼوولیا نده ذِکر کړل چه تحریف د بل چا زیاتی کمی ته ویلی شی
کچرے متکلم (دلته الله پاک) بخپله په خپل کلام کښې کمے زیاتے څه
مصلحت د پاره اُکړی نو دے ته تحریف نشی ویلے لکه څنګه چه د
بادشاهانو او د نورو حاکمانو په حکمونو کښې دا یو عام معمول دے او
دغه رنګ د تیر شوی مصلحت په بُنیاد اول پراُوو قراُتونو د قرآن
دلوستے اجازت او بیا دا موقوف کول او په یو خاص لُغت (د قُریش) د
قُرآن قراُت تحریف نهٔ دے بلکه دا تصرُّف الٰهی په خپل کلام (قرآن)
کښې دے چه په دے حق د ټولو روغو خلقو اتفاق دے چه بخپله خبره
یا حکم کښې متکلم زیاتے کمے کولے شی، دغه رنګ منسوخ التلاوة
(د رجم) ایت هم اُګڼړه چه اول د قرآن برخه وه او بیا د قرآن



نه د دے تِلاوت اُ بنکلے شو، نو دا تصرف په قرآن کښې د قرآن د نازِلونکی
بخپله وو نه چه د بل چا لکه چه فرمائی :-

قُلْ مَا يَكُونُ لِيْ أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِيْ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوْحٰى إِلَيَّ (یونس آیة ۱۵)

ته اعلان اُکړه چه دا قرآن څه د خپله ځانه نشم بدلولے څه خو هم د هغے تابعداری کوم کوم چه ما ته وحی کیږی :-

دغه رنګ د خلع سورت چه د اُبی رض په مصحف کښې وو او بیا منسُوخ
التلاوت شو نو دا تصرف الٰهی وو د بل چا نهٔ دے سره سره دا هُم
حقیقت دے چه په اعجاز کښې منسُوخ التلاوت آیتونه د قرآن حکیم
مستقل آیتونو سره هرګز برابر نهٔ دی بلکه کم دی ځکه خو معلومیږی
چه د ړُو جے نه د دغے آیتونو د مُستقِل پریښودو د الله تعالی اراده نه
وه

## اُوه قراُتونه

د اُوو حرفونو حدیث دویمه تشریح اُوه متواتر قراُتُونه دی، د
تحریف اعتراض په دے هم ځکه نشی کیدے چه دا اُوه واړه قراُتونه
هم قرآن دے په قرآن کښے دے سره هیڅ کمے زیاتے نه راځی، په دے
صورت کښې د اُوو حرفونو مطلب د تلفظ اُوه طرزُونه دی، د حرف، نحوی
معنے، مطلب نهٔ دے بلکه لغوی معنیٰ مطلب ده، چه معنیٰ ئے اُوه
قراُتُونه دی، قراُتُونه خو د اُوو نه زیات دی او په حدیث کښې اُوه
یادیږی؛ دا ولے ؟

د دے جواب یو هغه دے کوم چه اتقان د جزری نه نقل کړیدے
هغه وائی چه ما د صحیحو، شاذو او د ضعیفو ټولو قراُتونو چانړه
اُکړو نو معلومه شوه چه آخر کښې دا ټول د اُوو نه بهر نه دی (اتقان
جلد ۱ صت۴۷) کچرے د اُوو نه زیاتی هم وی، نو د دے هم څه پروا

ځکه نشته چه داوو نه مطلب مشهور قرأتونه دی او بل دا چه لفظ داوو (سبع) د حصر د پاره نه دے، دویم دا حدیث د نبی علیه السلام رومبے دے، او اوه قرأتونه بیا روستو ظاهر شوی او تصنیف شوی دی دا څنګه چل دے، نو د دے جواب دا دے چه اوه وا په قرأتونه د نبی علیه السلام په وخت کښے وو، ځکه خود هغوی نه دا قول د اوو مشهورو قارو یا نورو په ذریعه روایت شوی دی، صرف د دے کتابونه روستو جوړ شوی دی۔

دریم اعتراض دا دے چه هر آیت کښے خو اوه قرأتونه نه جاری کیږی، نو جواب ئے دا دے چه په ټول قرآن کښے د اوو قرأتونو وجود بندو لے شوے دے نه چه په هر آیت کښے۔

د اسلام مخالفینو په مصحف عثمانی څو اعتراضونه کړی دی چه په هغی کښ مستشرقین پیش پیش دی۔ مونږ دا س هغه نقل کوو او وار په وار به د هغے جواب ورکوو۔

(۱) رومبے اعتراض دا دے چه کله وخت حضرت عثمان رضی الله تعالیٰ نه مصحفونه وړاندے کړے شو نو هغوی فرمائیل، اِنَّ فِي الْقُرْاٰنِ لَحْنًا سَتُقِيْمُهُ الْعَرَبُ بِاَلْسِنَتِهِمْ (روح المعانی جلد ۱ صفحه ۲۸) په مصحف عثمانی کښے داسے غلطئ دی چه عرب به ئی په خپلو ژبو درستے کړی هم دا شان په فوز الکبیر کښے دی، نو اول جواب ئے دا دے لکه چه علامه آلوسی لیکی، لَمْ يَصِحَّ عَنْ عُثْمَانَ اَصْلًا، (چه دا روایت د حضرت عثمان رضی الله عنه نه بالکل ثابت نه دے۔

(۲) دویم جواب دا دے چه په مصحف عثمانی د صحابه وو اجماع ده او رسم عثمانی هم وحی سره ثابت دے، نو په غلطه څنګه اجماع کیدے شی، (۳) دریم جواب دا دے، چه حضرت عثمان د مصحف عثمانی



کاتبانو ته په جمع شا باسے ورکړو وے فرمائیل، اَحْسَنْتُمْ وَاَجْمَلْتُمْ تاسو ډیر ښه او ښائسته کار اکړو نو صحابی په غلط کار څنګه شاباسے ورکولے شی، بل دا چه ابو عبیده د عبد الرحمن بن هانی ته نقل کړیدے والی چه کله حضرت عثمان رضی الله تعالیٰ سره دوم کاتبانو چه د غه مصحف حضرت عثمان ته وړاندے کړو نو هغوی قلم دوات طلب کړو، او د دے غلطیانے ئے درستے کړے (۱) لَمْ يَتَسَنَّ ئے لَمْ يَتَسَنَّهْ کړو (۲) لَا تَبْدِيْلَ لِلْخَلْقِ ئے لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللهِ کړو، او (۳) "اَمْهِلِ الْكٰفِرِيْنَ ئے مَهِّلِ الْكٰفِرِيْنَ کړو۔ (تفصیل وړاندے هم ذکر شوے دے) داسے وړے د کتابت غلطئ هر کله چه حضرت عثمان درستے کړے نو نورے غټے غلطئ به ئے په کښے څنګه پریښوے۔

خلورم دا چه دلته د لحن معنی غلطی نه ده بلکه د قرآن هغه صحیح الفاظ دی په کوم چه د غه وخت د عربو ژبه نه چلیده او د هغوی د خبرو په طرز نه وو نو حضرت عثمان رضی الله فرمائیل چه عرب به ئے په بیا بیا تلاوت قابو کړی او ژبه به ئے پرے واوړی، د دے کښے نشته چه د لحن دوه معنے دی، (۱) غلطی (۲) طرز کلام د حضرت عثمان په روایت کښے دا دویمه معنی مراده ده کومه چه امام د لغت راغب رحمه مفردات القرآن کښے لیکلے ده خو د ے نه لحن محمود و بللے شی لکه د عربو شاعر وائی: خَيْرُ الْحَدِيْثِ مَا كَانَ لَحْنًا (ښه خبره هغه وی چه په ښه طرز اوو بللے شی) او هم د غه معنی د قرآن په "وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ" کښے استعمال ده لَعَلَّ بَعْضَكُمْ اَلْحَنُ بِحُجَّتِهٖ د دے مطلب دا دے، چه د مقدمے یو فریق د فصیح طرز کلام ماهر وی، نو کله د هغوی په خبره فیصله کوم کچرے دا خبر واقعی د هغه حق نه وی نو دا ډکړی به د هغه په حق کښے د اور یو ټکړه وی

دَ دے حوالو مطلب دا چه دَ لحن نه یوازے غلطی نه ده مراد ده بلکه یو خاص طرزِ تلفظ مُراد دے:۔

پنځم دا چه دَ لحن مطلب در سم الخط لحن دے مزید تشریح ئے داده چه په مصحف عثمانی کښے څه رسم الخط دَ تلفظ سره مطابق نه وی، لیکن دَ ژبے (عربئ) والا به ئے پخپله درسته کړی، لکه څنګه چه په انګریزئ کښے ډیر داسے لیکل دی، چه د تلفظ مطابق نه دی خو دَ دے ژبے والا ئے پخپله درست کوی:۔

## دَ تحریف په باره کښے دا ابن عباس رض روایتونه

مستشرقینو دا ابن عباس رضی الله څه روایتونه نقل کړیدی بلکه ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ﴾ په ځائے ﴿وَوَصّٰى رَبُّكَ﴾ او دَ ﴿مَثَلُ نُوْرِهٖ﴾ په ځائے ﴿مَثَلُ نُوْرِ الْمُؤْمِنِ﴾ د داسے روایاتو نه نه خو دَ قرآن په معنیٰ څه خاص فرق نه پریوځی خو بیا هم صاحب دَ مناهل العرفان دَ دے څو جوابه ورکړی دی:۔

(۱) اِنَّ هٰذِهٖ رِوَايَاتٌ ضَعِيْفَةٌ:۔ دا ضعیف روایتونه دحضرت عبد الله لَمْ يَصِحَّ شَيْءٌ عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ:۔ بن عباس رضی الله تعالے نه ثابت نه دی

(۲) دا روایتونه د قرآن دَ قراءت متواتره نه خلاف دی ځکه بیکاره دی عام جواب دا د ابن عباس رض نه دَ اسلام مخالفینو څو مره روایتونه چه نقل کړیدی د هغے ټولو عام جواب داد ے چه ابن عباس رض په قرآن او په قراءت کښے د زید بن ثابت رض او دَ اُبی بن کعب رض شاګرد دے او دا دواړه حضرات دَ هغے کمیټئ ارکان دی کوم چه حضرت عثمان رض د قرآن دَ جمع دَ باره مقرر کړے وه، نو دَ ده دے دواړو اُستاذانو او نورو ټولو صحابه چه دَ کوموالفاظو دَ قرآن سره اتفاق کړیوی، نو ابن عباس رض دَ هغے هیڅرنګے مخالف کیدے نشی نو دا روایتونه اول خو ضعیف او بے اعتباره



دی که ثابت هم شی نو دَ قرآن دَ متواترو الفاظو مقابله دَ یو کس بیان نشی کولے لکه چه بغداد بنا ر په تواتُر ثابت دے که یو کس دَ دے خلاف بیان ورکړی نو هغه اعتباری او دَ منلو نه دے، اصلی خبره دا ده چه څوک صحابه کرامو نه داسے کچه خبره منسوب کوی نو دا دَ دے دلیل دے چه دا نسبت کوُونکے کچه سړے دے او ده خبره دَ اعتبار کولو او دَ منلو جوګه نه ده:۔

## شیعه او دَ قرآن تحریف

مستشرقین پخپله دَ قرآن په تحریف ثابتولو کښے پاتے راغله نو دا بوُنه ئے خوشی کړل چه دَ مسلمانانو یو غټه فرقه (شیعه) دَ قرآن دَ تحریف قائله دی او ائمه ئے ورله هغه کېنو دکوم چه دا بنائی چه دَ شیعه وُ منلے عقیده داده چه قرآن کښے تحریف شته خو دا ځکه غلط دی چه دَ شیعه وُ هم هغه عقیده ده کومه چه دَ سُنیانو ده هغه دا چه قرآن پُوره او مکمّل محفوظ دے په دے کښے دیو حرف کمے زیاتے نشته دَ شیعه وُ دَ ډیرو کتابونو حوالے دا دی:۔

(۱) شیخ صدوق ابو جعفر محمد بن علی بابویه په رسالهٔ اعتقادیه کښې یکی مَابَیْنَ الدَّفَّتَیْنِ لَیْسَ بِاَکْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ وَمَنْ نَّسَبَ اِلَیْنَا اَنَّهٗ اَکْثَرُ فَهُوَ کَاذِبٌ: کوم قرآن چه دَ دے دوو دفتو به مینځ کښے دے دَ دے نه زیات نشته او څوک چه موږ ته دے نه دَ زیات منلو نسبت کوی نو هغه دروغژن دے،

(۲) په تفسیر مجمع البیان دا ابو القاسم علی بن الحسین الموسوی کښے دی اِنَّ الْقُرْاٰنَ عَلٰی عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کَانَ مَجْمُوْعًا مُؤَلَّفًا عَلٰی مَا هُوَ الْاٰنَ وَذَکَرَ اَنَّ مَنْ: قرآن دَ نبی علیه السّلام په زمانه کښے هم دغسے جمع وو لکه چه اُس دے او کوم امامیه یا حشویه

خَالَفَ مِنَ الْاِمَامِيَّةِ وَالْحَشْوِيَّةِ لَا: چه دَدے خلاف کوی نو په هغے
يُعْتَبَرُ بِخِلَافِهِمْ لِاَنَّهُمْ قَبِلُوا الْاَخْبَارَ: حُکم اعتبار نشته چه هغوی
الضَّعِيْفَةَ: ضعیف خبرونه قبول کړیدی :-

سید مرتضٰی شیعه لیکی

اِنَّ الْعِلْمَ بِصِحَّةِ الْقُرْاٰنِ كَالْعِلْمِ: داُ سنی قُران دَ صحت عِلم داسے
بِالْبُلْدَانِ وَالْوَقَائِعِ الْكِبَارِ: یقینی دے لکه دَ مشهور ښارونو
دَ موجودگئی او یا دَ لویو لویو تاریخی واقعاتو عِلم:

قاضی نورالله الشوستری شیعه په مصائب النواصب کښ لیکی

مَا نُسِبَ اِلَى الشِّيْعَةِ الْاِمَامِيَّةِ: کومه خبره چه امامیه شیعه فِرقه
بِوُقُوْعِ التَّغْيِيْرِ فِي الْقُرْاٰنِ لَيْسَ: منسُوب شوے ده چه هغوی په
مِمَّا قَالَ بِهٖ جُمْهُوْرُ الْاِمَامِيَّةِ وَاِنَّمَا: قُرآن کښے تحریف منی دا دَ ټولو امامیهٔ
قَالَ بِهٖ شِرْذِمَةٌ قَلِيْلَةٌ مِّنْهُمْ لَا: قول نه دے بلکه دَ دوی دَ یو وړوکی
اِعْتِدَادَ بِهِمْ، وَقَالَ الْمُلَّا الصَّادِقُ: ټولی قول دے کوم چه بے اعتباره وی
فِي شَرْحِ الْكُلَيْنِيِّ يَظْهَرُ الْقُرْاٰنُ: او مُلّا صادق په شرح کلینی کښ لیکی
بِهٰذَا التَّرْتِيْبِ عِنْدَ ظُهُوْرِ الْاِمَامِ: چه قرآن به همدے ترتیب دولسم
الثَّانِيْ عَشَرَ: امام ظاهروی:

محمد بن حسن الحر العاملی دَ امامیه شیعهٔ لوئے محدث په خپله رساله کښ
لیکی کومه ئے چه د خپلے زمانے دَ یو عالم په رد کښ لیکلے ده چه
هر کسے که تتبّعُ اخبار و تفحّص تواریخ و آثار نماید بعلم یقینی میداند که قُرآن در غایت درجهٔ تواتر بوده و آلاف صحابه ضبط ونقل کرده و آن در عهد رسول اللهؐ مجموع و مؤلف بوده: چاهم چه دَ اخبارو، آثارو او تواریخو لټول کړی نو هغه به یقیناً پوهیږی چه موجوده قُرآن په انتهائی تواتر سره ثابت دے او په زرگونو صحابه کرامو هغه نقل کړے او ضبط کړیدے او هغه دَ حضوٌ علیه السلام په زمانه کښ یو ځائے شوے او جمع شوے وو



نزوع کافی کتاب الروضة ص۵۳ کښ حضرت علی رض نه روایت دے

هُوَ كِتَابٌ كَرِيْمٌ فَضَّلَهٗ وَفَصَّلَهٗ وَ: قرآن یو عزتمند کتاب دے کوم لره چه
بَيَّنَهٗ وَاَوْضَحَهٗ وَاَعَزَّهٗ وَحَفِظَهٗ: الله تعالٰی فضیلت او بزرگی ورکړیده
مِنْ اَنْ يَّاْتِيَهُ الْبَاطِلُ بَيْنَ يَدَيْهِ: او هغه ئے دَ باطل دَ گډون نه محفوظ کړیدے

شیخ صدوق رساله عقائد کښے لیکی،

اَلْقُرْاٰنُ الْمُنَزَّلُ وَمَا بِاَيْدِي النَّاسِ: نازل شوے او دَ خلقو په لاس لو
وَاحِدٌ لَا زِيَادَةَ فِيْهِ وَلَا نُقْصَانَ: کښے موجود قُرآن یو دے چه په
هغے کښ کمے زیاتے نشته

دَ شیعهٔ دَ دے مستند وحوالونه پس دا حقیقت ښکاره کیږی چه دَ یو څو
بے اعتباره خلقو نه سوا په شیعهٔ کښ هم په قرآن کښ دَ تحریف یا دَ کمی زیاتی قائل نه دی
نور تفصیل دَ نعمان آلوسی په كِتَابُ الْجَوَابِ النَّسِيْحِ لِمَا لَفَّقَهٗ عَبْدُ الْمَسِيْحِ،
کښے اُگورئ قُرآن حکیم دَ تحریر او دِ ماغ په دواړو اړخونو محفوظ دے او دَ
قُرآن الفاظ او مطالب دواړه معجزه دی:

## دَ بائبل تحریف

ددے په عکس دَ بائبل نه تاریخی بنیاد شته او نه عِلمی دا انجیلونو خو
دا حال دے چه (۱) اصل انجیل یو وو او اُوس څلور دی، او بخار په قصص
الانبیاء کښے لیکلی دی چه دَ یورپ محققین دا مَنی چه پرو مبود دَ ئے وُ
صَلّٰی وکښے دَ سلګونو زیات انجیلونه وو، چه څرمُوده پس دَ هغے نه څلور دَ
انجیلونه دَ نائیسیا په کلیسا کښے دَ یو فال په بنا چُونړ کړے شوا و نور انجیلونه
پریښوے شو"
(۲) دَ یورپ سګتں دَ ذرے کُتُب خانے نه انجیل برنا باز اُو تو چه دَ سُورت
مریم په مطابق دَ حضرت مسیح پیدائش او ذیرے په پیغمبر اسلامؐ مشتمل وو

دیوپ خاص شاگرد (فرامرشو) چه دا اُلیدو نو مسلمان شو دا انجیل المنار، پریس کښې چاپ شوے دے دَ یورپ محققین په دے متفق دی چه په دے انجیلونو کښې یو هُم دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام نهٔ دے او نهٔ دَ هغهٔ ترجمه ده او نهٔ دَ دے څه سند شته، دَ مسیحیت مشهور دُشمن پولوس دا مشهوره کړه چه ما ته مسیح علیه السلام لاس را اُوړے دے، ځکه چه هغه غورزیدلے وو نو هغهٔ اُووئیل چه اُوس به دَ مسیح په هدایت دَ مسیحیت دَ دُشمنئ پرځائے دَ هغهٔ دَ تبلیغ کوشش کوم هغه او سینټ پال مسیحیت ګډوډ کړو دَ دائرة المعارف مسیحی مصنف البستانی لیکی چه لوقا خو دَ مسیحیت لوخراب دُشمن سینټ پال نه مسیحیت راغستے دے او ابنیت، کفاره، شراب، مردار او خنزیر حلالوالے ئے په مسیحیت کښې شامل کړو او دائے دَ خرابو یو مجموعه جوړه کړه

**انجیل متی** دَ زړو نصارٰی اُتفاق دے چه دا اصلی انجیل نهٔ دے او نهٔ دَ هغهٔ ترجمه ده کچرے ترجمه ئے وی نو دَ ترجمے زمانه او دَ مترجم نوم ئے نهٔ دے معلوم، متی دا انجیل سنه ۳۹ء کښې په بیت المقدس کښې کینا ستو او دے لیکلو دے خو دَ حضرت عیسی علیه السلام صحابی هُم نه دے، زوبن بغانی دا سے لیکلی دی:

**مرقس** پطرس کوانا کو په مروج الاخبار کښې لیکی چه مرقس یهودی وو دَ رُومیانو په غوښتنه هغه دا انجیل غالباً سنه ۶۰ء کښې اُولیکلو۔

**لوقا** مسټر کډول په رسالهٔ الهام کښې لیکی چه دَ لوقا انجیل الهامی ځکه نه دے چه دَ ه پخپله دَ دے په سر کښې لیکلی دی چه هغه دا انجیل شاه فیلس ته دَ خط وکتابت په بنا لیکلے دے، لوقا پاپا نطاکیه



کښې طبیب وو، دَ مسیحیت یو خراب دُشمن سینټ پال نه ئے مسیحیت را غستے دے او ابنیت، کفاره، شراب، مردار او دَ خنزیر حلالوالے ئے مسیحیت کښې داخل کړو،

**انجیل یُوحَنّا** کیتهولک هیرالډ جلد ۷ کښې پروفیسر لق نه منقول دے چه انجیل یُوحَنّا دَ سر نه تر پخه دَ اسکندریه دَ یو طالب علم تصنیف دے (الفاروق باجه زاده ص ۳۴۲)

**تثلیث** دَ دائرة المعارف مسیحی مصنف البُستانی لیکی چه مسیحیانو دَ تثلیث لفظ دَ یوتلونو څُو چے دَ سینټ پال او پولوس نه وا وُرید و کوم چه متعصب یهودی وو او هغه مسیحی توحید په شرک کښې بدل کړو او دَ کامیابئ سائے وا خیسته په دے صنم پرستانه عقیده کښې مسیحی صداقت ورک شو۔

**ختنه او دَ جنابت غسل** نصارٰی منی چه ختنه ټولو پیغمبرانو علیهم السلام کړیده، عیسٰی علیه السلام سُنّت وو پولس یهودی دَ کتاب په مخالف سُنتوُل بند کړه چنانچه

(۱) وَلِيُخْتَنْ كُلُّ ذَكَرٍ (هر نارینه دِ سنت کړیشی) تورات تکوین

(۲) قُلْ لَهُمْ فِي يَوْمِ الثَّامِنِ يُخْتَنُ الصَّبِيُّ (دوی ته اُووایه چه پداتمه ورځ دِ ماشوم سُنتوے شی (سفر الاحبار باب ۱۲) او حضرت مسیح فرمائی چه لَا أُغَيِّرُ شَيْئًا فِي التَّوْرَاةِ (چه ځه به په تورات کښې هیڅ تبدیلی نکوم (متی باب ۵)

(۳) کوم سړی ته چه منی اُوزی نو ټول بدن دِ په اُوبو اُوینځی او حائضه دِ هُم داسے کوی

(۴) خنزیر حرام دے (سفر الاحبار باب ۱۱) دَ دے ټولو حوالو نه معلُومه شوه چه دَ انجیلونو او دَ هغوی دَ احکامو تحریف تر کومه حده شوے دے

## د بائیبل د تحریف داخلی شهادت

کچرے تاریخی شهادتونه او د یورپ د محققینو اقرار ونه شاته اُغورځولے شی نو بیا هم بائیبل کښ چه دا سے مضامین موجود دی چه د هغے نه دد ے تحریف په ښکاره ډول ظاهر یږی ځکه چه د دین مذهب کښے بنیادی مسئلے درے دی:۔

① د اُلوهیت تصوُّر ② د نبوت تصوُّر ③ د عملونو بدلو تصوُّر یا آخرت د هر مذهب دا بُنیادی اُصول دی:۔

① د اُلوهیت په تصوُّر کښ د الله تعالیٰ عظمت، پاکی او تنزیه ضروری ده ځکه چه انسان د هغے صحیح معرفت بیا مُوندے شی او زړه د هغه د جلال او جمال په شان د نړا او آباد کړیشی،

② د نبوت تصوُّر په دا سے یواندازکښ پیش کړیشی چه د انسان زړه او دِماغ د نبی د عظمت او عصمت په وړاندے ټیټ شی او د هغه د فرمانبرداری عشق دِ د هغه په زړه کښ پیدا شی:۔

③ د بدلو تصوُّر او د عملونو جزا نقشه دِ دا سے جوړه وی چه انسان دِ نیکئ ته بلی او بدئ نه دِ ورله کرکه او ویره پیدا کوی او د عملونو نتیجو دینی تصوُّر دِ هغه په فرمانبرداری کولو تیار وی او د گناه نه دِ منع کوی، ځکه چه د نیکئ د نتیجو زیرے او د بدئ د نتیجو نه ویرولو مقصد د انسانی شخصیت اصلاح او د جماعتی ژوند پاکی ده، په دے تله اُس مُونږ د بائیبل تعلیمات او هدایات تلُو چه هغه د درے وارو تصوُّراتو مقصد ونه ترکومے پُوره کوی:۔

### د اُلوهیت تصوُّر او بائیبل

(۱) خُداوند، په زمکه د انسان په پیدا کولو پښیمانه او د لگیر شو۔

(تورات پیدائښی درس ۵ او ۶) (۲) پښیمانه پښیمانه کیدلو



ستړے شو (کتاب پرسیا باب ۵ درس ۶) د خط کشیدہ الفاظو نه د خدائے تعالیٰ جاهل کیدل، غمژن کیدل او ستړی کیدل ثابتیږی چه هیچرے د الله د شان سره سمون نخوری:

(۳) نه به بیشکه هغه زمکے ته اُ نه رسے، د کومے په بابت چه ما قسم خوړلے دے، چه څه به هلته ستا د آستوګنے بند و بست کوم (تورایت گنتی باب ۱۴ آیت ۳ بیا په آیت ۳۵ کښ دی) تا ته به ځما وعدہ ما تول معلومه شی، د قسم وعده ما تول یو شریف انسان سره نه ښائی نو خالِق کائنات سره به څنګه اُ ښائی،

(۴) تر صبا صادقه پورے یعقوب خُدائے سره پرزوړ کولے او سحر چه څه وخت تلونو یعقوب پر هغه نه پریښو ترڅو چه برکت ئے ترے وانخستو (پیدائش باب ۲۲ آیت ۲۴):

(۵) خُدائے پاک به د هغه پلاند سمان د بخه را اُ یاسی (کتاب یسعیا باب ۳ آیت ۸):

(۶) خدائے د خیمے په دروازه ولاړ د هغه د خُلے نه اور او سپیره مو نه لوړے را اُوتو او سوړ شوا ومنډ ئے کړه۔ خلقو موسیٰ او هارون ۴ سره خُدائے په گرسئ ناست اُلیدو او خورل سبنل ئے اُکړه، د هغه جاسے د وائرے پشان سپینے او د هغه د سر و یښته سُتره او د هغه پشان وو (اول سلاطین باب ۲۲)

(۷) څوبز خُدائے یهودا پیدا شو (عبرانیون باب ۷ آیت ۱۴)

(۸) د خدائے کم عقلی د خلقو د عقلمندئ نه او د خدائے کمزوری د خلقو د زور نه زیاته ده ، تہ ځما خوګ ئے او مانه ئے پیدا شوے ،۔ (اعمال باب ۱۳ آیت ۳۳)

دے خوالو نه تاسو د خُدائے بائیبلی تصوُّر اندازه کړئ، د دینه

نوره زیاته دَ خُدائے بیعزتی څه کیدیشی، بیا دَ قُرآن دا حکم چه
لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ او لَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ نه اُګوری چه دَ خُدائے هستی
دَ څه په شان نده او نه دَ هغه څوک سیال شته،

## بائیبل او دَ نبوّت تصوّر

(۱) نوحؑ شراب اُڅښل او بدمسته شو، دَ هغه ستر بربنډ شو خو دَ
هغه ځامنو پټ کړو (پیدائش باب ۹ عـ ۱۹)

(۲) لوط علیه السلام شراب اُڅښل او خپلو لُونړو سره ئے زِنا اُکړه
اوسعامله دوه کرته اُشوه: (پیدائش باب ۱۹)

(۳) حضرت یعقوب علیه السلام دَ بزے دَ بچو څرمن دَ لاسه تاؤ کړه
او دروغ ئے اُووئیل او خپل پلار ته دوکه ورکولو دَ پاره ئے خپل نوم
عیص اُښودو (پیدائش باب ۲۷)

(۴) دَ حمور ځوئے سکم دَ حضرت یعقوب لُور وسا سره زنا اُکړه:-
(پیدائش باب ۳۴)

(۵) دَ موسیٰ علیه السلام په غائبید وهارون علیه السلام دَ خلقو په وینا
دَ کالو بُت جوړ کړو او په خلقو ئے دَ دے عبادت اُکړلو او دَ هغے دَ پاره ئے
دَ قُربانیٔ ورکولو حُکم ورکړو، او وے وئیل چه دا ستاسو معبود دے
چه دَ مصر دَ ځکے نه ئے تاسو راُ ویستیٔ (خروج باب ۳۲)

(۶) داؤد علیه السلام په چت اُختو دحتی اوریا ښځه ئے په لمبا اُلیده
نو پرِ عاشق شو او وے بلله او زناکئے ور سره اُکړه چه دَ هغے خیته
شوه نو دَ هغے خاوند ئے په مکر اُوَژلو (دَ سموئیل دویم کتاب باب ۱۱)

(۷) حضرت سلیمان علیه السلام دَ ممانعت باوجود مُوابی او عمُونی
بُت پرستے ځیلے ښځے جوړے کړے او نفسانی خواهش ئے دومره په
چیوشو چه اُودَ سو بیکمو او درے سوو حرمو نه ئے خبره اُرسیده



بیا په دی دومره عاشق او زن مُرید شو چه بتولی ته مائل شو او په
آخری عمُر کښے ئے بتانو ته هم سلام اُکړو (اول سلاطین باب ۱۱)

(۸) مُونږ ایمان لرو چه ته خدائے نه را اوتے ئے، یعنی یسوع:-
(یُوحنا باب ۱۶ آیت ۳۰)

(۹) یسُوع اُو وئیل چه دَ آسمان او زمکے ټول اختیار ماله را کړے شو
(متی باب ۲۸ آیت ۱۸):-

(۱۰) مانه چه څومره وړاندے راغلی دی هغه ټول غله او ډاکوان
دی، (یُوحنا باب ۱۰ آیت ۸)

امت دَ پاره نبیٔ دَ عمل نمُونه وی، آیا دَ نبیانو دا شان دَ نبوّت
مقصد پوره کولے شی؟

## بائیبل او دَ عملونو بدله

(۱) څومره خلق چه په شریعت تکیه کوی، هغه ټول لعنت لاندے
دی (گلیتون باب ۳ آیت ۱۰)

(۲) خُدائے دَ چا عدالت نه کوی هغه دَ عدالت ټول کار خپل ځوئے
ته اُسپارلو (یوحنا باب ۵ آیت ۲۲)

(۳) کوم مسیح چه مُونږ دَ پاره لعنتی جوړ شو هغه مُونږ په بیعه
واخیستو او دَ شریعت دَ لعنت نه ئے خلاص کړو:- (گلیتون باب ۳
آیت ۱۳)

(۴) هغه یوازے زمُونږ دَ گُناهونو کفاره نه ده بلکه دَ ټولے دُنیا
گُناهونو هم (دَ یُوحنا روبے عام خط باب ۲ آیت ۲):-

(۵) یا دریانو ته دَ گُناه بخښلو اختیار دے دَ چا گناهُونه چه تاسو
بخښئ نو هغوی اُبخښلے شوا و دَ چا گناهُونه چه قلئے پریږدئ نو
هغه اُساتلے شوے (یوحنا باب ۲۰ آیت ۲۳):

آیا دَ بدے دلسے تصوُر نه پس دنیکی کولو او دَ گناه نه بچ کیدُ جن به
پاتے کیدے شی، دے نه معلومه شوه، چه دا ټول تحریفات دی،

## شپږم فصل

### مکی او مدنی سُورتونه او دَ هغے شمیر او دَ آیتونو کلمو او دَ حروفو د شمیر په بیان کښے

### دَ مکی او مدنی متعلق درے اصطلاحات دی

(۱) کوم سُورتونه چه دَ هجرت شروع کیدو دَ زمانے نه وړاندے نازل شوی دی، هغه مکی دی او کوم چه دے نه رُستو نازل دی هغه مدنی دی
(۲) کوم سُورتونه چه په مکه کښے نازل شوی دی هغه مکی دی، خو مکے نه مطلب خُود مکه او دَ هغے خواوُ شا علاقه ده، لکه مِنیٰ، عرفات او حُدیبیه او کوم چه مدینه کښ نازل شوی دی، نو هغه مدنی دی خو دلته هم خُود مدینه او دَ هغے خواوُ شا علاقه مُراد ده لکه بدر، اُحد، سلع، (۳) کومو آیتونو کښ چه خِطاب اهلِ مکه ته دے هغه مکی او کومو کښے چه اهلِ مدینه ته خطاب دے، هغه مدنی دی، خو مشهور ټول دے، دَ مکی او مدنی پیژندل دَ صحابه کرامو له اقوالو معلومیږی لکه چه ابوبکر بن عربی په "انتصار" کښ لیکلی دی په دے باره دَ نبی علیه السلام هیڅ قول نه دے نقل شوے په مکی او مدنی معلومولو کښے دا فائده ده چه په نزول کښ دَ وړاندے رُستو سُورتونو پته لگی او دے سره دَ نسخ او تخصیص مسئله په آسانه حل کیدے شی ابوالحسن بن الحصار نه منقول دی چه شل خو په اتفاق سره مدنی سورتونه دی. دولسو سورتونو کښے اختلاف دے، او نور ټول بیا مکی دی، لیکن اُبی بن کعبؓ اوه ویشت سُورتونه مدنی بنائی او نور ټول مکی، زیات تفصیل اتقان جلد۱ صفحه ۹ و ۱۰ کتلے شی:۔



### دَ قرآن دَ سُورتونو شمیر

دَ قُرآن دَ سُورتونو په شمیر کښے دوه مشهُور اقوال دی:۔
(۱) دَ قرآن سُورتونه یو سل څوارلس دی، ۱۱۴ مطلب دا چه انفال او بَراءة ځان له ځانله سُورتونه دی:۔
(۲) دریم دا چه سُورتونه یو سل او دیارلس دی مطلب ئے دا شو چه انفال او بَراءة دواړه په یو سُورت حسابیږی:۔

### دَ قرآن په سُورتونو کښ دَ تقسیمولو یو څو حکمتونه دی

(۱) هر یو سورت دَ مستقلے معجزے په شکل کښے وړاندے کول:۔
(۲) لوستونکو او یادوُونکو ته یو قسم تسلّی خوشحالی او همت ورکول چه په یو سُورة ختمولو سره هغوی دَ قرآن یو مستقله برخه ختمه کړه
(۳) متناسب مضمونونه یو ځائے کول (اتقان جلد ۱ صفحه ۶۲)
ضابطے: کار یوه فائده: دَ مکی مدنی سورتونو پیژندلو یو څو ضابطے:۔
(۱) کوم سُورت کښے چه "کَلّا" لفظ راغلے دے هغه مکی دی، دَ "کلا" لفظ درے دیرش ځایه په پنځلسو سورتونو کښے راغلے دے چه ټول دَ قرآن په اخری نیمه حصه کښ دی ګو آخری نیمه حصه زیاته مکی شو مستثنیات پکښ مدنی دی:
(۲) په کوم سورت کښ چه سجده دَ تلاوت ده هغه مکی دے،
(۳) سِوا دَ سُورت بقره او آل عمران د نورو کومو سُورتونو په سر چه حروف تهجی دی هغه مکی دی:۔
(۴) مفصّل یعنی دَ قُرآن اخری اُومه زیاته برخه مکی ده (طلاق، تحریم او سُورت نصر مدنی دی):۔
(۵) په کوم سُورت کښے چه حدود او فرائض دی، هغه مدنی دی:۔
(۶) په کومو سورتونو کښے چه دَ جهاد بیان دے هغه مدنی دی:۔

(۲) په کومو سورتونو کښې چه د منافقانو بیان دے هغه مدنی دی
(مناهل العرفان جلد ۱، ص ۱۸۹ و ۱۹۰)

**د قرآن د آیتونو شمیر** | د حضرت عائشې رض د شمیر مطابق د قرآن آیتونه شپږ زره شپږ سوه او شپږ شپیته دی، ۶۶۶۶

**د قرآن د کلمو شمیر** | د حضرت مجاهد رح د شمیر مطابق دا شپږ او ... زره او دوه نیم سوه دی ۷۶۲۵۰

**د قرآن د حروفو شمیر** | د حضرت ابن مسعود رض د شمیر مطابق دا درے لکه دوه ویشت زره شپږ سوه یو اویا ۳۲۳۶۷۱

زورونه پنځه څلویښت زره دوه سوه او درے څلویښت دی (۴۵۲۴۳)
زیرونه یو کم څلویښت زره پنځه سوه او دوه اتیا (۳۹۵۸۲) دی:
پیښونه اته زره آته سوه او څلور (۸۸۰۴) دی:
نقطے (۱۰۵۶۸۴) یو لک پنځه زره شپږ سوه او څلور اتیا دی
(تاریخ القرآن صادق، ص ۱۱۹ او فنون الافنان د ابن الجوزی)

## د مختلفو سورتونو مختلف نومونه

**سبع طوال** | اوه اوږده سورتونه (۱) بقره (۲) آل عمران (۳) نساء (۴) سورة مائده (۵) سورة انعام (۶) سورة اعراف (۷) سورة انفال سره د سورة توبه.

**مِئین** | داهغه سورتونه دی، په کومو کښې چه سل یا لږ زیات آیتونه وی سورة یونس نه تر سورة فاطر پورے.

**المثانی** | داهغه سورتونه دی په کومو کښې چه د سلو نه کم آیتونه وی د سورت یٰسین نه تر سورت قٓ پورے:

**مفصل:** د دغو وړو وړو سورتونو نوم دے د سورت قٓ نه داخله د



قرآن تر آخره پورے، یعنی د شپږویشتم سپارے د دریم پاؤ نه رُستو
داخله تر آخره د قرآن نه پورے:

طوال مُفَصَّل : بیا درے قسمه دی،
اوساط مُفَصَّل: د سورت بروج نه تر سورت لم یکن (بینه) پورے
قصار مُفَصَّل: د سورت (بینه) لم یکن نه تر والنّاس پورے،
بعضو علماؤ په نزد طوال مفصل د سورت قٓ نه تر (والمرسلٰت) پورے
اوساط مُفَصَّل د سورت نبأ نه تر والضحیٰ پورے، او قصار مُفَصَّل
د الم نشرح نه تر والنّاس پورے.

# دَ قرآن مُهمّات

## اوّل فصل : دَ باری تعالیٰ جلّ مجدهٗ هستی

انسانی تاریخ سره دَ باری تعالیٰ جلّ مجدهٗ دَ ثبوت عقیده روانه دی. ټول قومونه او ملکونه په اکثریت په دے مسئله کښې اتفاق لري اګرچه په نورو څیزونو کښے اختلاف شته په هره زمانه کښې څه په دے زمانه کښے دَ خُدائے نه مُنکِر خلق هم وی، خو دا په څه دلیل یا عِلم اړانره نه لری بلکه دَ بے علمئ نتیجه ده، دَ مُلحدانو داوَرو که تولے وائی چه مونږ دَ سائنس او دَ محسوساتو په احاطه کښې خدا اُنه موندو بعضے کم عقل خلق دے نه علم بالعدم وائی خو دا بلکه داعدمِ علم دے.

دَ باری تعالیٰ هستی هر کله چه دَ محسوساتو نه لرې ده نو په دے کښې خدائے څنګه بیا مُوندے شی خو دَ دے دا مطلب هُم نه دے چه خدائے هیڅ وشته نه او که څوک بے عقله دا مطلب واخلی نو بیا به دا شی لکه څوک وائی هر کله چه په اُوچه مځکے نشی مُوندے، نو بیا دریاب کښے به هم نه وی، یا په دریاب کښے سمندر اُ نه دینی نو وائی چه په اُوچه هم سمندر نشته، مُونږ چه څنګه اُ لیکل مُلحدان پخپله هم دَ دے اقرار کوی پروفیسر لیټر (LETTRE) چه دَ مُلحدانو سر پینځ دے او ددوی غټ عالم دے لیکی، چه مونږ دَ کائناتو دَ اول اخِر نه ناخبره یو نو څومونږ دا کار نه دے چه دَ یو اَزلی یا اَبدَی هستی انکار اُکړو لکه څنګه چه څمونږ دا کار هُم نه دے چه دا هستی ثابته مادی مذاهب خپل ځان دَ عقلِ اوّل دَ وجود دَ بحث نه جُدا



ساتی، ځکه چه هغوی ته دَ دے هیڅ علم نشته. مُونږ دَ حکمت الٰهی خوښ مُنکریُو او نه ئے ثابتُونکی څمونږ کار بالکل دَ نفی او اثبات نه بیل وی لیکن دَ سائنسدانانو اکثریت دَ خدائے دَ هستیٔ قائل دے رالکلام حصه دوم ص)

(۱) ایزک نیوټن لیکی چه دَ کائنات په برخو کښې کوم جوړخت او تناسُب چه سره دَ ذرّکونو انقلاباتو دَ زمان او مکان دے دا بغیر دَ یو ذات نه قائم ساتل مُمکِن نه دی کوم ذات چه اول دے او دَ عِلم او اختیار خاوند دے،

(۲) دے زمانے دَ ټولو نه لوئے هوښیار سائنسدان هربرټ سپنسر وائی، دَ کومو رازونو او پټو څیزونو چه دا حال وی چه مُونږ پر څومره زیات غور او فِکر کوُو هومره هغه نور هم دا سے پټیږی، دینه یقینی ثابتیږی چه انسان نه پوره ته یوانلی او بدی دا سے یو طاقت شته چه هغے نه ټول څیزونه صادریږی.

(۳) دَ فرانس یو فاضل کیمل فلامریان وائی، چه ټول اُستاذان په دے خبر پوهیدو نه عاجز دی چه وُجود موجُود کیدل څنګه اُ شو او څنګه جاری دے په دے بنا دَ دا سے یو خالق خامخا اقرار کول دی چه هر وخت د هغه مؤثر کیدل همیشه قائم دی.

(۴) پروفیسر لینی لیکی چه قادر او دانا خُدائی ځما په وړاندے خپلو عجیب غریبه کاریګرو سره دا سے جلوه ګر کیږی، چه ځما سترګے وازے پاتے شی او څه پاکل شم هر څیز کښے خواه هغه څومره وړُوکے وی د هغه څومره عجیبه قُدرت، څومره عجیبه حِکمت او څومره عجیب ایجاد مُوندے شی،

(۵) نونتسل په انسائیکلو پیډیا کښے لیکی، چه دَ عُلومِ طبعیاتو مقصد

بوازے دا نه دے، چه خمونږ د عقل تنده ماته کړی بلکه د هغې لوئے مقصد دا دے چه مونږ د خپل عقل نظر خالقِ کائنات ته وړاندې کړو، او د هغه په جلال او عظمت عاشقان شو،،

(الکلام ص ۳۸ و ۳۹)

## دَ نوی فِکر په رڼا کښ دَ باری تعالیٰ ثبوت

د نوی فِکر خاوندان او ته دَ معرفت الٰهی په لار کښے درے شبهے ښه ان جوړ شوی دی، دَ خدائی دَ انکار سره ښيځ دَ امریکے یو مشهور مُلحِد دا شُبهے پیش کوی:

(۱) دَ یقینی عِلم ذریعے یا حِسّ دے او یا وجدان (یعنی حِس باطنی) خو په دے دواړو لارو دَ باری تعالیٰ وجود نه ثابتیږی۔

(۲) دَ باری تعالیٰ ذات او حقیقت دَ تصوُّر نه پورته دے او دَ کوم څیز چه حقیقت نامعلوم وی، نو هغه به څنګه ثابت اَو منلے شی،

(۳) کچرے دَ خُدائے هستی اُو منلے شی، نو په دُنیا کښے موجود شر دَ هغه دَ حکمت نه خِلاف دے لهٰذا داسے کائنات چه هغے کښے شر هُم شامل دے دَ هغه ذات ته نشی منسُوب کیدے:

**دَ رُومبئ شُبهے جواب**

دَ رُومبئ شُبهے جواب دا دے چه باری تعالیٰ په وجدان (حس باطنی) سره څکه ثابت دے چه انسانی اکثریت دَ وُجود دَ خُدائے اقرار کوی کچرے دَ یو څو کسانو له دے انکار دے نو دَ هغے وجه دا ده چه دَ هغه وِجدان صحیح نه دے، لکه څنګه چه ظاهری حواسو کښے نقصان راتلے شی دغه رنګ په وِجدان یعنی باطنی حواسو کښے هم نقصان راتلے شی کچرے



دَ سترګو نظر دَ سست نه وی نو خدو ورته نه ښکاری دغه رنګ کچرے وِجدانی بینائی خرابه شی نو دَ وجدانی امور واحساس ورته نه کیږی مونږ خو بیے هم وینی دی چه ظاهری حِس سره خدائے څکه نشی معلومیدے چه هغه دَ دے اِحاطے نه بهر دے، که بیا هم څوک خامخا زور لګوی، نو دَ هغے به دا مطلب وی، چه هغه خوږ او تریخ په سترګو معلومول غواړی، حالانکه هغه دَ دے احاطے نه بهر دَ مُبصَراتو په غلئے دَ مذُوقاتو په احاطه کښ داخل دے، نو دَ باری تعالیٰ ذات د ظاهری محسوساتو نه بالاتر کو وِجدانیاتو او معقُولاتو په احاطه کښے راځی،

**دَ دویمے شُبهے جواب**

دَ دویمے شُبهے جواب دا دے چه دَ ډیر څیزونو حقیقت معلُوم نه وی خو مونږ منُو، نو دَ خُدائی په منلو کښے دا اِشکال ولے دوی، لکه چه شیخ ندیم الجسر دَ خپل کتاب (قِصّة الإيمان بَيْنَ الْفَلْسَفَةِ وَالْعِلْمِ وَالْقُرْآن) په ص ۳۰ کښ لیکی چه سائنس دانان ماده، روح او حیات منی او حقیقت ئے ورته معلُوم نه دے، دغه رنګ دَ عقل حقیقت او ادراک حِسّی سره دَ هغے جوړخت هم معلوم نه دے، لیکن سره دے، دا خو منی نو دَ خُدائے له هستی په دے بِناء انکار کول ولے دی؟

**دَ دریمے شُبهے جواب**

دَ دریمے شُبهے جواب دا دے، چه (۱) کچرے کائناتو کښے دَ شر داسے واقعات شته کوم چه حکمتِ خُداوندی سره اُس خمونږ په علم کښے سمُون نه خوری، خو کیدے شی چه زُ ستو څه وخت دے سمُون خمونږ په علم کښے راشی، په دے خبره اُس خمونږ علم نه راتلل دَ دے دلیل نه دے، چه بل وخت به هم علم نه راځی، لکه څنګه چه دا یو حقیقت

دے چہ زڑګونه کاله ورانه دے انسان نه د دیرو قوانینِ قُدرت علم نه وو او د ستوو رنه د دے علم اُ شو،

(۲) د غالبی واقعاتو کومے کړې چہ موږ نه شر ښکاري د هغے وجه داده چہ موږ نه د ټولو واقعاتو د تحیر علم نشته پکار دے داسے کیدے شو ے، نو دا ښکاریدونکے شر به موږ نه خیر معلومیدو،

(۳) ابن سینا په (شفا) کښے جواب ورکړے دے، چہ د دُنیا درے حالته فرض کولے شی، (۱) خالص خیر (ب) خالص شر (ج) ډیر خیر او لږ شر، دقدرت په ورانه ے داد ریوا ړه صورتونه وُو، په اوّمبی صورت عمل کیدے شو. دویم صورت ځکه نشو کیدے، چہ قدرت داسے دُنیا نه ه پیدا کړے چہ ټول د شر شروی، دریم صورت کښے خبره شته لکه دا خبره چہ قدرت له داسے عالم پیدا کول، مناسب وو چہ په هغے کښے خیر زیات او شر کم وے، که دا شر ئے بالکل کټ کړے وے، نو ټول به خیر خیر پاتے شوے وو، خو داسے ځکه نشی کیدے چہ د دغه لږ شرکت کولو په وجه به دُنیا د ډیر خیر نه محرومه وه، لکہ چہ اور د سوځولو په وجه شر دے بدن، جامے، آبادی سوځوی، که دا لږ شان شر نه وے، نو بیخلے کرمول او نور ډیر د فائدے کارونه به هم ور سره ختم وو دُنیا به ځنګه چلیده، یا لکه اوبه چہ د شر اړخ ئے (سیلاب وغیره) ډیر کم دے مګر د خیر اړخ ئے ډیر زیات دے د دُنیا د ډیرو خیزونو ژوند ور سره تړلے دے او نور بیشمیره خیرونه پکښ دی. یا لکه هوا چہ د شر اړخ ئے (طوفان او بیا بیے اُونے د بیخه راګوزاریدل) کم او د فائدے اړخ ئے ډیر زیات دے په دے کا بونه زیات د ډیرو خیزو ژوند ولاړ دے، او نور ډیر خیرونه پکښته نو قدرت دلسے اُکړه چہ لږ شرئے د ډیر



خیر د پاره پکښ پریښو، او د به بیا اور نه وو چہ بیخلے ئے کولے شوے او جماعت ئے نشوے سیزلے دے خو به بیا بیخلے هم نشوے کولے او نه به پکښے داسے ګرمی وه چہ په یخنئ کښ پرځان ګرم کړے وے

(۴) ابن رُشد د دے شبے داجواب ورکړے دے، چہ دُنیا کښے ټول شر و نه ځان له نه دی بلکه خیر سره د تابع په ډول تړلی دی لکه غُصه بده خو ده لیکن که دا نه وے، نو چا به هم د قاتل مُقابله نشوه کولے او نه به ئے د خپل مال او عزت حفاظت په هغه وخت کښے کولے شو کوم وخت چہ چا په دے حمله کولے، شهوت خراب دے خو ښکاره غټه فائده ئے دا هُم ده چہ دُنیا تړ آباده ده او ټول انسانی نسل هم په دے قائم دے د ملحدانو د شبهو لرے کولو نه پس موږ د نوی فِکر په رڼا کښے د باری جلّ مجده د اثبات دلائل پیش کوو،

## اول دلیل

د عالم وجود به یا باری تعالے ته منسوب وی یا به مادے او د هغے حرکت ته بے له قصد او ارادے او یا به مادے او ارادے ته منسوب وی خو سره د قصد او ارادے، د دے دریم صورت هیڅوک قائل نشته نه د خدائے منونکی او نه نامنونکی ځکه چہ مادیین په دے متفق دی چہ ماده اراده نه لری اُس صرف دویم صورت د بحث د پاره پاتے شو چہ عالم د مادے نه بے له قصده او ارادے اتفاقی طور منسوب وی، لیکن دا صورت هُم قطعاً باطل دے ځکه چہ عالم کښ حکیمانه ترتیب موجود دے او په دے د قُدرت قوانین دلیل دے، په عناصرو او مرکباتو کښے تنسیق شته، د نباتاتو او حیواناتو په تخلیق کښے مُرتب نظام شته د موسمونو او د شپے ورځے په تبدیلو کښ د ستارو په حرکاتو کښ یو خاص ترتیب دے، چہ د مادے یا د هغے د حرکتِ مسادفه یا اتفاقیه نتیجه نشی

کیدے څکه کچرے د کاغذ په لسو ټوټو کښې جُدا جُدا ټکرو د یو نه تر لسو هندسے اُلیکلے شی بیا په یو تهیله کښې واچولے شی او یو نابینا ما شوم ته اُووئیلے شی چه دے نه یو یو ټکړه را اُباسه نو که هغه کرورونه واره دا پرچے بیا را اُباسی هیچرے به په ترتیب را اُو نه ځی، دغه رنګ که د یو قصیدے بیلے بیلے جُملے او ټکی په یو بوجنګئ کښے واچولے شی او بیا د غسے یو ماشوم نابینا ته د هغے د راوِستو اُو وئیلے شی نو هیچرے به د قصیدے په اصل ترتیب را اُو نه ځی اګرچه په کرورونو واره دغه بیلے بیلے پرچے را اُباسی نو د دُنیا دا مُرتبه سلسله به د یو نابینا او بے شعوره مادے نه بے له قصد او ارادے څنګه ظاهره شی، د دے نه دا معلومه شوه چه د عالَم متعلق رومبے صُورت "چه دا د یو حکیم خدائے په قصد او اراده ظاهر شوے دے"، صحیح او معقول دے (قِصَّةُ الْاِیْمَانِ بَیْنَ الْفَلْسَفَةِ وَالْعِلْمِ وَالْقُرْاٰنِ لِاِبْنِ نَدِیْمِ الْجسر ص ۲۹۲)

**دویم دلیل**

توے او زره فلسفه په د مُتفقه ده چه د عالَم مادہ عِلم، شعور او ژوند نه لری او په کائنات کښې داسے واره څیزونه موجُودی، په ژوندی څیزونو کښې ژوند شته انسان عِلم او شعور لری په ځناورو کښې شعور شته نوے تحقیق خوداوئی چه بعضے اُونو بوټو کښے هُم شعور شته، نو دا څنګه کیدے شی چه دا څیزونه خود د مادے یا د هغے د حرکت نه پیدا وی او پخپله د مادے د عِلم، ژوند او شعور درے واړه نه تشه وی، حالانکه د نفی محض نه د اثبات وجود ناممکن دے، لهٰذا د کائناتو سرچشمه هغه ذات کیدے شی چه هغه کښے ذاتی ژوند او عِلم وی داسے ذات صِرف هغه خُدائے کیدے شی چه اصل ژوندے علیم او حکیم دے،

**دریم دلیل**

دانسانیت جوهر فِکر او ادراک دے هغه چه په



اُونو بوټو کښے اُوده وو په ځناورو کښې دے اړخ ته اړولو او په انسان کښې را ویښ شو او بیا اُوچت مقصد ته اُورسیدو اُس د خپل ځان نه ترقی سبب وی د عِلم الحیات مشهور ماهر ډاکټر لاټیپ مارګن" لیکی چه د دے ترقئ ظهور د دے خبرے دلیل دے چه د کائناتو د تخلیق اصل او بنیاد شته چه خُدائے دے څکه چه ارتقاء (ترقئ) د پاره د منزل وجود ضروری دے، د عِلم تقاضا داده چه د کوز نی عِلم رازونه په بره نی عِلم کښې حل شوی وی، د طبعیاتو د پېچو راز و نو حل به علم الحیات کښے او کړے د پېچو رازونو حل بیا په علم النفسیات کښې وی د دے د پېچو رازونو حل بیا په علم تحلیل او تعلیل منطقی کښے او بیا د دے عِلم د پېچو رازونو حل په مقامِ رُوحانی کښې وی۔

**څلورم دلیل**

دانسانی عقل دا خُصوصیت دے چه هغه جزئیت نه کُلیت ته راځی او تجربیت او تصوُّریت پیداکوی مثلاً انسانی اشخاصو نه نفسِ انسانی، حیواناتو نه نفسِ نباتی او بیا د عالمی ګنړوالی نه د عالَم نفسِ کُلی ته راځی، دا نفسِ کُلی (وحدت) الله دے چه ټول ګنړوالی هُم په ده ختمیږی (مطلب دا چه دا آخری وحدت دے د دے نه پس بل وحدت نشته (مترجم)

## د باری تعالے ثبوت د سلفی دلائلو په رڼا کښې

**رُومبے دلیل**

دے رُومبی دلیل ته مونږ دلیل غرقی، ځکه وایو چه امام جعفر صادق رح نه چا د الله د وجود دلیل اُغوښتو نو هغه ورته اُفرمائیل چه دریاب کښې ستا کشتئ ډوبه شی تا سره د هغے تخته قدرے نه وی او لامبو هُم نه د ه ځی نو ستا به د بچ کیدو څه اُمید ای نو سائل اُوئیل چه وے نه، بیا امام موصوف اُوئیل چه کچرې کیدو ظاهری اسباب نشته بیا هم د دے اُمید لرل که چا په آ سرا خو به وی

دغه آسرا خُدائے دے، نو دا د باری تعالیٰ د هستئ نفسیاتی دلیل دے

**دویم دلیل** دے دویم دلیل ته مُونږ (دلیل فلکی) ځکه وایُو چه امام ابوحنیفه رح یو سائل ته پر ثبوت د باری تعالیٰ دا دلیل پیش کړے وو، چه یو بیړئ بغیر له د یو ماهر غاړے نه د دریاب بلے غاړے ته نشی رسیدے نو د ټول عالم دا دومره غټه بیړئ به بغیر له ځنګه چلیږی د دے عالم د غټے بیړئ په انتظام چلیدل د دے دلیل دے چه دد دے چلوونکے شته چه هغه خدائے دے۔

**دریم دلیل** دے دریم دلیل ته مُونږ (دلیل تُوتی) ځکه وایُو چه امام شافعی رحمه الله د اثباتِ باری تعالیٰ د پاره په دے طریقه پیش کړے وو چه د تُوت پاڼے چه یوه اُخوری نو پیچے کوی چه د دیښمو چینجے ئے اُخوری نو دیښم ترے جوړیږی شی او د شهدو مچئ چه اُخوری نو شات ترے جوړیږی شی نو د یو څیز نه دا دے مختلف څیزونه جوړیدل د دے اقرار ته مونږ مجبوروی چه دا د هغے قادرِ مطلق کار دے کوم ته چه مُونږ خدائے وایُو:۔

**څلورم دلیل** دے ته مُونږ (دلیل صوتی) وایو، ځکه چه امام مالک دا دلیل داسے ورکړے وو چه هر کله د یو انسان آواز بل سړی نه ویلاویږی او د غه رنګ شکل هم نو معلومیږی چه دا اختلاف د یو عظیم قوّت کار دے کوم ته چه مُونږ خدائے وایُو:۔

**پنځم دلیل** دے ته مُونږ (دلیل بیضی) داسے وایُو چه د چرګے اګئ ته بچے را اُوځی او د اګئ هغه مضبوط قلعه مانه کړی او د بچی د را وتلو تر وخته چرګه هُم داسے په آګونا سته وی، چرګه د دے کینا ستو پابند ول د بچی د جوړیدو وخت معلو مول د اګئ د ماتولو وخت معلومیدل دا ټول الهامی کارونه دی چه خداوند



تعالیٰ په الهام چرګے او بچو ته اُ ښودل، دے نه د الله هستی ثابته شوه

**شپږم دلیل** دے ته مونږ (دلیل نباتی) وایُو ابونواس د قسمانِیم اُونو بُوټو د هغے د قسمانیم پاڼو میوو او ګلونو نه د الله تعالیٰ په هستئ داسے دلیل نیولے دے چه د دے ټولو ماده یوه ده (یعنی اُوبه او خاوره) او بیا د دے نه عجیبه مختلف قسمه څیزونه پیدا کیدل دا ښائی چه دا د یو عظیم قوّت کار نامه ده کوم چه خدائے و بُللی شی،

دا ټول دلیلُونه امام رازی رح په تفسیرِ کبیر جلد اول کښ نقل کړی دی مونږ نور هم واضح بیان کړه : سعدی رح فرمائی:۔

| | |
|---|---|
| برگِ درختانِ سبز در نظرِ هوشیار | هر ورقے دفتریست معرفتِ کردگار |

**اُووم دلیل** دے ته مونږ (لِسانی) داسے وایُو، چه په دنیا کښے دے وخت کنړے ژبے شته دا ژبے اولاد د موربلار یا د خپل ماحول د خلقو نه زده کړی دی او دا سلسله تر آخره تلے ده تر دے چه د اوّل انسان د دُنیا په باره کښ دا جواب ختم شی چه آخِر هغه د چا نه ژبه زده کړه چه بغیر د ده نه بل هیڅوک دغه وخت کښ نه وو، نو دا به مجبوراً منلے شی:۔ چه دده ژبه الهامی وه او د دغے الهام کوونکی نوم خُدائے دے، اُس مُونږ د باری تعالیٰ په ثبوت فلسفی او کلامی دلیلُونه پیش کوو:۔

## د باری تعالیٰ د ثبُوت کلامی او فلسفی دلیلُونه

۱: **دلیل حدوثی**: کائنات او عالم د دوؤ څیزونو نوم دے، یا به جُسم وی یا به په جسم اړه لرونکے څیز، دا دواړه څیزونه

بالذات وي، او که بالواسطه له دوو حالتو به خالي نه وي حرکت
او سکون، کچرې جسم يا په دې اړانره نور خيزونه په دوو
وختونو کښې په دوو ځايونو کښې وي نو دا متحرک دې، او کچرې په دوو
وختونو کښې په يو ځائې وي نو ساکن دې بيا دا دواړه د يو بل ضد دي
چه حرکت راشي نو سکون ختم او سکون چه راشي نو حرکت ختم
شي معلومه شوه چه دواړه حادث (نوپيدا) دي، دغه د کې جسم
او جسم سره تړلي نور خيزونه له دې دوو حادث حالتونو خالي
نه وي بلکه دا به ور سره نښتي وي نو جسم او جسم سره تړلي خيزونه
هم دې به وجه حادث شو، د حادث د پاره محدث (پيدا کوونکې)
ضروري دې کچرې هغه پخپله هم حادث وي نو هغه د پاره به بل محدث
ضروري وي او دې نه به تسلسل (د پُندا نې قصه) جوړ شي دا سې
کيدې نشي نو ضرور دا محدث به قديم وي چه هغه خدائې دې او
دې نه د خدائې وجود ثابت شو۔

**٢: دليل امکاني** دهر خيز درې حالته فرض کولې شي ممتنع الوجود چه د کيدو وجود کيدو نه وي لکه دوه په دوو
کښې پنځه، واجب الوجود چه د هغه وجود ضروري وي، يا ممکن الوجود
چه کيدل او نه کيدل ئې دواړه ضروري نه وي لکه اُبه چه رنګ دا سې
هم کيدې شي او بې رنګه هم اوس عالم ممتنع الوجود ځکه نه دې
چه دا موجود دې، او واجب الوجود هم ځکه نه دې چه ډير خيزونه
پکښې ختم شي او آخر به ټول هم ختم شي دا خو څه مونږ په سترګو
وينو او څه په قياس معلوموو، نو عالم بيا ممکن الوجود شو کوم دې
وجود هم ضروري نه دې او عدم وجود هم ضروري نه دې لکه اُبه
چه د هغې رنګ ضروري نه دې کوم غلو پکښې نو د هغې وجه به



بهرنئ وي ځکه چه د اخپل هيڅ رنګ نه لري دا شان د عالم وجود
ضروري نه وو، که موجود شو، نو د اد بهرني علت نتيجه ده دا
علت که ممکن وي، نو هغه د پاره به بل علت پکار وي او دا سې به
تسلسل (د پندا نې قصه) جوړ شي، چه محال دې نو فيصله دا
شوه چه دا علت به ممکن الوجود نه بلکه واجب الوجود وي چه دا
ذات د خدائې دې چه د هغه وجود دا سې ضروري وي چه د
بهرني علت نتيجه نه بلکه هم د هغه د ذات دا سې تقاضا ده چه د
عقل د رک پکښې نه لګي۔

**٣: دليل قياسي** د يو خيز بل ته چه نسبت اُشي نو دا دوه قسمه دې يا به دا دويم تړلې خيز د اصل خيز سره
درخت وي تر به نه جدا کيږي، لکه د اور نه ګرمي او تاؤ دې ته به
(ما بالذات) وئيلې شي مطلب به ئې دا وي چه د اور ذات دا غواړي
چه ګرمي او تاؤ ور سره خامخا وي، يا به دويم د دويمې خيز لازم نښتي
وي کله به وي او کله به نه وي دې ته (ما بالعرض) وئيلې شي لکه
ور سره ګرمي چه کله پکښې په بهرني علت (اور، نمر وغيره) راځي
کله پکښې نه راځي په دې (ما بالعرض) خيزونو کښې د علت تپوس
لکه اُبه ولې ګرمې دي او په ما بالذات کښې د علت دا سې تپوس نشي کيدې چه اور ولې ګرم دې
قياس مطابق د کائناتو وجود او په ما بالعرض، ځکه چه کله پکښې يو خيز وي کله پکښې نه وي کله
به وي کله نه وي، نو دلته دا سوال خامخا کيږي، چه دا کائنات
موجود دي د دې جواب به دا وي کوم شي چه د اد دا سې ذات
نامه ده چه هغه واجب الوجود دې وجود د هغه ذاتي او ضروري
دې او هغه ته رب العالمين وئيلې شي دلته بيا بل سوال (چه الله
موجود دې) دا سې ختم شي لکه دا سوال ختم شي چه اور ولې

کړم دے، نو په دے دلیل د باری تعالیٰ د ذات او صفات دواړو ثبوت کیږی، مثلاً انسان او د انسان ژوند، علم، لیدل، آوریدل، قدرت، کلام او اراده ټول "ما بالعرض" دی، چه د دے فیضان د پاره د "ما بالذات" او د ذاتی سرچشمے ضرورت وی، نو د انسان بلکه د ټول عالم د وجود د پاره وجو. د باری تعالیٰ او د صفاتو د پاره صفات د باری تعالیٰ سرچشمه او خزانه ده چه هغه "ما بالذات" او واجب الوجود دے

## ۴، دلیل اتقانی

په کائناتو کښے حکیمانه قوانین شته، چه د هغے په زور علماؤ ته د معلولاتو او اسبابونو د مسبباتو علم راځی، دا حکیمانه قوانین دومره وسیع دی چه د ماننه تر اوسه د سائنس په ذریعه څومره قوانین معلومه شوی دی د دغو قوانینو په نسبت چه تر اوسه لامعلومه هم نه دی ډیر کم دی، بلکه د دے معلومه قوانینو نسبت نامعلومو قوانینو سره داسے دے لکه د یو څاڅکی چه سمندر سره دے هم دغه وجه ده چه په سائنسی قوانینو کښ ترقی لا روانه ده، بیخی دا حکیمانه قوانین کم و نو سائنسی ترقی په تپه ولاړه وه ځکه چه سائنس د قدرت د قوانینو معلومول او بنکاره کول نوم دے، دا بنکاره خبره ده چه دا حد او بے حسابه حکیمانه قوانین د قادر مطلق حکیم کیدے شی هغه خدائے دے، د ا هیڅرے د مادے کار ځکه نشی جوړیدے چه مادے بیخپله د علم، شعور، حیات او حکمت نه تشه ده،

## ۵: دلیل حُبّی

د شاه رفیع الدین نوّر الله مرقده، د ا "رسالة المحبّة"، نومے رسالے مطابق د ټولو کائنا په خپېرا کښې محبت آ ځلے شوے دے: او خصوصًا په انسان کښ

ډیر زیات محبت شته بیا د دے محبت دوه قسمه دی:-

(۱) یو محبتِ ناقصه :- (۲) دویم محبتِ کامله :-

د وړومبی قسم د مال او اولاد محبت دے، او دویم قسم د الله محبت دے ټول مذ هبونه د الله په محبت قائم دی دے نه معلومیږی چه محبتِ الٰهی په فطرت کښ داخل دے، محبت د موجود سره کیږی، مثلاً مونږ خپل ذات یا مال او لاد سره محبت ځکه کوو چه دا موجود دی نیشت سره محبت څه معنی نه لری د محبتِ ناقصه دا حال شو چه د هغے محبوب د موجود وی نو د محبتِ کامله د ولے محبوب موجود نه وی! ضرور موجود دے دا هم د وجودِ باری تعالیٰ دلیل شو، او د الله محبت نه کامل ځکه و بیلو شی چه د محبتِ ناقصه ټول محبوبات لکه مال او لاد وغیره په محبتِ الٰهی قربانولے شی:-

## ۶: دلیلِ التجائی

دُنیا ظُلم نه ډکه ده، او په هره زمانه کښے د مظلومانو شمیر د ظالمانو نه ډیر زیات وی، نو انسانی فطرت د ظاهری ټولو اسبابو او ذریعونه نا اُمیدئ کښے د خپل زړه مضبوطولو د پاره او د دغه نا اُمیدی په اُمید کښ به ټولو د یو غیبی قُوّت سره د رابطے او تړون پیدا کولو کوشش کوی چه هغه د ټولو نه بالا او قادرِ مطلق وی او حالات به لږول و د هغه په قابو کښ وی دا سے قسم التجا گانے دُعا گانے او زاری په ټولو مذ هبو نو کښے شته چه د ذاتِ الٰهی د وجود دلیل دے:-

## ۷، دلیلِ ترتیبی

ټول کائنات په ترتیب دی، یعنی گرمی شپه ورځ، سپرلے او خزان، د ستورو حرکت د حیوانانو او نباتاتو نشو نما ټول په ترتیب دی، دا ټول د یو حکیم ذات د موجودیت ځکه دلیل دے چه د هر ترتیب

ترتیب ورکوونکے وی، دَ دیوان حافظ دَ الفاظو ترتیب دا بنائی چہ
دَ دے ترتیب ورکوونکے شتہ الفاظ پخپلہ یو پل سرہ ترتیب نخوری
همُدغسے دَ کائناتو داعجیب او حیران کن ترتیب دا گواهی ورکوی چہ
دلتہ یو عظیم ترتیب ورکوونکے شتہ چہ اللہ دے او هُم دا دَ اللہ
تعالیٰ دَ هستیٔ دلیل دے،

۸: دلیلِ شعوری

دا جهان یو لوئے عمارت دے چہ دَ دے هرہ پُرزہ دَ حکمت ډکہ دہ او دا دلیل دے چہ دَ دے بانی او معمار دَ عقل او شعور خاوند دے نو بیا دَ دے نسبت بے شعورہ مادے تہ کول دا سے نامعقُولہ دے لکہ دَ یو کسان پہ یو بیابان کښے یو بناشتہ کوتہ بیا مُومی هغے تہ دوارہ ور ننوځی هر شے پکښے موجود پہ ترتیب پروت وی اُس دا دوارہ کسان پہ دے خپل خیال ښکارہ کوی یو وائی چہ دا هر څہ پخپلہ شوی دی کچہ خښتے پخپلہ جوړے شوے بیا پخپلہ پخے شوے او ...
پخپلہ راغلو، بل شو خښتے پخپلہ ورغلے پخے شوے پخپلہ بیا یو ځائے شوے دیوالونہ چتونہ وغیرہ پخپلہ جوړ شو قالینونہ پخپلہ جوړ شو ګډو وبږو نہ پخپلہ وریٔ دا اُوتہ یو ځائے شوہ پخپلہ رنګ اُبوټو راغے دا پکښې پخپلہ رنګ شوہ او بُوټی ګلونو پر پخپلہ اُشوا و قالین ترتیار شو، او بل وائی چہ داسے نہ دہ دا توُل پخپلہ نہ دی شوی دا دَ ماهر انجنیر او کاریګر دَ پوهے او فکر نتیجہ دَ کړو مے دَ عمارت نقشہ ئے پہ ذهن کښې تیارہ کړہ، بیا ئے ضروری خیزونہ او سامان راجمع کړو او پہ ماهرانو او کاریګرانو ئے دَ نقشے پہ مطابق جوړ کړو اُس دَ دے دوارو بیان چہ دَ عقل پہ عدالت کښے پیش شی نو فیصلہ بہ دا وی چہ دَ ړومبی سړے لیونے دِ ماغ خراب دے او دویم



سړے عقل مند دے دَ ړومبی بیان چُوټ غلط او دروغ او دَ دویم بیان بالکل رِشتیا او صحیح دے دغہ رنګ دَ جهان دَ عمارت بارہ کښے دَ مادہ پرستو بیان دَ ړومبی کس پہ شان دروغ او غلط دے او دَ مُومن او خدا پرست بیان بالکُل صحیح او رِشتیا حکیمانہ او عاقلانہ دے، لهذا دَ عقل پہ موجب دَ جهان دَ عمارت دَ پارہ دَ خدائے وُجود ډیر ضرُوری دے او پخپلہ دَ جهان دا عِمارت دَ خُدائے دَ ذات، صِفاتو او کمالونو دَ ثبوت یو غټ دلیل دے

۹: حیاتی دلیل

پہ دُنیا کښې ژوندی مُونږ وینو کوم چہ شتہ مُونږ ژوندی یُو ډیر نور خیزونہ ژوندی دی، نو دا دلیل دَ دے خبرے دے چہ دَ دے عالمی حیات (ژوند) دَ پارہ یو دَ ژوند سرچشمہ او بُنیاد شتہ چہ دا حقیقی او اصلی ژوندے ذات هُم دَ ربّ العالمین دے،

۱۰: ذِکری دلیل

دا اللہ پہ ذِکر کښې کامِل خوند، دَ انجذاب انبساط او دَ زړہ دَ اِصلاح بنیے شتہ، دَ نیشت پہ ذِکر کښې خوند خولا څہ کوے دَ سرہ ذِکر ئے وی نہ، نو دغہ نہ معلُومیږی چہ دَ اللہ ذات موجود دے

۱۱: دَ اِطلاق دلیل

دَا قانون دے چہ دَ هر مُقید دَ پارہ دَ مطلق وُجود ضروری دے ځکہ چہ دَ تقیید او تحدید مطلب دَ وسیع او مُطلق خیز نہ یو محدود او مُقید خیز حاصلول دی، مثلاً دَ زمکے حد بندی هلہ کیږی چہ وسیع زمکہ موجُودہ وی دَ کائناتو ټولو وُجود محدود دے چہ دَ زمان او مکان پہ حدودو کښے بند او راګیر دے دَ پارہ دَ حدودو، قیودو او دَ مکان او زمان نہ بالا تر دَ یو هستیٔ ضرورت دے او دا صرف دَ ربّ العالمین ذات دے

## وُجود دَ باری تعالیٰ او قُرآن مجید

قُرآن دا ښائی چه دَ خدائے اقرار دَ انسان په فطرت کښې داخل دے
دَ علم الانسان دَ ماهرانو دَ متفقه فیصله ده، چه کوم وخت دَ علو
فنونو او تهذیب وجود نه وو او انسان په فطری حالت کښے وو نو
هغه دا سے وخت کښې هُم دَ خُدائے عبادت کریدے، دَ یو مشهُور محقق
مکس مولر، په کتاب "الکلام" کښې دا خبره نقل ده چه "څومره اسلاف
دَ خدائے پاك په وړاندے هغه وخت سرتیټ کړیوو چه دَ خدائے
پاک نوم ئے هُم نه وو زده، دَ جسمانی خدائے یعنی دَ بُت عبادت
دیځه پس دا سے پیدا شو چه اصلی اِنسانی فطرت دَ مثالی صورت
په پرده کښې پټ شو[...] هم دغه وجه ده چه دَ دُنیا دَ تاریخ معلو
سره د دنیا په هره برخه کښې دَ خدائے عقیده موجوده وه۔ اثوری
مصری، کلدانی، یهود، اهل فینیشه ټول دَ خدائے قائل وو"
پلوټارک وائی چه دُنیا ته اُګوری، په ډیرو ځایونو کښې قلاګانے
کارخانے، سیاست، علم، فن، کاروکسب، دولت به نه وی لیک
خدائے به هرځائے کښې موجود وی،، دَ وحی او الهام مُنکر دَ فرانس
یو مشهُور فاضل رفولتیر، وائی چه زردشت منوسولن، سقراط
ټولو دیو سردار، یو منصف او یو خدائے عبادت کولو، هغه غ
فطرت دے، چه قرآن ئے دا سے بیا[ن] کوی:۔
وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيٓ اٰدَمَ مِنْ: څه وخت چه خدائے دَ بنی ا[دم]
ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ، دملا نه دَ هغه نسل را اُبنکو
عَلٰٓى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا او ئے پخپله هغوی په دے گوا
بَلٰى شَهِدْنَا سورة الاعراف ایة[۱۷۲] کړل چه آیا څه ستا سو خدائے
یم نو ټولو وئیل چه آو ته مونږ گواهان یو،



لیکن دَ خارجی اسبابو او آثارو نه کله دا فطری احساس دباؤشی نو
بیا قرآن ځائے په ځائے دا فطرت خبردار کړو،
أَفِي اللّٰهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ (القرآن) (آیا دَ خدائے په باره
کښې هم څه شك کیدے شی، کوم چه دَ آسمان او زمکے موجد دے)
په خو دَ خارجی اسبابو نه دا فطری اِحساس دومره دباؤشی چه
بیا زے دَ خبردارئ اِشاره ورله کافی نه وی په دے وجه قرآن دَ
تجربو او دَ حِس په بنیاد دَ خدائے په وجود استدلال اُکړو، دَ انسانی
تمیز او پوهے دَ شعوع نه، انسان ته چه کوم دیدلی او حسّی !!
مقدِّماتو علم وی هغه دادے، چه کله هغه څه څیز په ترتیب او
تنظیم بیا موُمی نو دَ هغه یقین راشی چه چا عقلمند ذات دا ترتیب
وتنظیم ورکړیدے او دَ بے ترتیبه څیزونو دا اندازه اَخلی چه
دا څیزونه پخپله را یو ځائے شوی دی دَ حافظ یا نظامی دَ شعر بے
ترتیبه الفاظ یو معمولی انسان نه ورکړه هغه چه ئے سل واره وارو
اَواړوی نو هُم به تر په اټکل دَ دوی هغه شِعر پخپله جوړ نشی
حالانکه هم هغه الفاظ دَ شعر وی خو صِرف دَ ترتیب ورکولو کسر
پکښے باقی وی نو دا به کله اُشی چه دَ دُنیا دا په ترتیب نظام دِ
پخپله جوړ شوے وی، قرآن مجید دَ خدائے په وجود دا سے استدلال
کړے دے:۔

| | |
|---|---|
| ① صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيٓ أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ | [۱] دا دَ خدائے کاریګری ده چه هر شے ئے په پخه جوړ کړیدے، |
| ② مَا تَرٰى فِي خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ○ سورة ملک آیة ۳ | [۲] دَ رحمن په پیدا او ښت کښې به تاسو څه فرق اُنه وینئ بیا بیا هم اُګورئ |

چه دَ دَرز پکښې چرته ښکاری ؟

(۳) خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا — خدائے پاک هر یو خیز جوړ کړو، او بیا ئے د هغې یو اندازه مقرر کړه) (د خدائے په پیدا او بنت کښے

لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ط

لَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ○

هیڅ تبدیلي نشي کیدے) (د خدائے په طریقه کښ به ته هیڅ تبدیلي نه مومے)

په دے آیتونو کښ قرآن د جهان درے صفته بیان کړي دي (۱) کامل او بے نقصانه دے (۲) په ترتیب او مناسب دے (۳) د داسے اُصولو او ضُوابطو پابند دے چه څوک ئے ماتولے نشي:-

ن چه تحقیقات آخري حد ته رسیدلي دي او د کائناتو په سوُدونو لاړو بنکاره شو، لوئے لوئے فلسفیان او حکیمان په دیر شور او فکر سره د خُدائے د ثبوت هُم دا استدلال پیش کوي:-

ارسطوُ د خدائے د وجود، د هغه د توحید او د قیامت قائِل وو (ملل ونِحَل د شهرستاني جلد ۲ ص ۳۹۸)

(۱) ملټن ایډ وردوائي چه انسان هغه وخت حَق دق شي چه داسے خَلَق اُوینی چه هغوي دا وائي چه د ناطق او مکرّم مشاهدا تو غونډ عجائباتو په لیدو هُم دا وائي چه دا صرف د بخت او اتِّفاق ریخپله د پیدا کیدو نتیجه ده، دا فرضي احتمالونه او عقلي گُمراهيِ کومولو چه خلق د علم محسوساتو، تُوم لیبنے دے دے لره علِم حقیقي بالکل باطل کړے دے په فزیکل سائنس پوهیدونکي هیچرے په دے یقین نشي کولے،

(۲) هربرټ اسپنسر لیکي، دا رازونه چه هره څو به ورځ لا نور هم باریک کیږي هرکله چه مونږ په هغے زیات بحث کوُو، نو دا به څامخا منلے شي چه انسان د پاسه داسے یو ازلي او ابدي قوّت موجود دے چه د هغے موُجب دا ټول خیزونه موجود دیږي:



(۲) پروفیسر لینه وائي، کوم لوئے خدائے چه آزلي دے، د ټولو خیزونو عالم دے په هر خیز قادر دے، د خپلو کاریگرو په ذریعه ځما په وړاندے دا شان جلوه گر دے چه زه حیران او بیخوده شم (الکلام جلد ۲ ص ۵۶ او ۵۷)

# د باري تعالیٰ توحید

په کومو دلائلو چه د خدائے د وجود یقین راځي هم هغه د خدائے د یووالي دلائل هم دي، عالم ډیرے برخے بنکاري خو حقیقت کښ هغه یو خیز دے، لکه څنګه چه د انسان اندامونه مثلاً سترګے غوږونه خو په لیدو ډیر بنکاري لیکن هغه حقیقت کښ یو خیز (انسان) دے اُس د دے پیدا کوونکے او چلوونکے هم یو ذات دے دوه نه دي نو د دوو نه به زیات څنګه وي، څکه چه یو خدائے انتظام چلولے شي، نو بل خدائے بیا بیکاره شو او بیکاره خُدائے کیدے نشي او کچرے دوه وو هم انتظام نه شو چلولے نو دواړه خدایان څنګه نه شو چه دواړه به په وَسه وي او بے وَسه خُدائے مونږ څر نه دے لیدلے، کچرے دواړه مختلف نظامونه چلوي، نو عالم به تس نس شي او کچرے دواړه یو نظام چلوي نو بیا هم عالم څنګه به ۲ دوه وی او ختم شي چه د عالم حقیقت یو دے او چلوونکي ئے یو حقیقت دوه یا زیات څنګه نشي کیدے چه د وجود او ذات په مینځ کښ داسے نسبت وي، لکه د ظرف او مظروف "مثلاً پنړه او نخپه" اُس کچرے یو خدائے یو ذات ته یو وجود ورکوی او بل خدائے هم دغه ذات ته بل وجود ورکوی، نو دغه یو ذات به د بیخه ختم شي، لکه چه یو پنړه کښ دوه خپے ور اُمنده لو هغه شلیږي او پنړه پاتے نشي، دغه رنګ د دواړو خُدایانو په دخل ورکولو د عالم تباهي ده او کچرے بل خدائے هیڅ دخل نه ورکوی نو دا بیکاره

او عاجز خدائی نه وی بل دا چه د اتفاق ضرورت هلته وی کوم ځائے
کښ چه د اختلاف نه ضرر پیدا کیږی کچرے دواړه خدایان وی نو
ضرورت او حاجت د اتفاق به ور ته نه وی او
نه به ور ته د ضرر ویره وی، ځکه چه دا دواړه کمزورئ د خدائی
خلاف دی، نو دواړه خدایان به خامخا پوره تصرف کوی او کامل
دخل به ورکوی، نو اُس موبږ وئیلی دی چه کچرے دوی دواړه مخالف
تصرف کوی نو هم عالم تس نس او کچرے موافق کوی نو هم عالم
تباه برباد دکه چه دوه مینزه بو جئ کښ دوه تنه ځان ځان له
دوه دومنه غلا اچوی نو هغه به پرق اُشلیږی، دا دلیل قرآن
دا سے بیان کړے دے:-

لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا: کچرے زمکه آسمان کښے ډیر
سورۃ انبیاء آیة ع۲۲ :: خدایان وے، نو دواړه به برباد
شوی وو )

هُم دغه وجه ده چه دعوٰی د توحید په ټولو مذهبونو کښ شته، مشرک
قومونه هُم یو ذات قادرِ مطلق منی :-

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ : کچرے د مشرکانو نه تپوس
وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ ط (سورة :: اُ کړے، چه آسمانونه او زمکه
لقمٰن آیة ع۲۶ ) : چا پیدا کړی دی نو خامخا به داوائی چه الله پیدا کړی دی

عیسایان (مشرکان) منی درے خدایان خو وائی، چه دا درے واړه یو دی
خبره غلطه ده خو بیا هُم حقیقی ګنړوالے هغوی هُم نشی برداشت
کولے، باری تعالیٰ سره په صفتونو فعلونو او عبادت کښ دوی نور شیونه
هُم شریک کړل ځکه د کامل توحید نه محروم شول، په ټولو مذهبونو
کښے بوازے اسلام دا سے مذهب دے چه هغه د باری تعالیٰ توحید



د هر قسم شرک د بوټینو نه پاک کړو:-

## د شرک مذمت

(۱) شرک د مغفرت جوګه نه دے. إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ( سورة النساء آية ع۱۱۶ )

(۲) په مشرکانو جنت حرام دے. إِنَّهُ مَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ ط

(۳) د مشرکانو ټولے نیکئ برباد دی: وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكَ ج لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الْخٰسِرِينَ ○
سورة الزمر آیت ع۶۵ )-

(۴) د مشرک د پاره د بخښنے دعا جائز نه ده. مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ سورة التوبه آیه ع۱۱۳ )

مشرکین هُم د الله په ذات او د عالَم په خالقیت کښ د ه سره په شریک
نه منلو متفق دی، لکه چه شاه ولی الله رح بنکاره فرمائیلی دی:

"مشرکانو صفاتی، افعالی او عباداتی شرک کړیدے،
مطلب دا چه د الله په صفاتو او په فوق الاسباب افعالو او عبادت کښ
ئے ور سره لوړے مقدسے هستیانے شریکے کړے خو د اسلام او
قرآن لوئے خصوصیت دا دے چه دوی د باری تعالیٰ توحید د هر
قسم شرک د بوټئ نه پاک کړو نزدے چه د ما فوق الاسباب نفع
او ضرر مرکزئے بوازے د رب العٰلمین ذات ګرځی، ولو، قُلْ لَا أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا ط ( سورة اعراف )
حاضر او ناظر ئے یو ذاتِ خداوندی اُګرځولو، وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ ( سورة الحدید آیة ع۴ )

عِلمِ غیب ئې صِرف ذات خداوندی سره خاص کړو، قُل لَّا یَعلَمُ مَن فِی السَّمٰوٰتِ وَالاَرضِ الغَیبَ اِلَّا اللّٰهُ (سورة النمل آیة ع۶۵)
دمُشکلاتو حل کولو د پاره ئې بلل هم هغه سره خاص کړل :-
فَلَا تَدعُوا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا (سورة الجن آیة ع۱۸) :-
هر قسم عبادت او ما فوق الاسباب مدد غوښتل ئې هم د الله ذات سره خاص کړل :- اِیَّاکَ نَعبُدُ وَاِیَّاکَ نَستَعِینُ (سورة الفاتحة آیة ع۴) :
تردې چه سجدهٔ تعظیمي ئې هم الله سره خاص کړه، کومه چه نورو دینونو کښې د غیر الله د پاره جائزه وه اَنَّ المَسٰجِدَ لِلّٰهِ :
سورة الجن آیة ع۱۸)
نذر لغیر الله، قسم بغیر اسم الله، طواف لغیر بیت الله ئې بند کړو او داسې د شرک ټول دروازې ئې بندې کړې، حقیقت دا دے چه دخپل دا اقرار نه په زړه چه کوم اخلاقي اثر غورزیږی هغه بغیر ددې توحید کامل نه نشي کیدے، د اطاعت، انقیاد، اِخبات، خشوع، استقلال، توکل او اِخلاص حالت په زړه هله طاری کیدې شي چه دا خیال او اعتقاد ئې وی چه خمونږ د ټولو حاجتونو، ضرورتونو، اُمیدونو، غرضونو او مقصدونو هم یو مرکز دے، دا شان د آزادئ، زړورتیا او بے نیازئ صِفتونه ددې توحید کامل نه بغیر نشي پیدا کیدے کوم کس چه د یو ذات نه سِوا بل څوک حاجت روا گنړی د هغه سر په هره آستانه د ټیټیدو د پاره تیار وی

## نبوّت

د نبوت لغوی بُنیاد کچرے (نبأ) خبر وی، نو د نبی) شرعي او عُرفي معنیٰ په دا الله له طرفه خبر ورکوونکے وی، او کچرے د نبوة په معنیٰ د



رفعة) نه منقول وی نو د نبي معنیٰ به د ټولو نه لوړ او اُوچت شان والا وی، او کچرے د نبی بمعنی طریق" نه منقول وی، نو مطلب به ئې دا وی چه پیغمبر علیه السلام الله ته د رسیدو لاره او وسیله ده، په رومبی صورت کښې مهموز اللام او په آخرو دوو صورتونو کښې به معتل اللام وی، د اشاعرهٔ و نه د "مواقف" شارح د نبی شرعي او اصطلاحی تعریف دا نقل کړے دے،
مَن قَالَ لَهُ اللّٰهُ اَرسَلتُکَ اِلیٰ قَومٍ. نبی هغه څوک وی، کوم ته اَو اِلَی النَّاسِ جَمِیعًا :- چه الله دا فرمائیلی وی، چه ته ما یو قوم یا ټولو خلقو ته پیغمبر لیږلے ئې :
د نبی رومبئ دوه لغوی معنیٰ امام راغب رحمه الله په مُفرداتو کښې لیکلی دی، د نبی یو څو خصوصیات دی چه په هغې د غیر نبی نه جدا کیږي

## د نبوت خصوصیتونه

(۱) یو انسان د نبوت د عهدے د پاره چونړ کول د الله کار دے، دا عُهده وهبی ده کسبی نه ده، الله تعالیٰ په ظاهر باطن په حال او مستقبل پوره خبردار دے چه هغه کوم انسان ته د نبوت فرض په غاړه کوی نو د دغے فرض ادا کولو په هغه کښې کامل قابلیت او استعداد موجود وی اَللّٰهُ اَعلَمُ حَیثُ یَجعَلُ رِسَالَتَهٗ (الله بنه پوهیږی چه د پیغمبرئ منصب چا له ورکول په کار دی :-
(۲) د نبی علوم هم وهبی وی کسبی نه وی، هغه د زمکے د کوم اُستاذ نه زده کړه نه وی کړی، بلکه د آسمانی اُستاذ نه ئې د آسمانی علومو زده کړه کړی وی، او د زمکے په تعلیم کښے هغه اُمّی (نالوستے) وی امام غزالی رح د احیاء العلوم په رومبی جلد کښې د عقل د مرتبو د فرق دا سے بیان کړے دے چه د خلقو د عقل مرتبے مختلفے دی

بعضې ډیر غښتلي وي چه په بنوکلو هم زړه کره نشي کولے، او بعضې تیز دماغي وي چه په بنود نه زړه کره کولے شي او بعضې هغه حضرات دي کوم چه د انساني بنود لے نه بغیر د خپل زړه په زانوا علوم حاصلوي دا پیغمبران علیهم السلام دي۔

۳ په شکل و شباهت او په خوئ خصلت کښې د نورو نه ممتاز وي بخاري وغیره کښې دي:-

كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نبي علیه السلام په صورت

اَحْسَنَ النَّاسِ خَلْقًا وَّ خُلُقًا: او سیرت کښې له ټولو خلقو بهتر وو:-

۴ په علم او عمل دواړو کښې کامل وي، د علم کمال ئې دا دے چه کښې غلطي نه وي او د عمل کمال ئې دا دے، چه ګناه ترې نه کیږي او د عبادت الٰهي د حد نه تیریدل د ده په عمل کښې نه وي، نبي د امت د پاره د عمل نمونه وي:

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ: نو څکه د ګناه نه پاک وي او د خپل عمل غلطه نمونه نه وړاندې کوي، لکه انسان چه د خپل ځکه د پاره د دې ته غلطه نمونه نه وړاندې کوي، الله تعالىٰ چه نبي د عمل نمونه راولیږله نو په هغه کښې د غلطۍ او ګناه څنګه امکان کیدے شي:-

۵ نبي علیه السلام د علم او عمل تکمیل کوي، مطلب دا چه څوک د هغه تربیت کښې راشي نو هغوي په علم او عمل کښې کامل جوړ شي د هغوي د علم او عمل شان د نورو ټولو خلقو نه بلند او ممتاز شي:-

۶ د نبي د تعلیم او عملي ژوندانه دا ښکاره معلومیږي، چه د دے اصل مقصد عام مصالح دي یعني د دوه په وړاندې نه، د یو کس یا د ټبر او ټولي د فائدے په ځائے به عمومي فائده وي:-



۷ د نبي اوم خصوصیت دا دے، چه د نبي معاشي ژوند او اخلاق کردار د بے مالئ او مالدارئ په دواړو وصورتونو کښې یو شان وي کوم خوراک سباك استوګنه او اغوستنه چه د بے مالئ په حالت کښې ئې وي هم هغه ئې د مالدارئ په حالت کښې وي، کومه عاجزي او خاکساري چه د بے مالئ په حالت کښې وي هم هغه ئې د مالدارئ په حالت کښې وي لکه چه د حضور علیه السلام او نورو پیغمبرانو علیهم السلام، د ا ثبوت د تاریخ په پاڼو کښې محفوظ دے ګویا که پیغمبران علیهم السلام په عوامي مفاد د خپل ذاتي مفاد، قربان نوي، او د غلبے او حکومت حاصلولو نه پس هم د هغوي د عجز و نیاز د بندګئ د شان او د هغوي په تواضع هیڅ اثر نه پریوزي، د پیغمبرانو علیهم السلام د زړه او روح خداداد پاکي او صفائي د هیڅ ماحول نه خړیږي او نه کیږي نه د دے مطلب دا شو چه عامو انسانانو نه د هغوي فطرت مختلف دے:-

۸ د نبي په ژوند کښې د تصنع تکلف، نمائش، خپلے لویئ او د ځان ښکاره کولو هیڅ نښه نه وي، او د هغه محبت او بغض د خپل ذات د پاره نه بلکه د رب العٰلمین د ذات د پاره وي، هغه خو د خپل ځان حق معاف کوي، لیکن د الله حق نه معاف کوي:

۹ نبي د الله د فرمانبردارئ عملي نمونه وي، هغه په ښکاره او پټه په دنه او بهر دو ستانو او دښمنانو سره، په قهر او په خوشحالئ کښې بلکه په هر حالت کښې د رضائے الٰهي د لارے نه لو ډزره هم نه اوړي د ګنرے حالاتو او ځاني کیفیات د هغه په استقامت کښې څه نقص نشي راوستے کولے او یا کښې د الله رضا او د شرع تابعداري د هغه په خبرو کښې اغلے شوي وي:

(۱۰) دَ هغه په ذریعه دِ دے دَ پاره عجائبات او معجزات ظاهریږی چه دَ هغه دَ نبوت تائید پرے اُوشی. په شرح مواقف کښے دَ مُعجزے اُوه (۷) شرطه لیکلی دی:

(۱) دا به دَ خدائے فعل وی (۲) د عادت خِلاف به وی، (۳) دَ هغے مقابله به نشی کیدے (۴) د نبوت دعویدار نه به ظاهریږی (۵) د دعوے موافق به وی (۶) بل نبی نه به د دروغژن نه وائی (۷) د دعوے کولو نه به وړاندې نه وی (طبع نو لکشور صـ۲۲۵ تا ۲۲۷)

د معجزے اُصولی قسمونه دوه دی (۱) معنوی مُعجزه دَ خاصانو دَ پاره (۲) حِسی مُعجزه چه عوامو دَ پاره وی دَ حضور علیه السلام معنوی معجزه قُرآن دے، او حِسّی معجزه ئے شق القمر، تکثیر طعام و میاه (یعنے خوراک څښاک زیاتول) او دَ ښاروونو او وَنو تیږو خبرے کول دی.

## په معجزے، کرامت او سحر کښ بیلتُون

معجزه او کرامت دواړه دَ الله کارونه دی، معجزه له پیغمبرانو او کرامت له وَلی، ظاهریږی دواړه اختیاری نوی په اکتساب حاصِلولے نشی، بشود نه او زدکړه ئے نوی، دَ دے دواړو سبب صِرف دَ الله اراده وی، په خلاف دِ سِحر چه دَ هغے معنے دلُغت اِمامانو او مُفسّرینو دا بیان کړے ده، مَادَقَّ مَاْخَذُهٗ وَلَطُفَ، یعنے کوم فعل او عمل چه په مخفی اسبابو بِنا وی هغه سِحر دے، دَ سائنس بعضے موجُوده مصنوعات هُم دَ سِحر په تعریف کښ داخلیدے شی، ځکه چه دَ انسانی فعل دے، دَ انسان په اختیار کښ دے په ښودنه زده کړه، کسب او اکتساب، په مشق او تجربه حاصلیږی دے نه علاوه عادی اُمور دی دَ دے اسباب لکه دَ عام کار کسب دا سے ښکاره او ظاهرږی



چه عام خلق پرے هُم پوهیږی، کچرے له دَ دروغژن نبی نه خِلافِ عادت کار ظاهر شی نو دا به معجِزه نه وی، بلکه په استدراج او سحر کښے به شُکه داخل دی، چه دَ هغے مخفی هغه اسباب موجُود وی کوم چه مادی وی او که غیر مادی وی، خو تعلیمیافته او مشق کوونکی خلق ئے اِستعمالوی، ،، عبدالله المقنع یا زردشت نه کچرے داسے کارونه صادر شوی وی، نو هغه هم په دے قِسم کښ داخِل دی، لکه چه دَ شیخ الاشراق او سکاکی نه هم داسے اُمُور ښکاره شوی دی چه د نبوت دعوٰی ئے نه لرله (تاریخ کښ شته) د غه رنګ دَ ابُوالطیب المتنبیؒ او دَ نورو متنبیانو نه هم داسے کارونه ظاهر شوی دی دا ټول سِحر، استدراج تجربو، او تعلیم سره تعلق لری مثلاً دَ شپُونکی په لاس اچولو دَ شیخ الاشراق لاس دَ اُوبه څخه را بیلیدَل او دَ شپُونکی تګ نه پس بیا لاس جوړیدل چه په حقیقت کښے لاس نه وو بلکه دُوما لوو، او لکه دَ سکاکی چه بعضا دکښے اُور داسے بند کړو چه یو تغرے هم نه بګیدو، دَ طاش کبری زاده روحی نه نقل دے (بحواله مسلمانوں کا نظامِ تعلیم وتربیت گیلانی جلد ۱ صـ۳۲۱ حاشیہ) ابن سینا په آخر دَ اشارات په یو باب کښ اګرچه دَ خوارقو دَ خِلافِ عادت څیزونو طبی اسباب هم بیان کړیدی او په تفهیمات کښ شاه ولی الله رح دا وائی

إِنَّمَا الْمُعْجِزَاتُ وَالْكَرَامَاتُ أُمُوْرٌ أَسْبَابِيَّةٌ غَلَبَ عَلَيْهَا السُّبُوْغُ فَبَايَنَتْ سَائِرَ الْأَسْبَابِيَّاتِ،، اُو خوارق ئے په ممتاز اسبابیا تو کښے شمیر کړیدی لیکن د هغه مقصد خوارق پوهے نه تیر دے کول او دا ئے مقصد نه دے چه دد ے درجه دَ عامو اسبابیا تو په شان کسبی او مشقی ده.

## د نبوت حقیقت

(۱) دَ نبوت حقیقت خو الله تعالی پیژنی یا پخپله نبی لیکن دَ دے شکل

په ذهن کښ را او ستو د پاره امام رازی رحمه الله په (مطالب عالیه) کښې چه څه لیکلی دی دَ هغې خلاصه داده .. چه انسان کښ دوه طاقت دی، (۱) دَ خیر او شر معلومول (۲) او دویم دَ خیر دَ عمل کولو او دَ شر نه دډې کیدو طاقت، دَ رومبی طاقت نوم قُوّتِ نظری دے او دَ دویم طاقت نوم قُوّتِ عملی دے دَ دے دواړو قوّتونو په لحاظ دَ انسان درې قِسمه دی،

(۱) لوهغه خلق چه څپله په دے او صافو کښ ناقص وی :-

(۲) بل هغه خلق چه څپله خو کامل وی لیکن دَ ناقصانو تکمیل نشی کولے

(۳) بل هغه خلق چه څپله هم کامل وی او ناقصان هم کاملان کولے شی دکمال بیا مختلف درجے دی دَ دے آخری حَد دادے چه قوّتِ نظری دومره کامل وی چه دَ دَه په څه علم راشی لوهغه دِ بالکل صحیح وی او دَ غلطئ امکان هیڅ پکښ وی نه او دَ قوّتِ عملی دَ کمال آخری حَد دادے چه هغه ته دِ داسے قوی مَلکه حاصِله وی چه څپله ترې نه کار ونه صادر او دیلائ دَ صادِر یدو امکان ترې نه وی، کوم یو انسان ته چه دَ نظری او عملی کمال دا انتهائی درجه حاصِله وی هم دغه پیغمبر او نبی وی

(۴) امام غزالی رحمه الله تعالی، په (مَعَارِجُ الْقُدُسِ) او (اَلْمُنْقِذُ مِنَ الضَّلَالِ) کښ دَ نبوت په حقیقت کښ پوهے له پاره چه کوم تقریر کړے دے دَ هغې خلاصه داده چه انسان دَ پیدائش په وخت جاهِل وی دَ دې تولو نه رُومبے په هغه کښے دَ لمس قوّت پیدا کیږی چه پرِ گرم، یخ او سخت پیژنی، بیا په دَه کښ قوّتِ حاسّه او باصره پیدا شی چه په رنګ او مِقدار پیژنی بیا ئے دَ آوریدو او څکلو قوّت پیدا شی هغه آوازونه او مزے پیژنی او په دے دَ محسوساتو حَد ختم شی بیا یوه نوے دَ تمیز دور شروع شی چه په هغه دے دَ هغه څیزونو



[illegible] ملوی ، چه په کوم دَ هلاس نه دَ رسی دَ ادور په اُوم کال دَ عُمر [illegible]روع کیږی په دے دور کښ دے څپل، پردی د خوراک څکاک قابل [illegible]یزونه اُو پیژنی، بیا دَ عقل زمانه راشی چه په هغې اِنسان مُمکِن [illegible]ال، صحیح او غلط پیژنی اُس دَ دے نه وړاندے یو بله داسے دَ [illegible] دَ عقل رسائی هغلته نشته لکه څنګه دَ حواسو چه دَ عقل درجے ترّ دسا [illegible]، دَ دے درجے نوم نبُوّت دے چه دَ هغې په وجه دَ وحی په ذریعه [illegible]معه عُلوم او معلُومات حاصلیږی دَ کوم دَ موندلو نه چه عقل [illegible]جز دے :-

[illegible]) دَ نبوت ثابتولو دَ پاره دَ امام غزالی رحمه الله تعالی، دویمه طریقه [illegible] چه نهٔ ټول کارونه دَ کولو دی، او نهٔ دَ نهٔ کولو، بلکه بعضے [illegible]کولو دی او بعضے دَ نهٔ کولو، اُس دا سوال پیدا کیږی چه دَ کولو او [illegible]نهٔ کولو دَ کارونو فرق هر انسان کولے شی، او یا ئے هیڅوک نشی [illegible]ے یائے څوک کولے شی او څوک ئے نشی کولے رُومبی دواړه احتمالونه [illegible]ره باطل دی، یوازے دریم احتمال داسے پاتے کیږی، چه بعضے انسانان [illegible] چه هغوی دا حُدونه متعیّن کولے شی چه فلانی عملونه دَ کولو او فلانی دَ [illegible]ولو جوګه دی دغه حضرات پیغمبران او صاحِب شریعت دی :-

[illegible]) دَ احقر په خیال کښ د بعضے لطیفو څیزونو مثلاً دایمان، کفر، دَ طاعت [illegible]و معصیت تاثیرات دَ عقل دَ حد نه بهر دی، لکه څنګه چه معقولات دَ حواسو [illegible] نه بهر دی نو دَ دوی عِلم دَ عقل په ذریعه څکه نشی حاصلیدے مګر دَ [illegible] دَ تاثیراتو علم ډیر ضروری دے، څکه چه دَ کثیفو څیزونو [illegible] دَ دنیا قواو هرو نفع نقصان معمُول دے لیکن روح سره دَ [illegible] په وجه دَ لطیفو څیزونو اثر قوی وی، مادیاتو کښے لطیف اشیاء [illegible]الاثر وی، لکه ستیم چه دومره قوی الاثر دے چه ریل کاډے

پرمنډے وهي. لهٰذا دَ انساني فلاح دَ دے خیزونو دَ نفع او نقصان
پوازے رب العلمین ځکه کولے شي چه هغه پخپله لطیف او خبیر دے
انتهائي مشرف او عظیم دے او انسان بے حده کمزورے او ذلیل
په دواړه دکښے هیڅ جوړخت نشو راتلے لهٰذا دے دَ یو داسطه دا
چه څه قدرے نسبت ئے دَ الله سره وي او څه دَ انسان سره چه په
طریقه د الله فیض انسانانو پورے راورسوي او دا واسطه دَ نبوت
شي دَ دے واسطے په دَ اسے مثال وی لکه د اور او دَ یو پخاڼئے کولو دَ پاره
چه دَ اور پشان گرم او لطیف هم نه دے او دَ اُبو پشان یخ او بُنید او تکے
دَ اور فیض دَ گرمي) ټیغ په ټیغ ځکه اُبو ته نشي منتقل کولے چه د دے
مینځ کښ جوړخت نشته هرکله چه دَ پخڅے واسطه شوه نو دا اور فیض
هله اُرسي او هغه گرمے شي، هم دغه حال دَ محبت الٰهي او دنبوت دَ علوم
چه د نبي په ذریعه اُمت او عامو انسانانو ته منتقل کولے شي دَ روحا
او ملکیت په اعتبار دَ نبي ذات الله سره نسبت لري او دَ بشریت
انسانیت په اعتبار انسانانو سره نسبت لري او دغه رنگے دَ یو دا
په توګه د نبي مناسبت مفیض (الله) او مستفیض (انسان) د
سره دے:-

(۵) شاه ولي الله نوّر الله مرقده، په حجة الله کښ دَ نبوت په اثبا
کوم کلام کړیدے دَ هغے خلاصه دا ده چه په نباتاتو کښ دهر یو قِ
جُدا خاصیتونه دی دغه رنګ د حیواناتو دَ هر قسم ځان ځان له خ
دی، دا ټول خاصیتونه کډ دوی دَ صُوَرِ نوعیه وُ فطری غوښتنه ده
نوعیه په موجب حیوانانو له چه کُ هغوی دَ ژوند دَ پاره فِطري او
غوښ... نه علاوه یو بل قسم اِدراك هم ورکړے شوے دے چه هغه
اکتسابي او نظري وئیلے شي او دا په تجربه، غور، فِکر او په ترتیب



...نه ما تو حاصلیږي، د دے په ذریعه انسان، تجارت، کار کسب او
...علوم او فنون حاصلوي، خو دا ټول علمونه دَ انسان بدني حالت
...ترون لري، د دے نه بغیر انسان ته یو بل قِسم ادراك هم ورکړے
... دے چه دَ هغه دَ رُوحانیت فطري خصُوصیّت دے. او هغے ته
... ملکیّه هم وئیلے شي هم دَ دے قوّت په اثر هغه دَ کائناتو په کارخانه
...وي چه دا څه له جوړه ده، څه چا پیدا کړے یم، څوک ماله روزي
...، او څه دَ پاره ئے پیدا کړے یم، او دَ دے سوالونو په جوابونو کښے
...دَ یو ډیر لوئے طاقت اِقراري شي، او دَ هغه په وړاندے دَ زاري،
...زي ښیتوالي او دَ تابعداري آداب په ځائے راوړي خو دمه اُمور
... په یو قانُونِ الٰهي موقوف دے، چه دَ هغه دَ رضا ګڼلے مقرره ے
... د دے صُورت دا جوړکړي چه له ډیرو موډو نیں خپل منظورِ نظر
... انسان پیدا کړي کوم چه د دے فِطري غوښتنے (دَ فرمانبرداري
...ون) دَ ظهور سبب جوړ شي دا نبي وي، په اصل مضمون مونږ دے دَ پاره
...ضافه اُکړه، چه عام فهم شي.

...دَ قانوني دلیل دا الله جل جلالهٗ، د دے صفتونه ټول قومونه او
...مُونه مَني، (۱) حاکمیت (۲) قُدرت (۳) حکمت

...دا دَ رو صفتونو تقاضا دا ده چه خپل رعیت او انساني مخلوق با نده
... قانُون اُچلوي ځکه چه بے قانونه حکومت هسے شرم دے، قدرت
...مت هم بے قانُوني نه مَني، نو دا ضروري شوه چه دَ حاکم اعلیٰ او دَ
... العلمین د ذات یو قانونِ دِ موجُود وی او دا هُم ضروري ده چه انسان
...قانُونه خبردار کړېشي ځکه چه بے اِعلان او بے خبره قانُون بیکار دے

دقانون دَاطلاع دوه صُورته کیدیشی، یوعمومی او دویم انتخابی او
عمومی داچه الله رب العلمین هرکس ته ځان ځان له په هرملک او
زمانه کښ دَدے خبروکوی، خو دا دَ الله د شان او دعظمت نه خلاف
دَه، چه یوحقیر انسان امیر یا بادشاه هُم داسے نه کوی چه کور
په کور دِ گرزی او هر هر تن ته دِ خبرورکوی، لودویم صُورت
داسے مناسب دے چه الله تعالےٰ یوغوره اِنسان اُنا کی اوَ د هغه په
واسطه دَ خپل قانُونِ خداوندی نه خبرکړی چه دَخلقودین دنیا
شی، اوعدل او انصاف قائم شی، اوَ دخیر او شر دَ عملونو دنتیجونه
خبرشی دَداسے منتخب او نمائنده حاکمِ اعلیٰ هستئ نُوم دَ شریعت
په اصطلاح کښ نبی اور سُول دے:۔

(۷) دَمحبّی دلیل دَانسان په فِطرت کښے دَ جِسمانی ضروریاتو لکه
ځښاک نکاح وغیره) محبت هم پروت دے، اوَدروحانی ضروریا
(دَالله) محبّت هم، په دُنیا کښ دَ بتولوقومونواومذ هبُونو دا بیشمیره
عبادتګاهُونه دے، صحیح یا غلط مظاهِر دی، دعبادت طریقه صحیح
وی او که غلطه خومطلب ئے الله سره دَ محبّت ثبوت دے، هرکله
الله پاک دَ ټولو خلقومحبُوب دے او دَ محبُوب رضالټول هُم فطرتاً
غوښتنه ده خو دا رضا یوپټ څیز دے چه دَ هغے اظهار به په کلام
نه چه په قیاس او اټکل دغه کلام دَ الله کوم پاک او اعتباری ذات
چه ښکاره کیږی هغه ته نبی اور سُول وئیلے شی، او په دغه کلام دَ الله
دَ اخوښئ او ناخوښئ متعین حدود و ته دَ شریعت په اصطلاح کښ حق
باطل عقیدے، ښه او خراب خویُونه او روا او ناروا عملونه وئیلے
(۸) عدلی دلیل، انسانان دَ خپل ذات باقی ساتلو دپاره دځه
څیزونو محتاج دی، خوراک، څښاک، او ځائے ځائیکے، اوَ د



نوعے دَباقی ساتلو دپاره ددے نه علاوه دَ نِکاح او دَ ښځے هم محتاج وی
داخلور ضروریات ټول انسانان غواړی او طلب کوی، هرکله چه هر
انسان په خپل شهوانی او په نزوعی قوّت دا ضروریات لټوی نو
خامخا به جګړے او کشمکش پیداکیږی او هریو به په خپل غضبی قوت نورمدافعت
کوی، ددے جګړو او شر ختمولو دپاره دَ انصاف قانُون ضرورت دے
چه دَ هرانسان خپل خپل حق محفوظ کړی اُس به دا قانُون دَ چا وی
(۱) دیوانسان یا دَ ګڼرو انسانانو پارلیمنټ) او یا به ئے خدائے جوړوی
، په اُومبی دُوو صورتونو کښے دعدل مقصد نه پوره کیږی، ځکه
چه دعدل قانُون جوړولو دپاره دا څیزونه ضروری دی:۔

(۱) کامل عِلم او کامِل حکمت چه دَ خیر و شر حدُ نو متعین کولو کښے غلطی
اُ نشی:۔

(۲) رحمت او شفقت چه دَ بُغض او عناد په وجه دَ قانُون په جوړولو
کښے بے انصافی اُ نشی:۔

(۳) پَره داری به ـ یکښ نه وی چه دَ قانُون په جوړ ولو کښے دخپل
قوم دَ خپلو وطن دار و لحاظ اُ لشی او دَ نورو حق اُ نه وهلے شی:۔
انسان کښ دا درے واړه صفتونه نشته دَ ده عِلم مکمل نه دے نه پُوره
شفقت شته او نه دَ پرے جَنبے نه بچ کیدے شی، خو دَ خدائے په ذات
کښے دا درے واړه صِفتونه پوره موجود شته، دَده په عِلم کښ غلطی نشته
دَ دُنیا ټول انسانان دده پیدا شوی بندګان دی دے دَ ټولو یو شان
معبُود دے، نو رحمت او شفقت ئے هُم په یو شان دے او پره
جنبه ـ یکښ هُم ځکه نشی راتلے چه الله یو قوم قبیلے یا وطن سره هیڅ
تعلُق نه لری دده شان دے تصور نه هم اُچت او بالا دے، قانون جوړول
هُم دَ دے ذات حق دے او دا قانُون دَ کوم برګزیده بنده، معتمد

او منتخب نمائنده په ذریعه چه لیږی دا نبی علیه السلام او رسول علیه السلام دے.

(۹) توسطی دلیل: پټول مذهبونه دا خبره منی چه انسان هله د خدائے پیژندګلی او عبادت کولے شی چه ورته د هغه د هغه د هغو ذات او لیکن د عامو انسانانو او د خدائے په مینځ کښې د مرتبو په لحاظ هیڅ مناسبت نشته، عام انسان ډیر لاندے او د دُنیا خالق انتهائی بلند دے ضروری شوه چه انسانانو کښې د الله د فیض حاصلو لو دا سے برگزیده واسطه دوی چه بیا دغه فیض عامو انسانانو ته هغه اُورسوی، یو طرف ته د بشریت په واسطه انسانانو سره تړلے وی او بل طرف نه د روحانی پاکیزګئ او بلندئ په برکت الله جل جلاله سره مناسبت لری دوی په حقیقت کښې د فیضان الهی واسطے وی چه د دوی په ذریعه د خالق کائنات فیض انسانانو ته رسیږی مثلاً موبز د اور فیض (ګرمی) اوبو ته رسول غواړو چه د هغے نه چائے یا پخکرے جوړ کړو، خو دا اوبو او اور جوړ رخت نه راځی یو ګرم دے بل یخ یو اوچ دے بل لُوند یو واسطه د پخلے پکار دے چه د هغے په ذریعه د اور ګرمی اوبو کښې ننوزی او مقصد حاصل شی یا دا سے لکه شاه ولی الله رح فرمائی، رُوح انسانی (چه لطیفه ربانی دے) ډیر لطیف دے او انسانی بدن کثیف دے دواړه وجود بشورا تلے الله د جوړ خت را وستو د پاره چه د رُوح انسانی فیض بدن انسانی ته اُورسی واسطه د رُوح طبی (هغه بړاس چه وینے نه پیدا کیږی) پیدا کړه چه د انسان په بدن کښې خوزوی، همدغه رنګ پیغمبران علیهم السلام د الله او د عامو بندګانو په مینځ کښې واسطے دی، د رُشد او هدایت دا شکل د الله د عظمت سره بنائی لکه د نصاراؤ د عقیدے مطابق الله په شکل د عیسیٰ علیه السلام یا د هندوانو د عقیدے مطابق الله په شکل د رام بشن مهادیو راتلل غلط او د فطرت خلاف دی۔



اول دا چه لا محدود خدائے د انسان په شکل کښې محدود کیدل د عقل خلاف دی، دویم:- خدائی د انسان په شکل کیدلو سره خپله خدائی قائمه نشی ساتلے او بل دا چه خدائے پاک کښې به هُم د بشریت حاجتونه او ضرورتونه راشی، بیا به خدائے پاتے نشی، دریم:- دا چه دا انسان په شکل سهی خو خدائے پخپله هادی شو نو س به چه د ے کوم عمل کوی هغه به د خدائے عمل ګڼړلے شی، نو انسان به د هغه تابعداری په دے عمل کښې ځکه نشی کولے چه هغه به دا عُذر لری چه انسان د انسان پشان عمل خو کولے شی مګر د خپل خالق او خدائے پشان عمل کول ناممکن دی،

څلورم: دا چه په انسانی جامه کښې د خدائے را تلل مفید نهٔ دی ځکه هغه د چار (عیسیٰ یا رام چندر) په شکل کښې چه را شی نو تړول تعلق به ئے هُم د هٔ سره براه راست وی، او نورو انسانانو سره به ئے بالواسطه وی، ځکه چه هر انسان کښې خو به د دغے عقیدے مطابق خدائے نشی ننوتے، لهٰذا په ځائے د د ے چه خدائے تعالیٰ د انسانی تشکل ذلت په سر واخلی، او پخپله د فیض واسطه شی دا خبره ډیره معقوله دهٔ چه یو غوره کړے انسان د فیض واسطه جوړه کړی چه د هغه عمل د انسانیت (بشریت) په وجه د نورو انسانانو د پاره نمونه جوړه شی یو انسان بادشاه پخپله کوڅه په کوڅه نه ګرزی او نه د بل چا په شکل کښې ګرزی، صرف خپل نمائنده وزیر وغیره مُقرر کړی چه هغه د دهٔ احکام او قوانین نورو ته رسوی:- د اسلام د نبوت تصور د ټولو نه زیات معقول دے هغه د فطرت سلیمه او د دُنیا د رواج سره بالکل مُطابق دے،

پنځم:- دا چه په شکل د بل (عیسیٰ یا رام چندر) کښې د را تلو مطلب دا دے

چه په هغې کښې ظاهر شوې دے نو دا خبره ځکه غلطه ده چه د خدائے
جلوه ګاه او مظهر د دنيا هر يو څيز دے:-

(۲) تقديسي دليل: خُداوندي احکام پيژندل د هغې منل او ګڼل
درے واړه ضروري، د احکامو پيژندلو او پوهې د پاره د معلّم د هغې
منلو د پاره د تقدّس (پاکئ) او د ګڼلو د پاره د مقتدا سے ر پاکے،
نمونے ضرورت دی، چه د تعليم، تسليم، او تعميل په ذريعه دين
الٰهي باقي پاتے شي، که داسے نه وي کو دين سلسله به ګټ شي او د
دين جاري ساتلو د پاره د دے ربط او تړون داسے يو محسوس شخصيت
سره ضروري دے چه د هغه عظمت، تقدّس، محبوبيت په زړونو
کښې داسے مضبوط وي، چه کله هم ترينه اوزي او د احبيت هم د نبي
کيدے شي، ځکه د نبي تصوّر دين د پاره ضروري دے چه د هغه
محبّت او تقدّس د دين د شمع روښانه ساتلو د پاره د تيلو کار ورکوي

# خَتمِ نُبوّت

د ختمِ نبوّت مسئله د اسلامي تاريخ په يو دور کښې هم د شک شبے
جوګه نه ده پاتے شوے او نه په هغې د بحث کولو څه ضرورت ګڼړے
شوے دے، ليکن د پاک او هند په برصغير کښې انګريزي حکومت
د خپلو مفادو او د تاريخي اسلام دشمنئ د تکميل د پاره د اسلام په
دے مرکزي عقيده ګذار کول ضروري اګڼړل د پاره کدے چه د مسلمانانو
يو والے ختم شي د دے سازش پوره کولو د پاره د پنجاب د ضلع ګور
داسپور نه انګريزانو داسے يو سړے په ګوتو راغے چه کدے
مقصد پوره کولو د پاره مناسب وو، هغه د انګريزانو په حمايت



خپل يو امت جوړ کړو او د نوي نبوت بنياد ئے اګښلو هغه ته کتابونه ئے
اليکل چه د هغې بنيادي مقصدونه درے دي:-

(۱) په خپل شخصيت او دعوو زور ورکول:
(۲) د قرآن تحريفونو ته معارف وئيل:-
(۳) د مسلمانانو په دشمنئ او د انګريزانو په دوستئ زور لګول:-

د ده ټوله کاروائي هم د دغه خلاصه لري، لکه اقبال مرحوم وائي:-

سلطنتِ اغیار را رحمت شمرد
رقصها ئے گرد کلیسا کرد و مرد

ترجمه: د غير قومونو د انګريزانو حکومت ئے رحمت اګڼړلو- د ګرجے خوا کښې ئے ګډا ګانې اوکړے او مړ شو:-

د نا خبره مسلمانانو د ايمان بچ کولو د پاره په ختم نبوّت څه بيان کول
ضروري دي، د اسلام مثال د يو عمارت دے او د هر عمارت درے
نقشے وي چه انجنير ئے جوړوي:-

(۱) ذهني او فکري نقشه (۲) تحريري او کتابي نقشه (۳) خارجي نقشه

اسلام د عقائدو، اخلاقو او عبادتو يو عمارت دے د هغې پوره نقشه په
علم الٰهي کښې محفوظ ده، بيا دا نقشه د کتاب او سنّت په شکل کښې جوړه
شوه چه دا د عمارتِ اسلام يو تحريري نقشه اګڼړه، بيا خوار لس سوه
کاله د مسلمانانو جاري عمل د دے نقشے او عمارتِ اسلام يو بهرنے
وجود وو دا درے واړه يو بل سره کښې يو ځائے واخلي دي د الله په علم
کښې د اسلام حقيقت هُوبهُو د قرآن او حديث په شکل کښې ښکاره شو
او قرآن وحديث کښې د اسلام چه کوم حقيقت دو هم هغه د مسلمانانو
په ذهن او فکر کښې پر له پسے نسل په نسل منتقل کيدو، د اسلام په

بنیادی اُمورو کښې مُسلمانانو اختلاف نکړو اګر چه په نورو اُمورو
کښې ئے اِختلاف وو، هم دغه وجه ده چه په اِسلام کښې ډیرے فِرقے پیدا
شوے خو ترېنه هغوی د ختمِ نبوت په بُنیادی حقیقت کښ څه قسمه
اختلاف نکړو البته د کتاب الله او سُنّت نبوی نه د بهر و تو په چل
انکار کیدے شو او هغه غیے اُشو، په دے مسئله په دوؤا پخونو بحث کوو
① عقل ② نقل : په نقل کښې به په درے څیزونو بحث کیږی
① کتاب یعنی قُرآن او ختمِ نبوّت ② حدیث او ختمِ نبوّت ③ اجماع
او ختمِ نبوّت، او کدے نه پس به د ختمِ نبوت په عقلی اَړخ بیان کوو :-

## ۱: قرآن اُو ختمِ نبوّت

د قُران حکیم د سلو آیتونو نه زیاتو کښې د ختمِ نبوت مسئله بیان شویده
خود کوتاه والی په خیال مونږ یو څو آیتونه را چُونړ کوو، ږو مے په سوُرتِ
احزاب کښ دے :-

مَاكَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ : محمد صلی الله علیه وسلم ستاسو په سړو
وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ؕ وَكَانَ : کښے د چا پلار نه دے لیکن د الله رسول
اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ۝ : او په ټولو نبیانو مُهر دے، او الله په
هر څیز خبردار دے :-

دا آیت بالخصوص په ختمِ نبوّت دلالت کوی، یعنی د نبی علیه السلام په
تشریف آوری سره د ټولو نبیانو په سلسله مُهر اُلګیدو، اُس به چا ته
هُم نبوّت نشی ورکولے، چا ته چه ملاویدو هغه ملاؤ شو او که هغوی ک
نبوت د ورد ټولو نه ځکه ږ سته کیښودے شو چه دا نبوت به تر قیامته
چلیږی په آخره زمانه کښې به حضرت مسیح علیه السلام د دوی د اُمتی په
حیث راځی، ټول پیغمبران اُس هُم په خپل خپل ځائے پیغمبران دی مګر
دُنیا کښې صرف د محمدؐ د نبوّت عمل جاری او ساری دے، او الله ټول



څیزونه پیژنی تر دے، چه دا هُم پیژنی چه زمانه د ختمِ نبوت او
ځائے د ختمِ نبوت کوم یو دے په "خاتِم" کښے د "ت" په زیر د ډیرو
قاریانو قرأت دے او د "تَ" په زور د حَسن او د عاصِم قرأت دے،
د اوَمبی قِرأت (یعنی خاتِم) د خاتِم النبیین معنیٰ د ټولو نبیانو
ختموُنکے او د "تَ" په زور (خاتَم) معنیٰ د ټولو نبیانو مُهر. خو که دواړه
قرأتونو مطلب یو دے هغه دا چه هغوی صلی الله علیه وسلم آخری
نبی دے او د دوی نه پس د نبوّت دروازه بنده شوه، ځکه چه د مُهر
معنیٰ د نبوّت بندیږی د ایو بلیغ انداز دے، چه په قرآن سنت او عربی
لغت متفِق دی، د کومو کافرانو په نصیب کښ چه ایمان نه وو، د هغوی
په باره کښ د ایمان بندیږے په لفظ د مُهر بیان کړو، فرمائی.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ (سورة البقرة آية ۶ و ۷)

یقیناً څه خاص خلق داسے کافر دی چه نه هغوی وېرَوے او که نه وېرَوے هغوی به ایمان نه راوړی ځکه چه د هغوی په زړونو او غوږونو مُهر لګیدلے دے :-

کچرے دلته د مُهر معنیٰ د ایمان دروازه بندیدل وی نو په خاتم
النبیین کښ هُم د مهر معنیٰ به خامخا د نبوّت بندیږی، الله صاحب
قرآن مجید دا تفسیر کړے دے په مسلم کښے د ابو هُریرةؓ او په
ترمذی او اُبو داؤد کښ د ثوبان رض نه مرفوعاً روایت دے چه
قیامت نه وړاندے به دجّالان او دروغژنان د نبوت دعوٰی کړی
وَاَنَا خَاتَمُ النَّبِيّٖنَ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ، حالانکه زه خاتم النبیین یم څما
نه پس چا ته نبوت نشی ملاویدے هُم دا الفاظ د حذیفه رض
نه طبرانی او احمد مرفوعاً نقل کړیدی په روایت د ابو هریره رض

په بخاری او مُسلِم کښې دَ نبوّت تشبیه داسې یوکود سره ورکړې ده
چه دَ هغې تعمیر دَ نبوت دَ خښتو شوې وی دَ هرنبی دَ نبوت مثال
ئې دَ یو خښتې ورکړې دې، او په دغه عمارت کښې صرف دَ یو خښتې
ځائې خالی وی نو حضورؐ فرمائی چه ځه هغه یم، "فَاَنَا هٰذِهِ اللَّبِنَةُ وَاَنَا
خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ" دَ ابُوهریرةؓ نه مرفوعًا دَ حضور علیه السلام شپږ
خصوصیات ذکر دی چه په هغې کښې شپږم خُصوصیت "وَخُتِمَ بِيَ
النَّبِيُّوْنَ" یعنی په ما دَ پیغمبرئ سلسله ختمه شوه (رواهُ مُسلِمُ
فِي الفَضَائِلِ) په فتنة الدّجّال کښې دَ ابواُمامه رضؓ نه مرفوعًا روایت
نقل دے، "وَاَنَا اٰخِرُ الْاَنْبِيَاءِ وَاَنْتُمْ اٰخِرُ الْاُمَمِ" یعنی ځه آخری نبی
یم او تاسو آخری اُمّت یئ، دغه رنګ په صحیحینو کښې حضرت علیؓ
ته دَ حضور علیه السلام دا فرمائیل "اَنْتَ مِنِّيْ بِمَنْزِلَةِ هَارُوْنَ
مِنْ مُوْسٰى اِلَّا اَنَّهٗ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ"، یعنی ستا تعلق ما سره هغه دے
کوم چه دَ هارُون علیه السلام دَ مُوسیٰ علیه السلام سره وو سوا دَ
دے چه هارُون علیه السلام پیغمبر وو او ځما نه پس پیغمبر نشی کیدے
دغه رنګ دَ صحیحینو دا روایت چه "لَمْ يَبْقَ مِنَ النُّبُوَّةِ اِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ"
دَ نبوّت هیڅ پاتے نشو سوا دَ رشتینی خوبونو پاس تیر شوی دَ ختم
آیت په باره کښې پخپله مرزا په (ازالهٔ اوهام) ص۲۵۳ و ۶۱۴ کښې داسې
لیکی "مګر دا رسول ختم کوونکے دَ نبیانو دے"، دا آیت چه څرګنده نبی
نه پس به بل نبی دُنیا کښې نه راځی په (حمامة البشریٰ) ص۳۳ کښې لیکی،
"اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ الرَّبَّ الرَّحِيْمَ الْمُتَفَضِّلَ سَمّٰى نَبِيَّنَا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
خَاتَمَ الْاَنْبِيَاءِ بِغَيْرِ اِسْتِثْنَاءٍ وَفَسَّرَ نَبِيُّنَا فِيْ قَوْلِهٖ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ
بِبَيَانٍ وَّاضِحٍ لِّلطَّالِبِيْنَ" په ایام الصلح ص۱۴۶ کښې لیکی "څرګنده نبی
صلی الله علیه وسلم دَ خَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ تفسیر په لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ سره کړې ده



چه ځما نه پس به بل نبی نه وی او دَ حق طلب کوونکو له پاره دا
خبره بنه ښکاره ده په حدیث (لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ) کښې "لَا" دَ نفی
عام له پاره دے (کتاب البریّة) ص۱۸۴ کښې لیکی آنحضرت صلی الله
علیه وسلم بیا بیا فرمائیلی دی، چه ځما نه پس به بل هیڅ یو نبی نه راځی
او حدیث دَ (لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ) داسې مشهور وو چه چا هُم دَ دے په
صحت کښې خبره نشوه کولے او قرآن شریف (چه لفظ ئې یقینی دے
په خپل آیت کریمه "وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ") سره هم
دَ دے تصدیق کوی، چه په حقیقت کښې څرګنده په نبیؐ باندے نبوّت
ختم شوے دے"، په تریاق القلوب ص۳۷۵ کښې لیکی:-

| هر نبوّت را بروشُد اختتام | | هست او خیر الرسل خیر الانام |
|---|---|---|

دَ دے تصریحاتو نه پس په دے خبره کښې هیڅ شک شُبه نه پاتے کیږی
چه ذِکر شوے آیت په ختم نبوت کښې دَ قطعی الثبوت کیدو نه
علاوه قطعی الدّلالت هُم دے،

## دَ خاتم النبیّین لفظ او دَ عربو لغت

(۱) په رُوح المعانی کښې دی چه (خَاتَم) "مَا يُخْتَمُ بِهٖ" ته وئیلے شی لکه
څنګه (طابع) "مَا يُطْبَعُ بِهٖ" ته وئیلے شی،
(۲) په "مُفردات" دَ امام راغب کښې دی، "وَخَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ لِاَنَّهٗ خَتَمَ النُّبُوَّةَ"
(۳) وَفِي الْمُحْكَمِ لِابْنِ سِيْدَةَ "وَخَاتَمُ كُلِّ شَيْءٍ وَّخَاتِمَتُهٗ عَاقِبَتُهٗ وَاٰخِرُهٗ"
(۴) وَفِي التَّهْذِيْبِ لِلْاَزْهَرِيِّ "وَخَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ اَيْ اٰخِرُهُمْ":-
(۵) وَفِيْ لِسَانِ الْعَرَبِ "وَخَاتَمُهُمْ وَخَاتِمُهُمْ اٰخِرُهُمْ"،
(۶) وَفِيْ تَاجِ الْعُرُوْسِ "اَلْخَاتَمُ بِالْفَتْحِ وَالْكَسْرِ مِنْ اَسْمَائِهٖ

عَلَيْهِ السَّلَامُ وَهُوَ الَّذِيْ خَتَمَ النُّبُوَّةَ بِمَجِيْئِهٖ :-

(۷) وَفِيْ مَجْمَعِ الْبِحَارِ، وَخَاتَمٌ بِالْفَتْحِ بِمَعْنَى الطَّابِعِ اَےْ شَيْءٌ يَدُلُّ عَلٰى اَنَّهٗ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ :

(۸) وَفِي الْقَامُوْسِ الْخَاتَمُ اٰخِرُ الْقَوْمِ كَالْخَاتِمِ وَخَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ اَيْ اٰخِرُهُمْ

(۹) وَفِيْ كُلِّيَّاتِ اَبِي الْبَقَاءِ وَتَسْمِيَةُ نَبِيِّنَا خَاتَمَ الْاَنْبِيَاءِ لِاَنَّ خَاتَمَ الْقَوْمِ اٰخِرُ الْقَوْمِ ثُمَّ قَالَ وَنَفْيُ الْاَعَمِّ يَسْتَلْزِمُ نَفْيَ الْاَخَصِّ :-

(۱۰) وَفِي الصِّحَاحِ وَخَاتَمٌ بِكَسْرِ التَّاءِ وَفَتْحِهَا كُلُّهٗ بِمَعْنًى وَّاحِدٍ وَالْجَمْعُ الْخَوَاتِمُ وَخَاتِمَةُ الشَّيْءِ اٰخِرُهٗ وَمُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمُ الْاَنْبِيَاءِ

## دَخَاتَمُ النبيين لفظ او مفسرین کرام

دا صحابو کرامو نه د مرزا تر زمانے پورے یا د دے نه رُستو پورے د قرآن حکیم چه څومره تفاسیر یا ترجمے شویدی ټولو د خاتم النبیینؐ تشریح دا کړیده چه د حضور علیه السلام نه پس بل چا نه نبوّت نشی ملاویدے لیکن څه وخت چه ګوردا سپوری د نبی جوړیدو غم اُخوړو لو په اول کښے خو نه بلکه په اخر کښ ئے د ختم نبوّت خپله عقیده او خپله تشریح دے د پاره بدله کړه چه پخپله هم نبی جوړ شی او په دے کښ د اُمید خلاف کامیابی ده نه اُشوه ،

د هغه خپل بیان دے چه څما دا ګمان هُم نه وو چه مسلمانان به د نبوّت جاری پاتے کیدل قبول کړی، لیکن انګریزی تعلیم او د انګریزی حکومت حمایت او د دین د پوهے او عظمت ختمیدو دا ته کیدو ئے کار کیدلو ته کړو ۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ○ تر دے چه د دے مصنوعی نبوت د یو کامیابے او فائده منده فیکټرئ شکل اختیار کړو او مُرتد سازئ له ئے د تبلیغ اسلام په نوم د فیکټرئ په آمدنئ کښے بنه زیاتے اُ کړو ،



او بل طرف ته د دے نبوّت په منونکو د عهد وا وتنخوا ګانو باران اُوورید دا تو په دے دوی محسوسه کړه چه دا ټول هر څه په دے خود ساخته نبوّت د ایمان د اورو برکت دے، یا په نورو ټکو کښ د مرزا معجزه ده د کومے د چه اکثریت د مسلمانانو محروم دے، کچرے د حالاتو یا څمونږ د غفلت دا رفتار وو نو عجیبه نده چه د مسلمانانو په سر یو بل اسرائیل سور شی او د غه وخت به بیا هیڅ تدبیر څه کار نشی کولے ع

کشورے محکم اساسے بایدت
مُرشدِ رُومی حکیم پاک زاد

دیدۂ مردم شناسے بایدت
سِرّ مرگ و زندگی بر ما کُشاد

هر ہلاک اُمت پیشین کے بود ؛ ز انکه بر جندل گمان بُرد ند عُود !

د اقبال مرحوم)

(۱) امام المفسرین ابن جریر طبری په خپل تفسیر کښ فرمائی :-

وَلٰكِنَّهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَخَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ الَّذِيْ خَتَمَ النُّبُوَّةَ فَطَبَعَ عَلَيْهَا فَلَا تُفْتَحُ لِاَحَدٍ بَعْدَهٗ اِلٰى قِيَامِ السَّاعَةِ وَبِنَحْوِ الَّذِيْ قُلْنَا قَالَ اَهْلُ التَّاْوِيْلِ

(ج ۲۲ صـ

یعنے دوی د الله هغه رسول او خاتم النبیین دی کوم چه نبوت ختم کړو او په هغے ئے مُهر اولګولو او د هغه نه پس به هیچا د پاره تر قیامته نشی پرانستے کیدے او همدغه تک د تفسیر امامانو، صحابه کرامو او تابعینو فرمائیل

(۲) د حضرت علی بن حسین نه ابن جریر رح نقل کړی،

بِكَسْرِ التَّاءِ مِنْ خَاتِمِ النَّبِيِّيْنَ بِمَعْنٰى : خَاتِمُ النبیین ذات" په زیر چه معنے ئے خَتَمَ النَّبِيِّيْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَقَرَءَ ..... به ئے داوی چه هغوی ټول انبیاء ذٰلِكَ فِيْمَا يُذْكَرُ الْحَسَنُ وَالْعَاصِمُ : ختم کړل په قاء یا نو کښ د حسن رح

وَخَاتَمَ النَّبِيِّنَ بِفَتْحِ التَّاءِ بِمَعْنٰى: او عاصم رح نه د (ت) په زور (خَاتَمَ) اَنَّهُ اٰخِرُ النَّبِيِّنَ (جلد ٢٢ صـ١١) نقل دے په دے معنٰی چه دے آخری پیغمبر دے۔

(٣) تفسیر ابن کثیر کښ دی:-

فَهٰذِهِ الْاٰيَةُ نَصٌّ فِیْ اَنَّهُ لَا نَبِیَّ بَعْدَهٗ وَاِذَا كَانَ لَا نَبِیَّ بَعْدَهٗ فَلَا رَسُوْلَ بِالطَّرِيْقِ الْاَوْلٰى لِاَنَّ مَقَامَ الرِّسَالَةِ اَخَصُّ مِنْ مَقَامِ النُّبُوَّةِ فَاِنَّ كُلَّ رَسُوْلٍ نَبِیٌّ وَلَا يَنْعَكِسُ وَبِذٰلِكَ وَرَدَتِ الْاَحَادِيْثُ الْمُتَوَاتِرَةُ۔ مِنْ حَدِيْثِ جَمَاعَةٍ مِّنَ الصَّحَابَةِ (ابن کثیر جلد ٣)

دا ایت صریح نص دے چه د محمد صلی الله علیه وسلم نه پس بل نبی نشی جوړیدے چه نبی نشی کیدے نو رسول خو په طریق اولی نشی جوړیدے ځکه چه رسالت د نبوت نه خاص دے هر رسول نبی وی خو هر نبی رسول نه وی، په دے د رسول الله صلی الله علیه وسلم متواتر احادیث وارد شوی دی کوم چه د صحابه کرامو یو لوئے ټولی د حضور علیه السلام نه نقل کړیدی، وړاندے لیکی:-

لِيَعْلَمُوْا اَنَّ كُلَّ مَنِ ادَّعٰى هٰذَا الْمَقَامَ بَعْدَهٗ فَهُوَ كَذَّابٌ اَفَّاكٌ دَجَّالٌ (جلد ٨ صـ٩٤): دے د پاره چه اُمت په دے خبر شی چه د حضور علیه السلام نه پس څوک چه د دے مقام (نبوت) دعوے کوی هغه دروغژن، دروغ تړونکے او دجّال دے۔

(٤) تفسیر کشاف کښ دی:-

خَاتَمٌ بِفَتْحِ التَّاءِ بِمَعْنَى الطَّابِعِ: خاتم د (ت) په زور معنٰی ئے (مهر) وَبِكَسْرِهَا بِمَعْنَى الطَّابِعِ وَفَاعِلِ (او د (ت) په زیر معنٰی ئے مُهر لګونکے) الْخَتْمِ وَتُقَوِّيْهِ قِرَاءَةُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رض وَلٰكِنْ نَبِيًّا خَتَمَ النَّبِيِّيْنَ: او د دے معنٰی تقویت قرآن د عبد الله بن مسعود رضی الله دا ولی چه



فَاِنْ قُلْتَ كَيْفَ يَكُوْنُ اٰخِرَ الْاَنْبِيَاءِ وَعِيْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ يَنْزِلُ اٰخِرَ الزَّمَانِ قُلْتُ مَعْنٰى كَوْنِهٖ اٰخِرَ الْاَنْبِيَاءِ اَنَّهٗ لَا يُنَبَّاُ اَحَدٌ بَعْدَهٗ وَعِيْسٰى مِمَّنْ نُبِّیَٔ قَبْلَهٗ۔

دا قراءة کړیدے (وَلٰكِنْ نَبِيًّا خَتَمَ النَّبِيِّيْنَ) کچرے ته اُوائی چه دے آخری نبی څنګه کیدے شی چه عیسٰی علیه السلام به په آخره زمانه کښ د آسمانه راکوزیږی نو جواب ئے دا دے چه د حضور علیه السلام نه پس به بل څوک نبی نشی جوړولے او عیسٰی علیه السلام خو د وړاندے نه نبی جوړ دے۔

(٥) په تفسیر رُوح المعانی کښ دی:

وَالْمُرَادُ بِالنَّبِيِّ مَا هُوَ اَعَمُّ مِنَ الرَّسُوْلِ فَيَلْزَمُ مِنْ كَوْنِهٖ خَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ كَوْنُهٗ خَاتَمَ الْمُرْسَلِيْنَ، وَالْمُرَادُ بِكَوْنِهٖ خَاتَمَهُمْ اِنْقِطَاعُ حُدُوْثِ وَصْفِ النُّبُوَّةِ فِیْ اَحَدٍ مِّنَ الثَّقَلَيْنِ بَعْدَ تَحَلِّيْهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِهَا فِیْ هٰذِهِ النَّشْاَةِ وَلَا يَقْدَحُ فِیْ ذٰلِكَ مَا اَجْمَعَتْ عَلَيْهِ الْاُمَّةُ وَاشْتَهَرَتْ فِيْهِ الْاَخْبَارُ وَلَعَلَّهَا بَلَغَتْ مَبْلَغَ التَّوَاتُرِ الْمَعْنَوِیِّ وَنَطَقَ بِهِ الْكِتَابُ عَلٰى قَوْلٍ وَوَجَبَ الْاِيْمَانُ وَكَفَرَ مُنْكِرُهٗ كَالْفَلَاسِفَةِ مِنْ نُزُوْلِ عِيْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ اٰخِرَ الزَّمَانِ لِاَنَّهٗ كَانَ نَبِيًّا قَبْلَ تَحَلِّیْ نَبِيِّنَا بِالنُّبُوَّةِ فِیْ هٰذِهِ النَّشْاَةِ:

د نبی مطلب د رسول نه عام دے نو هرکله چه حضور علیه علیه السلام خاتم النبیین شو نو خاتم المرسلین خامخا شو او د ختمولو نکی مطلب دا چه نوے نبوت په ثقلینو (پیریانو، بنیادم) کښ ختم شو هرکله چه نبی علیه السلام پیغمبر شو او ختم نبوت د دے عقیدے خلاف نه دے په کومے چه اُمت اجماع کړیده او په هغے کښے مشهور احادیث وارد دی او کیدے شی چه د تواتر معنوی درجے ته رسیدلی وی، او په کومے چه قرآن تصریح کړیده او ایمان په هغے واجب دے، او د دے منکر فلسفیان کافر شول

(یعنی نزول د عیسیٰ علیه السلام په آخره زمانه کښ) ځکه چه دے حضور د نبی علیه السلام نه وړاندے نبی شوے دے :

(٦) په تفسیر مدارك کښ دی ،

خَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ بِفَتْحِ التَّاءِ فِيْ قِرَاءَةِ عَاصِمٍ بِمَعْنَى الطَّابِعِ اَيْ اٰخِرِهِمْ لَا يُنَبَّأُ اَحَدٌ بَعْدَهٗ وَعِيْسٰى مِمَّنْ نُبِّئَ قَبْلَهٗ وَغَيْرُهٗ بِكَسْرِ التَّاءِ بِمَعْنَى الطَّابِعِ فَاعِلِ الْخَتْمِ وَتَقْوِيْهِ قِرَاءَةُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

د عاصم رح په قرأت کښ د دتے) په زور د (خاتم النبیین) معنے طابع یعنی آخر دے مطلب ئے دا دے چه د دهٔ نه پس به بل نوے نبی نشی جوړولے او عیسیٰ علیه السلام خو د حضور علیه السلام نه وړاندے پیغمبر شوے دو :، او د عاصم نه بغیر د نورو قاریانو قرأت د (تے) په زیر دے چه معنی ئے ختم کوونکے او مهر لګوونکے دے او د ابن مسعود د قرأت د دے تائید کوی :

(٧) په زرقانی شرح مواهب کښ دی (خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ اَيْ اٰخِرُهُمْ) د خاتم النبیین معنی آخری نبی (جلد ۵ ص ۲۶۷) دغه هم دا په تفسیر د بحر المحیط جلد ۷ ص ۲۳۶ او ابوالسعود په حاشیه د تفسیر کبیر جلد ۶ ص ۷۸۵ کښ لیکی :

(٨) شفاء قاضی عیاض رح په تفسیر د آیت (خاتم النبیین) کښ لیکی (طبع بریلی ص ۳۶۲) :-

مَنِ ادَّعٰى مِنْهُمْ اَنَّهٗ يُوْحٰى اِلَيْهِ : چه څوک د وحی راتلو خپل ځان ته وَاِنْ لَمْ يَدَّعِ النُّبُوَّةَ اِلٰى اَنْ قَالَ : دعوی لری اګرچه دعوے د نبوت فَهٰؤُلَاءِ كُلُّهُمْ كُفَّارٌ مُّكَذِّبُوْنَ : ئے نه وی خو دا ټول کافر دی نبی النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَنَّهٗ : علیه السلام ته د دروغو نسبت اَخْبَرَ اَنَّهٗ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ وَلَا نَبِيَّ : کوونکی دی ، ځکه چه هغهٔ خبر



بَعْدَهٗ وَاَخْبَرَ عَنِ اللّٰهِ اَنَّهٗ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ وَاَنَّهٗ اُرْسِلَ اِلٰى كَافَّةِ النَّاسِ وَاَجْمَعَتِ الْاُمَّةُ عَلٰى حَمْلِ هٰذَا الْكَلَامِ عَلٰى ظَاهِرِهٖ وَاَنَّ مَفْهُوْمَهُ الْمُرَادُ بِهٖ دُوْنَ تَاْوِيْلٍ وَّلَا تَخْصِيْصٍ فَلَا شَكَّ فِيْ كُفْرِ هٰؤُلَاءِ الطَّوَائِفِ قَطْعًا اِجْمَاعًا وَّ سَمْعًا :

ورکړے دے چه هغه آخری نبی دے او د هغه نه پس بل څوک نبی نشی کیدے او هغه ټولو خلقو ته لیږلے شوے دے او د دے کلام په ظاهری معنی حملولو باندے ټول اُمت متفق دے چه تاویل او تخصیص پکښ نشته او د دے ټولو کفر کښ هیڅ شک نشته کوم چه بله معنی د دے خلاف کوی :-

⑨ امام غزالی رحمه الله لیکی :-

اَنَّهٗ لَيْسَ فِيْهِ تَاْوِيْلٌ وَّلَا تَخْصِيْصٌ وَّمَنْ اَوَّلَهٗ بِتَخْصِيْصٍ فَكَلَامُهٗ مِنْ اَنْوَاعِ الْهَذَيَانِ لَا يَمْنَعُ الْكُفْرَ بِتَكْفِيْرِهٖ لِاَنَّهٗ مُكَذِّبٌ لِّهٰذَا النَّصِّ الَّذِيْ اَجْمَعَتِ الْاُمَّةُ اَنَّهٗ غَيْرُ مُؤَوَّلٍ وَّلَا مَخْصُوْصٍ (الاقتصاد) : :

په دے آیت کښ تاویل او تخصیص نشته او چه څوک دا سے کوی نو بکواس کوی او دهٔ باندے د کفر حکم کول هیڅوک نشی بندولے ځکه چه امت په دے متفق دے چه تاویل او تخصیص په دے کښ نشته

دغه ، نك د تفاسیرو په ټولو کتابونو کښ د (خاتم النبیین) هم دا معنے بیان شوی ده او په آثارو کښ د غلور شپیتو صحابه کرامو نه د ختم نبوت هم دا معنی منقول ده :-

د رسولو نه زیات آیتونو د قرآن کښ په عموی انداز دا مسئله ثابته ده چه د حضور علیه السلام نه پس بل چاته پیغمبری نشی ورکولے چه هغه مرزا یانو د څو عنوانا نو په ذیل کښ بیانونو خو دے نه وړاندے د قادیانیانو څو تحریفونه او شیطانی وسوسے لرے کول غواړو چه د خاتم النبیین آیت سره تعلق لری :

## ڇورمبے تحریف

کچرے د خاتم النبیین معنیٰ آخری نبی وی نو د حضرت عیسیٰ علیہ السلام نزول د دے خلاف

دے ددے جواب تیر شو چہ د ختم نبوت معنی دنوی نبوت ګرودګیدو بندیز دے د زوړ پیغمبر نہ پیغمبری واپس اغستل نہ دی، مراد، پہ دور محمدیؐ کښ د عیسیٰ علیہ السلام را تلل دا سے دی لکہ یو ګورنر د صوبے د بل ګورنر صوبے تہ پہ دے حیثیت را شی چہ د دغے صوبے د احکامو دلاندے به وی، بلکہ په غورا و ژور کتلو سره معلومیږی چہ د عیسیٰ علیہ السلام را تلل د ختم نبوت دلیل دے، کچرے آئندہ کښ د نبوت سلسلہ ختمہ نۀ ؤ نو د تیر شوی پیغمبرانو نہ یو ازے د حضرت عیسیٰ علیہ السلام د را وستو هیڅ ضرورت نہ وو، د ټولو نہ د یو پیغمبر (عیسیٰ علیہ السلام) را وستل د دے خبرے دلیل دے، چہ د انبیاء علیہم السلام شمیر د حضور علیہ السلام پہ نبوت ختم شو، لهذا د ټولو نہ هم دغه یو پیغمبر حکم مخصوص کړے شو

## دویم تحریف

د خاتم معنی مهر دے یعنی د حضور علیہ السلام نہ رستو کچرے پیغمبر جوړیدا ولو دده علیہ السلام په مهر او تصدیق سره به جوړیږی، نو اول خو موتیز دا تپوس کوو چہ دا معنیٰ د عربی لغت پہ کوم کتاب کښ لیکلے ده او پہ کوم حدیث کښ بیان ده او پہ کوم تفسیر کښ دا تشریح شوی ده؛

په قرآن، متواتر حدیثو او اجماع امت کښ خو د مهر معنیٰ بندیز را غلے ده لکہ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ۔ او۔ اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰی اَفْوَاهِهِمْ۔ نو کہ دے ټولو په خلاف د مهر معنیٰ جاری کول کله کیدے شی، ځکہ چہ په ځایه مرزا هم د مهر معنیٰ بندیز کړیده، او کچرے جاری کول مراد وی، نو بیا هیڅ د حضور علیہ السلام څہ خصوصیت شو چہ د نورو پیغمبرانو نہ پس نبوت او د حضور علیہ السلام نہ پس هم جاری او کچرے دے نہ مطلب نبوت جاری ساتل وے نو په دے



ځوارلس سوو کالو کښ کم نا کم سل نبیان خو به را غلی وو کنہ چہ د حضور علیہ السلام کمال خو بہ ښکارہ شوے وے کنہ، او کچرے نبوت د حضور علیہ السلام په تابعداری ملاویدے، نو بیا به دا کسبی وے وهبی به نۀ وے، د دے نہ علاوه پہ دے صورت کښ به دا هم منل پکار وی، چہ په دے ځوارلس سوه کالہ کښ د پیغمبر اسلام صلے اللہ علیہ وسلم، دا سے یو کامل متبع پیدا نشو چہ د هغے پہ بدل کښے هغه تہ نبوت ورکړے شوے وے، پہ دومره زمانہ کښ هیلہ د انګریز پہ مهربانئ یو ازے پہ آدیه ورت کښ هم یو پیدا شو چہ د هغه تر آخره پخپل نبوت کښ شک وو، کلہ اقرار، او کلہ به انکار نو دے چہ د هغه منونکی پہ دوو ټولو کښ تقسیم شو:۔

## دریم تحریف

په آیت د خاتم النبیین کښ د (النبیین) الف لام ذهنی یا عهد خارجی دے

چہ مطلب دے صرف تشریعی انبیاء دی ګویا کہ حضور علیہ السلام د تشریعی انبیاؤ خاتم دے، جواب دا دے چہ عهد خارجی د پاره په تیر شوی کلام کښ د تشریعی انبیاؤ علیہم السلام بیا ذکر ضروری دے خو د لته نشته او عهد ذهنی د پاره دا ضروری ده چہ استغراق هلته ممکن نۀ وی لکہ اَکَلَهُ الذِّئْبُ۔ او۔ اِشْتَرِ اللَّحْمَ عِنْدَ عَامَّةِ اَهْلِ الْاُصُوْلِ، وَالْعَرَبِيَّةِ۔ لَامُ التَّعْرِيْفِ سَوَاءٌ دَخَلَتْ عَلَى الْمُفْرَدِ اَوِ الْجَمْعِ تُفِيْدُ الْاِسْتِغْرَاقَ اِلَّا اِذَا كَانَ مَعْهُوْدًا (کلیات ابی البقاء ص۲۲۳) وَفِي الْكَشْفِ ج۱ ص۱۲ وَاِنْ دَخَلَتْ عَلَى الْجَمْعِ وَفِي الرضی ج۲ ص۱۳۰ فَاِذَا لَمْ يَكُنْ لِلْبَعْضِيَّةِ لِعَدَمِ دَلِيْلِهَا وَجَبَ كَوْنُهَا لِلْاِسْتِغْرَاقِ:۔

## څلورم تحریف

خاتم النبیین کښ الف لام استغراق حقیقی

دپاره نۀ دے بلکه دَ عُرفی دَ پاره دے، یعنے تش بعض انبیاء مُراد دی نهٔ چه مطلق انبیاء لکه (وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ) کښې چه صرف بعضے هغه انبیاء مُراد دی چه د بنی اسرائیلو په زمانه کښې وو، جواب ئے دا دے چه استغراقِ عُرفی هلته اخستے شی کوم ځائے چه استغراقِ حقیقی ممکن نهٔ وی لکه (جَمَعَ الْاَمِیْرُ الصَّاغَةَ) ځکه چه د ټولے دُنیا دَ زرګرانو راجمع کول دَ عُرف او عادت په لحاظ مُمکِن نهٔ دی، لیکن په (خاتم النبیین) کښې بے تکلُفه استغراق درست دے، او (یَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ) کښې استغراق ممکن نهٔ دے، مُونږ تپوس کوو چه (وَلٰکِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ) دا رنګ (وَوُضِعَ الْكِتٰبُ وَجِاۡیۡٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ)، (وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ) کښې استغراق حقیقی مُراد دے او که عُرفی؟

## پنځم تحریف

دَ خاتم معنیٰ ډګوټے غمے دے چه مطلب ئے زینت (ښائست) دے یعنی حضور علیه السلام دَ انبیاؤ علیهم السلام ښائست دے، جواب ئے دا دے چه حقیقی معنیٰ مراد اخستل تر هغے محال نهٔ دہ تر څو چه مجازی معنیٰ مراد اخستل صحیح نهٔ وی او دلته خو حقیقی معنیٰ مُراد اخستل صحیح دی او لغت، حدیث، او اجماع دا معنیٰ متعین کړیدہ لهٰذا دلته مجازی معنے اخستل غلط دی که داسے نهٔ وی نو بیا به دَ قُرآن دَ یو لفظ معنے هم نشی متعین کیدے او هر لفظ به دَ مجاز اؤ تاویلاتو کاړه جوړه شی او حقیقت به ورک شی، دَ صوم، صلوٰة او زکوٰة ټولو معنیٰ به بدلے شی.

دَ خاتم النبیین آیت نه پس مُونږ دَ قُرآن حکیم څو نور آیتونه پیش کوو

**کمالی دلیل:-** دویم آیت، (اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا) (المائده آیه ۳)



په دے آیت کښې دَ دین دکمال اعلان اُشو دَ بخاری دَ حدیث په مُوجب هغه ورځ دَ عرفے وه، مظهری کښې دی چه دے نه پس حضور علیه السلام یو اتیا ورځے ژوندے وو، ابن کثیر دَ دے آیت په باره کښې لیکی، چه دا آیت په اُمت دَ ټولو نه لوئے نعمت دے، (حَيْثُ اَكْمَلَ لَهُمْ دِيْنَهُمْ فَلَا يَحْتَاجُوْنَ اِلٰى دِيْنٍ غَيْرِهٖ وَلَا اِلٰى نَبِيٍّ غَيْرِ نَبِيِّهِمْ وَلِهٰذَا جَعَلَهٗ خَاتَمَ الْاَنْبِيَاۤءِ وَبَعَثَهٗ اِلَى الْاِنْسِ وَالْجِنِّ)

امام رازی رح دَ دے آیت په تفسیر کښې لیکی، (اِنَّ الدِّيْنَ مَا كَانَ نَاقِصًا اَلْبَتَّةَ بَلْ كَانَ اَبَدًا كَامِلًا كَانَتِ الشَّرَائِعُ النَّازِلَةُ كَافِيَةً فِيْ ذٰلِكَ الْوَقْتِ اِلَّا اَنَّهٗ تَعَالٰى كَانَ عَالِمًا فِيْ اَوَّلِ وَقْتِ الْبِعْثَةِ بِاَنَّ مَا هُوَ كَامِلٌ فِيْ هٰذَا الْيَوْمِ لَيْسَ بِكَامِلٍ فِي الْغَدِ وَلَا يُصَالِحُ فِيْهِ لَاجَرَمَ كَانَ يَنْسَخُ بَعْدَ الثُّبُوْتِ وَكَانَ يَزِيْدُ بَعْدَ التَّحَكُّمِ وَاَمَّا فِيْ اٰخِرِ زَمَانِ الْبِعْثَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ شَرِيْعَةً كَامِلَةً وَحَكَمَ بِبَقَائِهَا اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَالشَّرْعُ اَبَدًا كَانَ كَامِلًا اِلَّا اَنَّ الْاَوَّلَ كَمَالٌ اِلٰى يَوْمٍ مَخْصُوْصٍ وَالثَّانِيْ كَمَالٌ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلِاَجْلِ هٰذَا الْمَعْنٰى قَالَ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ):- دا آیت په لاندینو وجهو په ختم نبوت دلالت کوی

(۱) دَ دین کمال پخپله دَ دے دلیل دے چه دَ حضور علیه السلام بعثت دَ ټولو نه آخر کښې اُشو چه دَ نبوت په فهرست کښې هیڅوک نبی باقی پاتے نشو:-

(۲) دَ نبی راتګ په دین کښې دَ پاتے نقص لرے کولو دَ پاره، یا دَ وخت پورے دَ چلیدونکو احکامو دَ نسخ دپاره یا په دین کښې دَ کړے شوی تحریف لرے کولو دَ پاره وی لیکن قُرآن او دینِ اسلام کامل دے په دے کښې ترمیم او تنسیخ نشی کیدے او په (اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ۝) کښې دَ قُرآن دالفاظو و معنو بلکه دَ تلفظ دَ

دَ حفاظت اِعلان دے لهٰذا دَ تحریف لرے کولو هم ضرورت نشته باقي دَ تجدید او تبلیغ کار ټول اُمّت ته په جمع ورکړے شوے دے. لکه فرمائي كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ. نو ځکه دَ بل نبي ضرورت پاتے نشو.

(۳) که چرے نبوّت جاري وي نو دین اسلام به ناقص پاتے شي او دَ اسلامي ټول احکام به فضول ثابت شي ځکه چه ټول پوره مسلمانان په دے نوي نبي ایمان راوړي، نو په قرآن، حدیث او په ټول اِسلامي شریعت دَ اوّل نه تر آخره دَ ایمان راوړو باوجود به کافر او همیشه جهنمي وي. نو دین کمال به په دغه نبي ایمان راوړو پورے منحصر وي او په هغه به دَ ایمان راوړو نه بغیر دین نامکمّل بلکه کالعدم وي.

## میثاقي دلیل

ایت دَ وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّ حِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَ لَتَنْصُرُنَّهٗ. یعني څه وخت چه الله تعالیٰ دَ نبیانو علیهم السلام نه وعده واخسته چه څه به تاسو ته کتاب او حکمت درکوم او د هغے نه رُستو دا یو رسول راشي چه ستاسو دَ آسماني کتابونو تصدیق کوي نو تاسو به په هغه ایمان راوړئ او دَ هغه مدد به کوئ ——— دا دَ ټولو انبیاؤ علیهم السلام نه په عالَمِ ارواح کښے وعده اخستے شوے وه په دے آیت کښ (ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ) نه حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم مُراد دے او دَ دوي دَ ټولو انبیاؤ نه رُستو تشریف راوړل ثابتیږي چه دَ دے خبرے دلیل دے چه مشیت الٰهي کښے خو مره انبیاء علیهم السلام چه مقدر وو، نو هغه ټول دَ حضور علیه السلام نه وړاندے مبعوث کړل او دوي علیه السلام دَ ټولو



نه په آخر کښ راولیږلو دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه دَ دوي بعثت دَ بندیز باعث نهٔ بلکه دَ ټولو په آخر کښ دَ دوي علیه السلام مبعوث کول دَ الله په مشیّت کښ مُقدّر وو.

## دَ بعثت عمومي دلیل

قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا ِالَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ج (الاعراف آیة ۱۵۸) او تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرَا ۝ (سورة الفرقان آیة ۱) او وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝ (سورة الانبیاء آیة ۱۰۷) دا ټول دلالت کوي چه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم بعثت ټولو قومونو او زمانو دَ پاره وو نو قیامته پورے انسانان دَ دوي علیه السلام په اُمت کښے شامل دي، دا دلیل دے چه دَ دوي علیه السلام نه پس به بل څوک نهٔ مبعوث کیږي، او دَ دوي علیه السلام په موجودګئ کښے دَ بل نبي راتلو ضرورت ځکه نشته، چه دوي علیه السلام اَكْمَلُ الْاَنْبِيَاءِ دي، لکه چه نمر نه پس دَ ډیوے بلَولو اړتیا نه پس دَ بړنځ ضرورت نشت، په مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ کښ اوّل جز کښ دَ حضور علیه السلام دَ نسبي پلار والي نفي اُشوه، او په وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَ خَاتَمَ النَّبِيّٖنَ کښ ئے دَ رُوحاني او دیني پلار والي نفي ثابته معلومه شوه چه دَ حضور علیه السلام په دیني پلار والي کښ دَ بل چا شرکت نشي کیدے لکه څنګه چه په نسبي پلار والي کښ دَ هیڅوک شریک نشو، ځکه چه دَ یو سړي هیچرے دوه نسبي پلاران نشي کیدے. نو دَ یو اُمّت دوه رُوحاني پلاران څنګه کیدے شي، هیچرے نشي کیدے

## دَ وحي قبلي دلیل

يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ (سورة البقره آیة ۴ پ ۱) وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ

إِلَّا نُوحِيَ إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدُونِ، (سورة الانبياء آیة ۲۵)

(۳) وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكَ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ (الزمر آیة ۶۵)

(۴) وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ سورة الفرقان آیة ۲۰)۔

(۵) وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِنْ قَبْلِكَ (سورة الانعام آیة ۴۲)

(۶) قُلْ قَدْ جَاءَكُمْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِي بِالْبَيِّنَاتِ (سورة آل عمران آیة ۱۸۳)

(۷) وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ سورة فاطر آیة ۳۱)

په دے ایتونو مبارکو کښے او په داسے نورو آیتونو مبارکو کښے د وحی الٰهی ذکر دے چه هغه ئے په قید د (قبلیت) سره مقید کړے شوے دے، کچرے مابعد کښ څر وحی یا نبوت وے نو دا (قید) د گمراه کولو سبب وو، ځکه چه بیا به د "ماقبل" د وحی سره د "مابعد" د وحی هم ذکر کول ضروری وو او (مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ) سره به د (مِنْ خَلْفِهِ) ذکر هم ضروری وے او کم نا کم، وحی، خو به ئی د "مطلق" پریښے وه چه د مابعد د وحی گنجائش پکښ هم پاتے وے۔

**وعدی دلیل** فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنْزِلَ مَعَهُ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ

سورة الاعراف آیة ۱۵۷)؛

داسے ټول آیتونه په کوموکښ چه صِرف د الله او رسول په اطاعت د جنت او فلاح وعده شوے ده، نو دا د نبوت د ختمید و دلیل دے ولے که بل نبی را تلے ظلیٌ وے او که بروزیٌ، نو جنت او فلاح به د هغه په منلو هم موقوف وے، نو بیا به د داسے آیتونو مضمون درست نه وے،



بهرکیف دے نه هُم معلومیږی چه وحی بنده ده۔

## حدیث او ختم نبوت

(۱)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ عَنْهُ مَرْفُوعًا أَنَّ مَثَلِي وَمَثَلَ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِي كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنَىٰ بَيْتًا فَأَحْسَنَهُ وَأَجْمَلَهُ إِلَّا مَوْضِعَ لَبِنَةٍ مِنْ زَاوِيَتِهِ فَجَعَلَ النَّاسُ يَطُوفُونَ بِهِ وَيُعْجَبُونَ لَهُ وَيَقُولُونَ هَلَّا وُضِعَتْ هٰذِهِ اللَّبِنَةُ قَالَ فَأَنَا اللَّبِنَةُ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ؛

د ابو هریرة رضی الله نه مرفوعًا روایت دے، چه زما او زما د وړاندې د انبیاء علیهم السلام مثال داسے دے چه یو سړے کور جوړ کړی او ډیر ښائسته کړی مگر د یو خښتے ځائے په یو گوټ کښې پریږدی، خلق هغے سره تیریږی او خوشحالیږی او وائی چه دا یوه خښته ئی ولے نه ده

ایښے! نو وے فرمائیل، چه دغه آخری خښته زه یم او زه خاتم النبیین یم۔

(۲)

إِنَّ لِي أَسْمَاءً أَنَا مُحَمَّدٌ وَأَنَا أَحْمَدُ إِلَىٰ؛ زما ډیر نومونه دی زه محمد یم قَوْلِهِ وَأَنَا الْعَاقِبُ وَالْعَاقِبُ الَّذِي؛ او زه احمد یم تر دے وینا مبارکے لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ (بخاری و مسلم)؛ چه زه عاقب یم او عاقب هغه وی چه د هغه نه پس بل نبی نه وی (بخاری مشکوٰة شریف باب ۱۰)

(۳) لَوْ كَانَ بَعْدِي نَبِيٌّ لَكَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، کچرے زما نه پس بل نبی وے نو هغه به عُمر رض وو (مشکوٰة مناقب عمر رض ازالہ اوهام ص ۲۳۶ ج ۹۰)

(۴) قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ، حضور علیه السلام فرمائیل علی ته أَنْتَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَىٰ إِلَّا أَنَّهُ؛ ته ئے فرمائیل چه ته زما دا سے لَا نَبِيَّ بَعْدِي (بخاری و مسلم، مشکوٰة باب مناقب علی)؛ لکه هارون علیه السلام چه د موسیٰ وو صرف دومره ده چه زما نه پس بل نبی نشته

(۵) كَانَتْ بَنُوْا إِسْرَائِيْلَ تَسُوْسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهُ نَبِيٌّ وَإِنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ وَيَكُوْنُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُوْنَ (بخاري شريف جلد۱ ص۴۹۱ ومسلم كتاب الايمان)

ترجمه: د بني اسرائيلو د سياست واګې د پيغمبرانو عليهم السلام په لاس کښې به وې، چه يو نبي به فوت شو نو د هغه جانشين به بل نبي وو مګر زما نه پس بل نبي نشته عنقريب د خلفاءِ

کرامو سلسله به شروع شي چه ګڼ به وي

مرزا ليکي چه وحي او رسالت به ختم وي مګر ولايت، امامت او خلافت به کله نه ختميږي (مکتوب به مرزا تشحيذ الاذهان جلد اول ص۱)

(۶) إِنَّ الرِّسَالَةَ وَالنُّبُوَّةَ قَدِ انْقَطَعَتْ: رسالت او نبوت ختم دے ځکه دے فَلَا رَسُوْلَ بَعْدُ وَلَا نَبِيَّ (ترمذي وصححه) نو پس نه به رسول وي،

تحفة بغداد د مرزا ص۶ و مرزا ازالة اوهام ص۶۱ کښې ليکي چه اوس او نه نبي وحي او رسالت تر قيامته ختم دے، په آئينه کمالات ص۳۷۷ کښې ليکي زما سره به هيچرے اُ نشي چه الله تعالیٰ حضور د نبي عليه السلام نه پس بل څوک نبي کړي او ولېږي او دا به هم اُ نشي چه سلسله د نبوت ختميدو نه پس بيا جاري کړي" په حمامة البشرى ص۳۴ کښې ليکي، چه د حضور عليه السلام د وفات نه پس وحي ختمه شوه او الله تعالیٰ په ده عليه السلام د نبيانو خاتم کړه" حقيقة ص۶۳ ضميمه عربي کښې ليکي إِنَّ رَسُوْلَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ وَعَلَيْهِ انْقَطَعَتْ سِلْسِلَةُ الْمُرْسَلِيْنَ،

(۷) عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى مَرْفُوْعًا أَنَا مُحَمَّدٌ وَأَنَا أَحْمَدُ وَأَنَا الْمُقَفِّيْ (رواه مسلم جلد دوم ص۲۶۱) قَالَ النَّوَوِيُّ الْمُقَفِّيْ الْعَاقِبُ، يعني زه آخر الانبياء يم

(۸) أَبُوْ نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ مَرْفُوْعًا: ځکه وړومبے نبي آدم عليه السلام يَا أَبَا ذَرٍّ أَوَّلُ الْأَنْبِيَاءِ آدَمُ وَآخِرُهُمْ مُحَمَّدٌ، او آخري محمد صلی الله عليه وسلم دے، ابن حجر په فتح الباري کښې دے حديث ته صحيح وئيلي دي،



مرزا په حقيقة الوحي ص۳۹۱ کښې ليکي، او د تولو نه آخرے محمد مصطفیٰ صلی الله عليه وسلم پيدا کړو چه خاتم الانبياء او ختم الرسل دے۔

(۹) عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ مَرْفُوْعًا أَنَا آخِرُ: يعنې زه آخر الانبياء او تاسو الْأَنْبِيَاءِ وَأَنْتُمْ آخِرُ الْأُمَمِ: آخر الامم يئ (ابن ماجة)

(۱۰) عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى مَرْفُوْعًا لَيْسَ يَبْقٰى بَعْدِيْ مِنَ النُّبُوَّةِ: يعني زما نه پس به سوا د رښتيا ښو إِلَّا الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ (نسائي وابوداود): بل هيڅ برخه پاتې نشي،

(۱۱) نګ (أَنَا آخِرُ الْأَنْبِيَاءِ وَمَسْجِدِيْ آخِرُ الْمَسَاجِدِ (مسلم جلد اول ص۴۴۶) وَفِي الْبَزَّارِ وَمَسْجِدِيْ آخِرُ مَسَاجِدِ الْأَنْبِيَاءِ، يعنې زه آخري نبي يم او مساجدات د انبياء عليهم السلام د ځما تولو خاتم دے

دا رنګ د دوؤ سوو نه زيات احاديث د ختم نبوت باره کښې موجود دي او په دے عقيده قائمه شويده، د قرآن په هيڅ آيت او د احاديثو په هيڅ حديث کښې د نبوت د سلسلے جاري کولو خبر نه دے ورکړے شوے نه د صحابه کرامو رض نه د تابعينو او تبع تابعينو رح، نه د دوی نه پس زمانے سوا د مرزا د چا دا عقيده پاتې شويده، په دا سے صورت کښې محض قياس نه علولو او نوی تراشلی تاويلونو سره د نبوت د جاري کولو عقيده پيدا کول د عقل او دين نه د محرومئ څومره غټ دليل دے۔

اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْ هٰذِهِ الشَّقَاوَةِ:۔

## ختم نبوت او اجماع امت

ابن خلدون ليکي، چه په دے امت کښې وړومبئ اجماع، د نبوت دعوے کولو په وجه د مسيلمة كذاب په کفر او قتل شوه او د هغه نور ے خرابئ صحابه کرامو رض ته د هغه د قتل نه پس معلومه شوے او دغه رنګ بے اختلافه اجماع صديق په صدق د نبوت د دعويدارانو

په کُفر، ارتداد او قتل باندے جاری دہ او په دے کښ د تشریعی او دَ غیر تشریعی نبوّت هیڅ تفصیل نه دے بیّن شوے۔ خاتم النبیین للشیخ الانور ص۳۳ و ۳۴، علامه قاری شرح فقه اکبر مجتبائی ص۲۰۲ کښے یکی دَعْوَی النُّبُوَّةِ بَعْدَ نَبِیِّنَا کُفْرٌ بِالْاِجْمَاعِ، دغه رنګ د تفسیر په عامو کتابونو، د حدیثو په شرحو او دَ علم کلام په کتابونو کښ د مدعی نبوّت په کُفر دَ اجماع اُمّت تصریح شوی ده :۔

## ختمِ نبوت او درایت

دَ الله نه بغیر دَ هر څیز شروع او ختمیدل دوارہ وی دَ نبوّت هم شروع او ختمیدل ضروری دی، دَ انسانی ژوندګی ومبئ زمانه د ماشوموالی وه، رورو انسانی عقل کښے اضافه کیدله لکه څنګه چه د ماشوم والی د وخت لباس د ماشوم د بدنی ودے په جوړ بدلیږی۔ د خاتم الانبیاء علیه السلام زمانے پورے د انسانی عقل او شعور دَه مکمله شوه نو د غه وخت انسان ته د کامل شریعت او نبوّت غوندے نعمت عطا کولو ضرورت وو چه قرآن په اَلْیَوْمَ اَکْمَلْتُ لَکُمْ دِیْنَکُمْ سره د شریعتِ کامله عطا کولو اعلان اُکړو، او اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّکْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ۝ سره دَ دین او شریعت دَ حفاظت هم اِعلان اُشو دے له باره چه انسان دَ بل نبی دَ راتلو نه په مستقبل کښ بالکل بے طمع شی، ځکه چه تکمیلِ دین او حفاظتِ دین دوارہ شوی دی دَ کوم دَ باره چه د نبی د راتلو ضرورت وی تبلیغ خو دَ اُمّت او دَ عُلماءِ کرامو کار دے چه دَ هغے دَ باره دَ نبی ضرورت نشته لکه قرآن کښ دی، کُنْتُمْ خَیْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْکَرِ، او وَلْتَکُنْ مِّنْکُمْ یَّدْعُوْنَ اِلَی الْخَیْرِ وَیَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَیَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْکَرِ، او دَ مثال په توګه اُمّت د تبلیغ فریضه په قول د ډاکټر سمتهـ، یوازے شیخ معین الدین



نوی ز ۹۰۰۰۰۰) لکه هندوان مُسلمانان کړل"، اداکړه (نقش حیات) تاریخ اسلام دے ګواه دے چه حضور علیه السلام دَ خپل وِصال نه پس تقریبًا یو لک یا پاؤ باندے لګ مُسلمانان پریښی وو او ننه نوی کروړه ...... و) مُسلمانان دی، چه دَ اُمّت په تبلیغ مُسلمانان شول، نو دا خو معقول کار دے چه اُمّت په کوششونو او تبلیغ سره دِ نوی کروړه مسلمانان په دُنیا کښے موجود وی لا تبلیغ جاری دے او بیا دِ هم دَ کوم یو نبی راتلل ضروری وی چه دے کروړونو مُسلمانانو ته کافِر اُوائی او یوازے یو څو مُریدانو او چیله ګانو ته مسلمانان اُوائی ګویا دده راتلل دَ کافرانو مُسلمانانولو دَ باره نهٔ بلکه دَ مسلمانانو کافرولو دَ باره دی فَتَاَمَّلُوْا وَتَفَهَّمُوْا

## دَ مِرزائی وسوسو جواب

دَ نبوّت مسئله داسے بنیادی ده چه دَ کُفر او ایمان په مینځ کښے دَ فرق او ستونکی پولے کار ورکوی، هرکله چه مرزایانو دَ نبوّت جاری ساتلو دا مسئله دَ قرآن، حدیث، اجماعِ اُمت، صحابهٔ تابعین، فقهاء، متکلمین او دَ محدّثینو نه خلاف بیا موندہ نو خپلو پیروانو تیټکولو دَ باره ئے دیو څو مصنفینو په مبهمو عبارتونو استناد اُکړه اګرچه په دغو ځایونو کښ هم دغه مصنفینو په خپلو صریحو عبارتونو دا حقیقت صفا ښکاره کړے دے خو سودا یو داسے کول هُم یو لوئے مرض دے چه هغه نه دَ خلاصیدو بس دَ چا نهٔ رسی نو دا وسوسے او دلیلونه موږ ښکاره کوو او ورسره دے جوابونه ورکوو :۔

## په حضرت عائشه رضی مرزائی افتراء

مرزایان وائی چه حضرت عائشے رض فرمائیلی دی، قُوْلُوْا اَنَّهٗ خَاتَمُ الْاَنْبِیَاءِ وَلَا تَقُوْلُوْا لَا نَبِیَّ بَعْدَهٗ، دا حدیث په دُرِّ منثور کښ د خاتم النبیین دَ آیت تشریح دَ پاره، او دَ مجمع البحار په تکمله کښ په صفحه

شته خو اصلی عبارت بل شان دے چه مرزا یانو پکښې د دوکے د پاره
کټ کوټ کړے دے. دالفظ صدیقه رض د حضرت عیسیٰ علیه السلام په
سلسله کښې ارشاد فرمائیلے دے را صُلُهَا فِیْ حَدِیْثِ عِیْسٰی اَنَّهٗ یَقْتُلُ
الْخِنْزِیْرَ وَیَکْسِرُ الصَّلِیْبَ وَیَزِیْدُ فِی الْحَلَالِ اَیْ یَزِیْدُ فِیْ حَلَالِ نَفْسِهٖ
بِاَنْ یَّتَزَوَّجَ وَیُوْلَدُ لَهٗ وَکَانَ لَمْ یَتَزَوَّجْ قَبْلَ رَفْعِهٖ اِلَی السَّمَآءِ
فَزَادَ فِی الْهُبُوْطِ فِی الْحَلَالِ فَحِیْنَئِذٍ یُّؤْمِنُ کُلُّ اَحَدٍ مِّنْ اَهْلِ الْکِتَابِ
وَیَتَیَقَّنُوْنَ اَنَّهٗ بَشَرٌ وَعَنْ عَائِشَةَ رض قُوْلُوْا اِنَّهٗ خَاتَمُ الْاَنْبِیَاءِ وَلَا
تَقُوْلُوْا لَا نَبِیَّ بَعْدَهٗ، د دے پوره عبارت نه معلومه شوه چه
صدیقه رض فرمائیل چه حضرت عیسیٰ علیه السلام آسمان ته ختلو
نه وړاندے نکاح نه وو کړے آسمان نه راکوزیداو نه پس به نکاح کوی
اولاد به ئے هم کیږی او په حلالو کښې کاضافے مطلب هم دا دے
خوږی او صلیب پرستی خاتمه به اُکړی او ټول اهل کتاب به د ده په
او بشریت ایمان او یقین راوړی نو په دے وجه حضور علیه السلام ته خاتم
الانبیاء وائی لیکن لَا نَبِیَّ بَعْدَهٗ په دے بنیاد مه وائی چه د حضرت عیسیٰ
علیه السلام د آسمان نه د راکوزیدو انکار اُکړئ، د هغوی، بنکاره
مقصد دا اُوو، چه حضور علیه السلام خاتم الانبیاء هم دے او د هغه نه
بل نوے نبی نشی جوړیدے د پرومبی جوړ نبی حضرت علیه السلام د
رانلو د انکار د پاره دا لفظ مه استعمالوئ، ځکه چه صدیقه رض
د نوی نبوت د نفی قائله ده مسند احمدؒ جلد ۶ صـ۱۲۹ کښې صدیقه
حضور علیه السلام نه مرفوعًا روایت کړیدے (لَا یَبْقٰی بَعْدِیْ مِنَ النُّبُوَّةِ
اِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ وَالرُّؤْیَا الصَّالِحَةُ، خو دا روایت د عائشے رض مجهول
هم دے

## په حضرت علیؓ دروغ تړل

داچه حضرت علیؓ د حسنینوؓ استاذ ابو عبدالرحمٰن السلمی ته وئیلی وو چه



ووی ته رخاتَمَ، په زور لوله. دد ے جواب بنکاره دے چه د حضرت علیؓ
په نزد راجح قرأت د زور واله وو او مونږ وهاندے په دیلونو بیان کړی
چه د معنی په لحاظ د فتحے او کسرے فرق نشته پخپله حضرت علی رضی
نبوت د بندیز د حدیث راوی دے، بخاری او مسلم کښے شته چه اَنْتَ
مِنِّیْ بِمَنْزِلَةِ هٰرُوْنَ مِنْ مُّوْسٰی اِلَّا اَنَّهٗ لَا نَبِیَّ بَعْدِیْ

## په شیخ اکبرؒ دروغ تړل

داچه شیخ اکبرؒ ولی د پاره نبوت ثابت کړیدے، جواب دا دے چه د
صوفیاؒ د رح په اصطلاح کښې د نبوت لغوی معنیٰ اِنْبَاءٌ عَنِ الْغَیْبِ
مُطْلَقًا وَحْیًا اَوْ اِلْهَامًا، هغوی وحی ته شرع او الهام ته غیر شرع وائی
ګوندی هسے خو شیخ اکبرؒ دا مَنِی چه د شرعی نبوت دروازه بنده ده لکه
په فتوحات مکیه جلد ۲ صـ۴۹۵ کښې لیکی، اِنَّ الرُّؤْیَا جُزْءٌ مِّنْ اَجْزَاءِ
النُّبُوَّةِ فَبَقِیَ لِلنَّاسِ فِی النُّبُوَّةِ هٰذَا وَغَیْرُهٗ وَمَعَ هٰذَا لَا یُطْلَقُ اِسْمُ
النُّبُوَّةِ وَلَا النَّبِیِّ اِلَّا عَلَی الْمُشَرِّعِ اَیْ صَاحِبِ الْوَحْیِ خَاصَّةً او ص ۵۲۸
کښې لیکی، فَمَا تُطْلَقُ النُّبُوَّةُ اِلَّا لِمَنِ اتَّصَفَ بِالْمَجْمُوْعِ فَذٰلِکَ النَّبِیُّ
وَتِلْکَ النُّبُوَّةُ حُجِرَتْ عَلَیْنَا وَانْقَطَعَتْ، او هم دغه نه په الیواقیت
جلد ۲ صـ۳۵ طبع مصر کښې نقل دی. هٰذَا بَابٌ اُغْلِقَ بَعْدَ مَوْتِ مُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ
وَسَلَّمَ لَا یُفْتَحُ لِاَحَدٍ اِلٰی یَوْمِ الْقِیَامَةِ لٰکِنْ بَقِیَ لِلْاَوْلِیَاءِ وَحْیُ الْاِلْهَامِ
الَّذِیْ لَا تَشْرِیْعَ فِیْهِ:

## په امام راغب دروغ تړل

داچه په بحر المحیط جلد دریم صـ۲۸۶ د امام راغب په حواله دا خبره
موجوده ده چه په ارباب اطاعت کښې به نبی د نبیانو سره شامل وی
جواب دا دے چه دے نه مراد پرومبی انبیاء علیهم السلام دی ځکه
چه امام موصوف د ختم نبوت تصریح کړیده لکه چه د ختم نبوت مطلب

داسې بيا نوى، اَنَّهٗ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ لِاَنَّهٗ خَتَمَ النُّبُوَّةَ اَىْ تَمَّمَهَا بِمَجِيْئِهٖ

## په جلال الدين رُومى رح دروغ تړل: نولئ،

| | |
|---|---|
| فكر كن در راه نيكو خدمتے | تا نبوت يابى اندر امتے ! |

دَ دې نبوّت مقصد هغه قُربِ الٰهى دے چه دَ نبوّت د فيض نه حاصليږى اصل نبوّت نړ مطلب نۀ دے ځکه چه رومى رح پخپله دَ خَتمِ نبوّت قائله دے، لکه دفتر پنجم کښ ليکى : ع

| | |
|---|---|
| بار سول الله رسالت راتمام | تو نمودى همچو شمس بے غمام |

او په شپږم دفتر کښ ليکى ع

| | |
|---|---|
| اين همه افكار كفران زادشان | چون در آمد سيد آخر زمان |

## په علامه قارى دروغ تړل

په موضوعات كبير ص۵۸ كښ داحديث، لَوْعَاشَ اِبْرَاهِيْمُ لَكَانَ نَبِيًّا قُلْتُ مَعَ هٰذَا اَىِ الضُّعْفِ لَوْعَاشَ اِبْرَاهِيْمُ وَصَارَ نَبِيًّا وَكَذَا لَوْصَارَ عُمَرُ رض نَبِيًّا لَكَانَ مِنْ اَتْبَاعِهٖ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَعِيْسٰى وَخِضَرَ وَاِلْيَاسَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ فَلَا يُنَاقِضُ قَوْلَهٗ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ اِذِ الْمَعْنٰى لَا يَاْتِىْ نَبِىٌّ بَعْدَهٗ يَنْسَخُ مِلَّتَهٗ وَلَمْ يَكُنْ مِّنْ اُمَّتِهٖ"

ددې جواب دادے چه دَ ابراهيم او عمر رض نبوّت که وے،
هُم نو دَ حضور عليه السلام په وخت کښ به وو نۀ چه دَ حضور عليه السلام



نه دُ ستونړمانه کښ پخپرے عيسىٰ، خضر او الياس عليهم السلام راځی نو هغه پخوانى (وړاندينى) پيغمبران ع دى نوى نۀ دى او چه راځى نو دَ اُمتى په حيثيت به راځى، پخپله علامه قارى رحمه الله تعالىٰ په شرح شمائل باب اول ص۳۳ کښ فرمائيلى دى،

اَنَّهٗ خَتَمَهُمْ اَىْ جَاءَ اٰخِرَهُمْ فَلَا نَبِىَّ بَعْدَهٗ اَىْ لَا يُنَبَّاُ اَحَدٌ بَعْدَ فَلَا يُنَافِىْ نُزُوْلَ عِيْسٰى مُتَابِعًا لِشَرِيْعَتِهٖ مُعْتَمِدًا مِنَ الْقُرْاٰنِ وَالسُّنَّةِ وَقَالَ فِى الْمِرْقَاتِ جلد ۵ ص۳۴۷ اَلْمُقَفِّىْ مَنْ قَفَا اَثَرَهٗ اِذَا تَبِعَهٗ يَعْنِىْ اَنَّهٗ اٰخِرُ الْاَنْبِيَاءِ الْاٰتِىْ عَلٰى اٰخِرِهِمْ لَا نَبِىَّ بَعْدَهٗ وَقَالَ فِىْ شَرْحِ الْفِقْهِ الْاَكْبَرِ (المجتبائى ص۲۰۲) وَدَعْوَى النُّبُوَّةِ بَعْدَ نَبِيِّنَا كُفْرٌ بِالْاِجْمَاعِ ؛

دغه رنګ حديث دَ (لَوْعَاشَ اِبْرَاهِيْمُ لَكَانَ نَبِيًّا) دابن ماجه روايت دے چه په دې کښ ابو شيبه ابراهيم بن عثمان ساقط راوى دے (تهذيب التهذيب) صحيح حديث د بخارى داسې دے لَوْ قُضِىَ اَنْ يَّكُوْنَ بَعْدَ مُحَمَّدٍ نَبِىٌّ عَاشَ ابْنُهٗ وَلٰكِنْ لَا نَبِىَّ بَعْدَهٗ ؛

## په امام ربّانى مجدّد الف ثانى باندې دروغ تړل

دامام ربانى په مكتوبات جلد ۱ مكتوب ع۳۰۱ کښ دا ليکل،

"حصول كمالات نبوت مر تابعان را بطريق تبعيّت و وراثت بعد از بعثت خاتم الرسل عليه و على جميع الانبياء والرسل الصلوٰة والتحيات منافى خاتميت او نيست، فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ه" مرزايانو ددې عبارت نه ددې ثابتولو کوشش کړيدے چه امام ربانى رح دَ نبوت جارى پاتې کيدو قائل دے، خودا سې نه ده دَ دې مطلب دَ بعضو اجزاؤ دَ نبوت كمالات حاصلول دى، نۀ چه تړل دَ كمالات دَ نبوّت يعنى نبوت شرعى، ځکه چه امام موصوف رح پخپله دويم دفتر ص۴۴ او مه حصه مكتوب ع۶۷ کښ دَ اهل السنت دَ عقائدو په باره کښ ليکى

و خاتم الانبیاء محمد رسول است و عیسیٰ علیہ السلام کہ نزول خواہد نمود عمل بشریعت او خواہد کرد و بعنوانِ اُمّتِ او خواہد بُود، اَو دفتر دوم حصہ ہشتم صـ ۳۴ و ۳۵ مطبوعہ امرتسر تحفۂ کلان کښے لیکی "اول انبیاء آدم علیہ السلام و آخر ایشان خاتم نبوّت نشان حضرت محمد رسول اللہ است و عیسیٰ علیہ السلام کہ از آسمان نزول خواہد فرمود متابعت شریعتِ خاتم الرّسل خواہد نمود، دا بقول بیان د مرزا ئیت خلاف دے، دَ ختم نبوت نه علاوه، په دے کښې دَ حضرت عیسٰی علیه السلام نزُول دَ آسمانه ذکر دے، او دَ یو مُجدِّد متعلّق مرزا پخپله په "شہادۃ القرآن" کښې لیکی: دا وینا چه مُجدّد د باندے ایمان راوړل فرض نه دی آو د پریدل دی انحراف نشته چه اللہ تعالیٰ فرمائی،

وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝

## په شاه ولی الله رح دروغ تړل

په تفهیمات الٰهیه جلد دویم صـ ۷۲ تفهیم ۵۵ شاه صاحب لیکی: خُتِمَ بِهِ النَّبِيُّوْنَ اَىْ لَا يُوْجَدُ مَنْ يَّأمُرُهُ اللهُ سُبْحَانَهٗ بِالتَّشْرِيْعِ عَلَى النَّاسِ، دے عبارت نه مرزا یانو دا مطلب راُ بشکلو چه دحضرت علیه السلام نه پس صِرف شرعی (تشریعی) نبوت بند دے، حالانکه دَ تشریح شاه صاحب رح پخپله په تفهیمات جلد دوم صـ ۷۲ کښې کړې فرمائی، وَصَارَ خَاتَمَ هٰذِهِ الدَّوْرَةِ لَا يُمْكِنُ اَنْ يُّوْجَدَ بَعْدَهٗ نَبِيٌّ، او بیا جلد ۲ تفهیم ۴۵ صـ ۱۳۷ کښې لیکی، مُحَمَّدٌ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ لَا نَبِيَّ بَعْدَهٗ وَدَعْوَتُهٗ عَامَّةٌ لِجَمِيْعِ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ وَهُوَ اَفْضَلُ الْاَنْبِيَاءِ بِهٰذِهِ الْخَاصَّةِ وَبِنَحْوِ ضُرُوْبٍ اُخْرٰى وَقَالَ فِىْ حُجَّةِ اللهِ فِىْ حَدِيْثِ بَدْءِ هٰذَا الْاَمْرِ نُبُوَّةٌ فَالنُّبُوَّةُ انْقَضَتْ بِوَفَاةِ النَّبِىِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ

وَالْخِلَافَةُ لَا سَيْفَ فِيْهَا بِمَقْتَلِ عُثْمَانَ رض وَالْخِلَافَةُ



بِشَهَادَةِ عَلِيٍّ كَرَّمَ اللهُ وَجْهَهٗ وَخَلْعُ الْحَسَنِ، او په دے فارسی ترجمه دخاتم النبیین کښې بیا لیکی، نیست محمّد پدر ہیچ کس از مردمان شما ولیکن پیغمبر خُدا و مُہر پیغمبران یعنی بعد از وے ہیچ پیغمبر نباشد،

## په مولانا محمد قاسم رح دروغ تړل

مرزا یانو مولنا محمد قاسم رح نه دَ ختمِ زمانی اِنکار منسوب کړیدے حالانکه هغوی رح پخپله فرمائی، کچرے اطلاق او عموم شته نو خاتمیتِ زمانی ثابت دے کچرے دا سے نه وی نو دَ خاتمیت زمانی لزوم منزلی دلالتِ التزامی خامخا ثابت دی، بل خوا دَ نبی علیه السلام دا قسم تصریحات (اَنْتَ مِنِّىْ بِمَنْزِلَةِ هَارُوْنَ مِنْ مُّوْسٰى اِلَّا اَنَّهٗ لَا نَبِيَّ بَعْدِىْ، چه په ذکر شوی، طرز دَ لفظ "خاتم النبیین" نه ما خوذ دی، په دے باب کښې کافی دی، ځکه چه دا مضمون تواتُر ته رسیدلے دے او په دے دَ امت اجماع هم دی، اگرچه الفاظ دَ "لَا نَبِيَّ بَعْدِىْ" په سندِ مُتواتِر منقول نهٔ دی، نو دَ الفاظو دا عدمِ تواتُر باوُجود دا تواتُرِ معنوی په دا سے دی، لکه دَ فرضو دَ رکعاتو نو دَ شمیر تواتُر چه منکرے کافر دے دارنګ دَ دے "لَا نَبِيَّ بَعْدِىْ" منکرهُم کافِر دے، په تحذیر الناس صـ ۹ کتب خانه اِمدادیه او په مناظر عجیبه صـ ۳۹ کښے لیکی خاتمیتِ زمانی خپل دین او ایمان دے البتّه دَ ناحق تهمت څه علاج نشته

## په مولنا عبد الحی رح دروغ تړل

مولا ناموصوف په "دافع الوساوس فی اثر ابن عباس" صـ ۳۹ کښ لیکلی دی، "دَ اهل سنت علماء هم دَ اخبره ښکاره کوی، چه دَ نبی علیه السلام په زمانه کښې سالت کښې هیڅوک نبی خاوند د نوی شریعت نشی کیدے او نبی چه په دَ زمانه کښې راځی، نو هغه به دَ شریعتِ محمدی تابع وی نو په هر تقدیر بعثتِ محمدیه عام دے، جواب دا دے چه دا

مضمون د زمکې د نورو طبقو او د هغوی د انبیاؤ متعلق دے لکه د دے وضاحت په ,, زجر الناس ،، ص۸۳ کښې چه د وی کړے دے، خَتْمُ نَبِيِّنَا حَقِيقِيٌّ بِالنِّسْبَةِ إِلَى أَنْبِيَاءِ جَمِيعِ الطَّبَقَاتِ بِمَعْنَى أَنَّهُ لَمْ تُعْطَ النُّبُوَّةُ لِأَحَدٍ فِي طَبَقَةٍ، او مجموع الفتاوی جلد اول ص۹۹ کښې مولانا موصوف لیکی ,, قَالَ أَبُو شَكُورٍ فِي التَّمْهِيدِ اِعْلَمْ أَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى كُلِّ عَاقِلٍ أَنْ يَّعْتَقِدَ أَنَّ مُحَمَّدًا كَانَ رَسُولَ اللهِ وَالْآنَ هُوَ رَسُولُ اللهِ وَكَانَ خَاتَمَ الْأَنْبِيَاءِ وَلَا يَجُوزُ بَعْدَهُ أَنْ يَكُونَ أَحَدٌ نَبِيًّا وَمَنِ ادَّعَى النُّبُوَّةَ فِي زَمَانِنَا يَكُونُ كَافِرًا ،، د داسے بنکاره خبرو کولو باوجود خو دا وئیلی شی، چه دے ,, د ختم نبوت منکر وو!!!

## ختمِ نبوّت د علامه اقبال رح په نظر کښې

(۱) لیکی چه ,, قادیانیت د یهودی مذهب چربه ده، ځما په نزد بهائیت د قادیانیت نه زیات مخلص دے، ځکه چه بهایان بنکاره د اِسلام مخالف دی، لیکن قادنیان د اسلام ځواهم اُصولو ظاهری طور قائم ساتی مگر په پټه د اِسلام د روح او مقاصدو مُهلک دی، د قادیانی فرقے د خُدائے داسے تصوّر چه هغه حاسد دے، او هغه سره د دشمنانو د پاره بیشمیره زلزلے او بیماری دی او د دوی د نبی په باره کښې دا تخیّل چه هغه نجومی وی او د دوی عقیده چه د مسیح روح کښې تسلسل دے په هره زمانه کښې بیل بیل مسیح را تلے شی د ایونه وو چه بس ختم شو (العیاذ بالله مترجم) دا ټولے عقیدے داسے دی چه د یهودیت عناصر لری گویا که دا تحریک یهودیت طرف ته واپس بوتلل دی، حرف اقبال ,, ص۱۲۳ مرتبه لطیف احمد شروانی)

(۱) په اسلامی ایران کښې د مُوبدانه اثر لاندے مُلحدانه تحریکونه



اُوچت شول او هغوی د بروز، حلول او ظلّ وغیره اصطلاح کانے د دے له پاره روانے کړے چه په هغې کښې د تناسخ تصوّر پټ کړے شی، د دے اصطلاح کانو رواج ورکول په دے وجه ضروری وو چه د مسلمانانو په زړونو اوّل وار د اُ نه لگی ترد دے چه د مسیح موعود اصطلاح هُم اسلامی نه ده بلکه اجنبی ده چه شروع ئے هم د دغے موبدانه تصوّر نه شوې ده، ځکه چه دا اصطلاح کانے مونږ ته د اسلام د ړومبی دور په تاریخی او مذهبی کتابونو کښې نه ملاویږی ,,

(حرف اقبال، ص۱۲۳ و ۱۲۴)

(۳) قادیانی ټولے د اسلامی یووالی دُشمن دے مسلمانان د هغوی په معامله کښې ډیر حساس دی، کوم چه د هغوی د یووالی د پاره خطرناک وی، چنانچه هر یو داسے مذهبی جماعت چه په تاریخی طور خو د اسلام سره تړلی وی، لیکن خپل بُنیاد په نوی نبوت ایږدی، او د دوی په اِلهامونو اعتقاد نه لرونکی ټول مُسلمانان دوی کافر بولی دا خو مسلمانان د خپل یووالی د پاره خطره گنړی ځکه چه اسلامی یووالے په ختمِ نبوّت مضبوط ټینګیږی. (حرفِ اقبال ص۱۲۲) مرزا محمود خلیفه دوم په آئینه صداقت ص۳۵ کښې لیکی، هر هغه مُسلمان چه د حضرت مسیح موعود په بیعت کښې شامل نه دے نو هغه کافر دے د اسلام د دائرے نه بهر دے، اگرچه هغه د مسیح موعود نوم هُم نه وی اوریدلے، (۴) ځه په دے هیڅ شک شبه نه لرم چه دا احمدیان د اسلام او د ملک د واړو غدّاران دی (د اقبال ,, خط د جواهر لال په نوم، ځمه زاره خطونه، حصه اوّل ص۲۹۳ مرتبه جواهر لال مطبوعه جامعه ملیه نوے دهلے اِنډیا)

(۵) ځما په رائے کښې د قادیانیانو صرف دوه لارے دی چه یا خو د

خپلو رُونړو تقلید اُکړی او یا دَ ختم نبوّت تاویلُونه پریږدی او هغه دَ خپل پُوره مفهُوم سره قبول کړی، کہ دوی دا نوی تاویلونه صِرف په دے غرض دی چه دَ دوی شمیر دَ اسلام په حلقه کښ وی چه سیاسی فائدے وا خلی (حرفِ اقبال ص۱۳۶ تا ۱۳۷)

⑥ څما په رائے کښ حکومت دَ پاره بهترینه طریقه کار به داوی چه هغه قادیانیان یو بیل توله اُمّت چه دا به دَ قادیانیانو دَ پالیسئ عین مُطابِق وی او مُسلمانان به هُم دَ روا دارئ دا سے مُعامله کوی لکه څنګه چه نورو مذهبونو سره کوی، او دا دَ قادیانیانو دَ پالیسئ مُطابق حُکم دی چه دَ دویم خلیفه مرزا بشیرالدین پخپله خطبه په حواله دالفضل اخبار ۲۱ اگست ۱۹۱۷ء سنه حضرت مسیح مُوعُود فرمائی، چه دَ هغوی (دَ مُسلمانانو) اسلام بیل او څمونږ اسلام بیل دے، دَ هغوی خدائے بل او څمونږ بل دے، دَ هغوی حج بل او څمونږ حج بل دے دغه رنګ څمونږ په هره خبره کښ اختلاف دے۔

⑦ دَ علامه اقبال انګریزی حکومت ته مشوره، "په نوی د ستُونکے دا قلیتُونو دَ تحفّظ خیال ساتلے شوے، دے څما په خیال کښے قادیانیان به دَ حکومت نه دَ جُدا کید و په مطالبه کښے وړاندے والے نه کوی خو مِلّتِ اسلامیه د دے مطالبے پوره حق لری چه قادیانیان دِ جُدا کړے شی، کچرے حکومت دا مطالبه اُنه منله نو دَ مسلمانانو به شک دی چه حکومت د دے نوی مذهب په جدا کولو کښے ډِیل کوی، حکومت په سنه ۱۹۱۹ دَ سِکهانو دَ جُدا کیدو دَ مطالبے انتظار اُ نکړو اُس دَ قادیانیانو د دے مطالبے وله اِنتظار کوی (حرفِ اقبال ص۱۳۸) باندے علامه اقبال لیکی، په غونچ کښ قطع تعلّق په نکاح او نورو معاملو کښ د مسلمانانو نه بائیکاټ او دَ توله وبیرزیات دا اِعلان چه دُنیائے اِسلام کافره ده، او دا دِ اسلام نه دومره



زیاته لرے ده څومره چه سِکهان به دَ هندوانو نه لرے نه وی څکه چه سِکهان او هِندوان خو خپل مینځ کښ وَدُو نه کوی، هر کله چه قادیانیان په مذهبی، مُعاشرتی معاملو کښ ځان جُدا ګنړی، نو په سیاسی ډول مسلمانانو کښے دَ شامل پاتے کیدو دَ پاره ولے پریشانه وی! (حرفِ اقبال ص۱۳۱)

⑧ پابندی په باغی جماعت لګول پکار دی، علامه اقبال انګریزی حکومت ته لیکلی دی، کچرے دَ یو قوم یو والے په خطره کښ وی نو هغه دَ پاره سِوا دَ دے بل علاج نشته چه هغه دَ عِنادی قُوتُونو په خلاف مدافعت اُکړی، اُس سوال دا دے چه دَ مدافعت طریقه دِ څه وی! هغه دا ده چه اصل توله نه دِ دَ روا دارئ تلقین اُکړیشی حالانکه دَ هغوی یو والے په خطره کښے وی او باغی ټولی ته دِ دَ هغه تبلیغ پُوره اِجازت وی کوم چه دروغو کنځلو ډک یک وی! (حرفِ اقبال ص۱۳۴)

زه وایم چه دَ مرزا دا یو کنځل دَ کروړونو کنځلو نه زیات دی کوم چه هغه په آئینه کمالات ص۵۳۳ کښے لیکلی دی چه څوک ما نه مَنی او څما د دعوے تصدیق نه کوی او ایمان پرِ نه راوړی نو هغه ټول دَ زِنا اولاد دی،

## قیامت، معاد او مجازات دَ اعمالو
## دَ قیامت نُومُونه

دَ کوم خیز نُومُونه چه ګنړ وی نو دا دَ هغه دَ لوئے والی دلیل دے، دا الله تعالیٰ نُومُونه ګنړ دی دا هم دَ الله تعالیٰ دَ لوئیئ دلیل دے، امام سیوطی رح په بدور السافرة فی امور الآخرة، کښ دَ قیامت اَتیا نُومُونه ذِکر کړی دی (ص۲ مطبوعه کاشی رام لاهور) مونږ به هغے کښے بنکاره مشهُور نُومُونه ذکر کوُو

(۱) اَلسَّاعَةُ

د قیامت دا نوم له دوو وجهو دے، یوه دا چې قیامت به ناګهانه راځي، لکه چې یوګینټه تیریږي نو پس ناګهانه چې دویمه ګینټه راځي، او دویم له دے وجهے چې قیامت کښې د اولینو آخرینو حساب به په لږ وخت مثلاً یوګینټه کښې ختم شي او هم دا معنی د (سریع الحساب) ده او هم دا معنی د حضرت علی رضه منقول ده، اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا (سورة الحج آية ۷)

(۲) اَلْقِيَامَةُ

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (سورة آل عمران آية ۱۸۵) د دے نوم وجه دا ده چې د دے معنی اودریدل دي، او په دے ورځ به ټول خلق ملائکے او روح به د الله په مخکښې تر هغه وخته ولاړ وي ترکومے چې الله تعالی جل شانه اوغواړي۔

۳۔ اَلْقَارِعَةُ

قرع زړه درزولو او ټکولو ته ویلے شي، د دے ورځے د ویرے نه به هم زړونه درزیږي او ټکیږي۔ اَلْقَارِعَةُ مَا الْقَارِعَةُ۔

۴۔ اَلْحَآقَّةُ

دا د حق نه ماخوذ دے، د دے نوم مطلب دا ښودل دي چې دا ورځ حق ده او په دے کښې د شک شبهے څه ګنجائش نشته۔ اَلْحَآقَّةُ مَا الْحَآقَّةُ۔

۵۔ اَلْوَاقِعَةُ

دا د (وقوع) نه ماخوذ دے مطلب دا چې د دے په واقع کیدو کښې هیڅ شک نشته بلکه دا خامخا واقع کیدونکے حقیقت دے۔ اِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ۔

۶۔ اَلْغَاشِيَةُ

د (غشي) معنی پټول دي، د دے ورځے له هیبته به زړونه پټ شي او خلق به او ترشي۔ هَلْ اَتٰكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ۔



۷۔ اَزِفَةٌ

د (ازف) معنی نزدے کیدل، اَزِفَ الشَّيْئُ قَرُبَ، او دا ورځ د حقیقت په اعتبار سره نزدے ده ځکه چې خامخا راتلونکے څیز نزدے وي او تلونکے څیز لرے وي، بله دا چې مرګ د قیامت دروازه ده او مرګ نزدے دے۔ اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ۔

۸۔ يَوْمُ التَّغَابُنِ

غبن ټګۍ او دوکے ته وائي، په دے ورځ به دا ښکاره شي چې په دنیا کښې کوم خلق په دوکه کښې وو چې د عمر عزیز قیمتي برخه ئي په کومو مضرو څیزونو کښې تیره کړه او د کومو قیمتي عملونو نه محرومه وو۔ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ۔

۹۔ خَافِضَةٌ

ذلیله کوونکے ورځ چې دین نه اوړیدلی خلق به په دے ورځ په جهنم کښې په ډیر لاندے ذلت کښې وي

۱۰۔ رَافِعَةٌ

اوچتوونکے ورځ کوم خلق چې د دنیا په ژوند کښې د دین غمخوري کړیده هغوی به په دے ورځ د جنت په لوړو اوچتو د شهنشاهیت مقامونو کښې وي، خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ۔

۱۱۔ اَلطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى

د دے معنی لویه حمله ګډوله ده او د قیامت نه بله داسې هیڅ حمله ګډوله نشته چې په دے کښې به د ټولو انسانانو د قسمت ابدي فیصله کیږي۔ فَاِذَا جَآءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى۔ قیامت او حشر نشر د انساني ژوند ډیره ضروري خانګه ده چې په دے ځائې خوشحالۍ او تباهۍ دارومدار دے او د قیامت په باره کښې درے څیزونه د غور فکر جوګه دي:

(۱) د قیامت وجود، چې دا مونږ د قیامت صورت نه وایو۔

(۲) د قیامت مقصد یعنی د عملونو بدله چې دا مونږ د قیامت نوم ترایو

(۳) د قیامت تفصیلات مثلاً د قیامت کیفیت، وزن د اعمالو، حوض کوثر، پُل صراط، نور، جنت او دوزخ او داسې نور دي،

د دې ټولو نه روسته به موږ د قیامت او د معاد د صورت ذکر کوو او د دې عقلي او نقلي دلیلونه به پیش کوو،

## د معاد او قیامت نقلي ثبوت

(۱) ټول آسماني دینونه په قیامت قائل او په دوباره ژوندون متفق دي او ټول آسماني ملتونه دا مني، په شرح مواقف جلد ۸ تم ص ۲۹۴ کښې دا نقل موجود دے، اَجْمَعَ اَهْلُ الْمِلَلِ وَالشَّرَائِعِ عَنْ اٰخِرِهِمْ عَلٰى جَوَازِهٖ وَوُقُوْعِهٖ ، یعني ټول ملتونه او شریعتونه منونکي خلق د حشر اجساد په جواز او وقوع باندې متفق دي۔

(۲) ټولو پیغمبرانو علیهم السلام د قیامت خبر ورکول کړیدي د کوم جزئیات د تشتیت خلق په بنیاد موکښې نشته. قرآن پوره تفصیل سره د قیامت بیان کړیدے او بیا د دے په باره کښې، مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ، فرمائیل د دے ثبوت دے چه قرآن د تېرشوو آسماني کتابونو د اصولو او عقائدو تصدیق کوي نو ځکه دا د نبوت، قیامت او د مجازات اعمال وغیره په باره کښې د ړومبنو آسماني کتابونو هم تصدیق کوي، د قیامت نښې د آخرت ژوند د دنیا د ژوند نه ډیر بیات او پائیدار دے وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى، د آخرت ژوند بهتر او پائیدار دے او بیا ئې فرمائیل اِنَّ هٰذَا لَفِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى دا مضمون د حضرت ابراهیم او د حضرت موسیٰ علیهما السلام په صحیفو کښې موجود دے۔

## د فلسفیانو د انکار تردید

فلسفیانو د حشر اجساد نه انکار کړیدے د عملونو بدله هغوی هم مني



خو بعضې ئې د سعادت او شقاوت روحاني او بعضې ئې د تناسخ په صورت کښې مني موږ به د دے تردید کوو، خو اول دا وایو چه د فلسفې د قوانینو په مطابق هم دا انکار د منلو جوګه نه دے، ځکه چه دوی هم ممکن د قدرت او طاقت لاندے مني او دا ظاهره ده چه حشر د اجسادو ممکن ځکه دے چه د حشر یو جزء انساني روح دے، دویم بدن دے، او دریم د بدن جوړښت، دا درے واړه څیزونه ممکن دي چه په قدرت الٰهي شته دا درے واړه څیزونه د مرګ نه وړاندے د الله په ایجاد موجود شوي وو، که چرے دا ناممکن او ممتنع وے نو اول ځل به هم نه وو موجود شوي دوباره ژوندي کیدل خو اُس عقل ته ډیر نزدے دي د منلو په باره کښې دا قرآن بیان کړي دي، وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ، وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى، (سورة الروم آیة ۲۷) یعني د انساني قدرت د قاعدے مطابق دوباره پیدا کول د ړومبي ځل پیدا کولو نه زیات آسان دي هر کله چه الله ډیر لوئې دے نو هغه ته د دواړو تخلیقونو کښې هیڅ فرق نشته۔

## د نیشت د شته کولو شبه

فلسفیان بل انکار په دے قاعده کوي چه نیشت سره څیزونه بیا نه لیږي مطلب دا چه اول څیز یو وار ختم شي نو دویم وار هم هغه شے بیا نشي موجودیدے که وي نو هغه به بل څیز وي، لو دا غلط ده چه په قیامت کښې به هو بهو هم هغه انسان بیا دوباره ژوندے شي، دا شبه بالکل باطله ده ځکه چه د اول وجود زمانه یوه او د بل وجود زمانه بله نو د اولے زمانے وجود ختم شو او په بله زمانه کښې بیا موجود شو خو شے بدل نه دے هم هغه شے دے، که مرچه زړ هم وو مطلب دا شو چه دا شے نشي کیدے چه په یوه زمانه کښې یو شے ختم شي او هم په دغه زمانه کښې هم دغه شے بیا

موجود شي نو دے کښې هیڅ اشکال پاتے نشو چه په بله زمانه کښے دیو شیز بعینه وجود کیدے شي او پورته ذکر قاعده د فلسفیانو غلطه ده، دا اعتراض خو کښے هله وارد دے چه اوله زمانه د اول شخصیت جزء وو، بله زمانه به د بل شخصیت جزء وی هم د دوهمې شخصیت نه ځکه چه زمانه د شخصیت جزء هیڅ نه شي کیدے هغه مشخصه نه ده کهٔ داسے وے نو د ټن سړے به هغه پرون نه ځکه نه وو چه زمانه بدله شوې ده، د پوهے د پاره یو آسان مثال، یو انسان په یو زمانه (دنیا) کښې موجود مړ (معدوم) کیدو سره په برزخ (بله زمانه) کښې ورک او په قیامت (په دریمه زمانه) کښې هم دغه انسان داسے مثال لری لکه چه یو سړے د لاهور نه کراچۍ ته لاړ شي، زمانه بدله شوه مقامات بدل شو او سړے هم هغه دے اول وار لاهور کښې موجود وو (دنیا) چه روان شو نو نه لاهور کښې وو او نه کراچۍ کښې وو معدوم شو (برزخ) او کراچۍ ته چه اورسیدو نو لاهور کښې نه وو (آخرت) دا درے زمانے بدلے شوے یو انسان معدوم شو او بیا موجود شو، خو هغه غه انسان دے او بالکل بدل نشو، نو دا اعتراض بالکل غلط شو چه د زمانے په بدلیدو سره شخصیت بدلیږی کچرے داسے وے نو د مکان په بدلیدو به شخصیت بدلیدو کوم سړے چه په لاهور کښې وو نو ملتان ته په تلو اورسیدو به د هغه شخصیت بدل شوے وو حالانکه داسے نه کیږی،

دوئم دا چه د یو والی دارومدار د اصلی اجزاؤ او د روح په یو والی دے ود دے نه بغیر کچرے بل څه فرق راشي نو په شخصیت څه اثر نه غورزوی، مثلاً کچرے د یو سړی رنګ مخکښې سپین وو بیا ګرم ملک کښې به مړ کښې کالو سره د هغه رنګ که تور هم شي نو سړے هم هغه دے بدل نشو دغه رنګ که د ینځلسو کالو یو سړے د دیرشو کالو شي نو رنګ او قد او غټوالی کښې فرق راتلو سره به هم دا هغه سړے وی کوم چه وړاندے وو



پو حکومت هم د هغه د نوکرۍ تنخواه ورکولو نه په دغه بنیاد انکار نهٔ کوی او . دغه توالی او اوږد والی په وجه یو عدالت ـ چرے د چا مقدمه نهٔ ده خارجه کړے چه ته اُس بل سړے ئے، دغه رنګ که د نیک یا بد عمل په وجه کچرے شکل او رنګ کښې څه فرق په آخرت کښې هم شي، اصلی اجزاء ئے هُم هغه وی کوم چه دُنیا کښې وو نو دا به هُم هغه سړے ګنړلے شی کوم چه دُنیا کښې وو،

## د معاد په باره کښې مذهبونه

د روح متعلق دوه رائے دی، اول دا چه جسم لطیف دے، دویم دا چه مجرد غیر مادی دے د دے اختلاف په بنیاد د معاد په باره کښې د شرح مواقف مصری جلد آتم صـ۲۹۷ـ د نقل مطابق پنځه اقواله دی:-

(۱) معاد صرف جسمانی دے ځکه چه بدن او روح دواړه جسمونه دی (صرف د کثافت او لطافت فرق دے) نو اعاده هم د جسم اوشوه دا د اکثرو متکلمینو د اسلام قول دے چه روح جسم لطیف امنی:-

(۲) معاد صرف روحانی ځکه دے چه د جسم اعاده نشته یوازے په روح د سعادت او شقاوت دارومدار دے، دا د یونان د فلاسفۂ الٰهیین قول دے

(۳) معاد جسمانی او روحانی دواړه دے د دنیا جسم او روح دواړه بیا به موجود شته دا قول حنفی، غزالی، ابو زید دبوسی، راغب، معمر، د متأخرینو امامیه، ولوا اکثرو صوفیاؤ دے دا قول حضرات روح ته مجرد غیر مادی

(۴) معاد به نه جسمانی وی او نه روحانی، دا قول د یونانیانو د طب د حکیمانو

(۵) د معاد کیدو او نه کیدو هیڅ فیصله نه ده شوے توقف دے، چه دا قول د جالینوس دے ده ته دا شک پریوتے دے چه روح د هغه مزاج نوم دے کوم چه په مرګ ختم شو او که د هغه جوهر نوم دے چه مرګ نه پس هم باقی وی دا پنځه اقواله د انسان د بدن او روح سره تړون لری خو یو شپږم قول د تناسخ هم شته چه هغه د حکماء هند او د یونان د بعضے

حکماؤ، او د بعضے منسوب الی الاسلام خلقو دے مثلاً احمد بن حابط چه
دابراهیم نظام شاگرد دے ابومُسلم خُراسانی، محمد بن زکریا، طبیب
رازی او قرامطہ:

## دَ مجازاۃ درے شکله

د آخر حوالے دپاره دابن حزم ملل نحل جلد ۱ صفحه ۹۰ اوگورئ

دَ مجازاۃِ اعمال درے شکله دی:-

(۱) دَ جُثو حشر، دَ بعث بعد الموت په شکل کښې او د مجازاۃِ اعمال به د
جنّت او دوزخ په شکل کښې وی، دا ئے دَ اهلِ اسلام او دَ آسمانی
مذهبونو والو ده۔

(۲) دَ جُثو دَ حشر نه بغیر صِرف رُوح دَ نیکئ او بدئ اثر (خوند او درد)
محسوسَوی، دا قسمِ مجازاۃ دحکماءِ الٰهیّین قول دے،

(۳) دَ نیک او بد عملُونو په بدله کښې دَ یو انسان رُوح بل انسان ته بدلیدل
(تناسخ) مجازاۃ اعمال دے بعض حکماء دَ یونان او اکثر حُکماء دَ هند دا قول
کوی،

### تنقید

دا دواړه آخیری قولونه دَ انبیاء علیهم السلام دَ اِجماع او دَ آسمانی
کتابونو نه خلاف دی او دعقل او فلسفے په بُنیاد هم غلط دی، یوازے رُوحانی
مجازات خو ځکه غلط دے چه اعمالو کښې بدن او رُوح دواړه شریک دی او
بدله به یوازے رُوح ته ملاویږی او دَ دے مثال داسے اُګنړئ، لکه یو شل
او یو ړوند دَ انارو غلا کوی، ړوند کچه او پوخ انار نه پیژنی او شل انار ته
رسیدے نشی دوی، داسے مشوره اُکړی چه ړوند لاندے شی او
شل به اوږه سور کړی انار را اُشوکوی دَ باغ مالک دا دواړه عدالت ته
وړاندے کړی دواړه دَ ځان خلاصولو چل چل دَ لیلونه اُوائی ړوند
وائی چه زه وینم نه نو غلا ځنګه کولے شم پوخ او کچه انار م ځنګه اُپیژندل
او شل به وائی چه ځما انارو ته رسیدے نه شوم ما غلا ځنګه اُکړه؟



نو بنکاره خبره ده چه غلا خو شوے ده بلکه دواړو سره په موقع
نیولے شوے ده نو دَ عدالت فیصله به ضرور دا وی چه غلا دواړو کړے
ده دواړه په غلا کښې شریک دی نو سزا به هم دواړو ته ورکولے شی، هُم
دا مثال دَ رُوح او بدن دے هر یو یوازے نیک او بد عمل نشی
کولے هر کله چه نیک او بد عمل په شریکه دواړه کوی نو جزاء او سزا دواړو ته
په شریکه پکار ده:

دے نه علاوه یوازے دَ رُوحانی مجازاۃ حقیقت دَ خوب دے چه څوک بنه
ډیر ښائسته خوب اُوینی نو هغه ته صِرف په خوب کښې خوند او آرام وی او که
په خراب خوب اُوینی نو په خوب کښې ورته بے خوندی او تکلیف محسُوس
شی نو دا قسم جزا سزا لو بے توقے دی دَ اعمالو پائیداره او خوچنده زیاته
بدله پکار ده چه انسان دَ هغے په طمع څه بنه عمل اُکړے شی دَ خوب د مزو
په طمع هیڅوک بنه عمل نه کوی او دے سره هیچرے دَ انسان اِصلاح نشی
کیدے دَ بنه عمل شوق پیدا کولو، بلکه داسے پکار ده چه دَ دُنیا دَ فائدے
نه په خوچنده زیاته فائده په اخرت کښې ملاؤ شی او بیا پائید اره
وی، لکه یو سړے مړ کیدو نه سره خپل یتیم کید و نکی ځوئے دَ پاره
نو سره دسره لس لاکهه (۱۰۰۰) د وچی امانت کیږدی، دَ خوب دَ ناپائیدار
خوراک نو پواسطو په خاطر دغه سړے که دغه یتیم ته دغه خپل امانت په
خوب کښې ورکړی نو که عقل او پاګل به ځکه بنکاره شی چه دَ لسو زرو روپو
حقیقی فائده دَ خوب او تصور په فائده باندے د هو بنیاره او دروغ سړی
خوشحاله کیدے او دا باعث دَ امانت سپارلو هم نشی چه بیدے دَ امانت سپارلو
نه هغه بدله کار ورکولے شی کومه چه دے نه په څو څوچنده زیاته وی
پائید اره او حقیقی وی لکه چه آخرت کښې دَ لسو زرو روپو امانت سپارلو
په نقصان کولو او فقر با ندې ورکولو به بدله کښې چه ده ته جنت یا دَ آخرت

نور لعنتونه ورکړېشی :

## دتناسخ رد

(۱) دتناسخ په شکل کښې د عملونو بدله ورکول د عقل په موجب په
دے وجهو درسته نه ده،
(۱) تناسخ له انصافه خلاف ځکه دے چه په عمل کښې بدن او روح
دواړه شریک دی او د تناسخ په شکل کښې بدله صرف روح ته ورکولے شی
مثلاً د یو مجرم انسان روح د مرګ نه پس په یو ذلیل څوړی کښې یا پر
ذلیل ښاروی او ښناور کښې ولېږلے شی نو سزا به یوازے روح ته ورکولے
(بله د خندا خبره دا چه د بد اسړی د بدن په ځائے به سزا د ج
یا د ذلیل ښناور او د ښاروی بدن نه ورکولے شی. نو دا خو د خر په ځا
کلاډو داخل شو بله دا چه دے ځائے نه به دا روح د بدلے د پاره د
ښوا ځی او بل بدن ته چه لاړ شی، نو دا بدله به د چا ګنړلے شی د ښولو نه کا
که ورسره د ښز دے ... خیال اوکړ شو نو دے رغبت او ښزدا وجنجالی اشک
جوړېږی نو ځکه ځے بس کوم ـ د تناسخ قائل کېدل په تصور ځان بانجه
دی مترجم) دلته دا خیال هم غلط دے، چه بدن صرف د عمل آل
ځکه دا په مجازاتِ اعمال کښې نشو یکول اِنه ی پکار او دے ته سزا
ورکول به دا سے وی لکه د یو قاتل ټوپک ته سزا ورکول او یا د یو مسه
او ملکار تیشئ اوکوندئ ته جزا ورکول کوم چه مجمات یا خانه کع
جوړه کړی وی، دا خیال ځکه غلط دے چه بدن آله نه ده بلکه
او کوم نکے دے آله خو د فاعل نه جدا اوی د هغه جزء نوی لکه یو
ټوره لیکن روح او بدن چه یو ځائے شی نو هله څوک بنه یا بد
شی نو اصل فاعل بدن دے چه د روح په اړانه یو عمل کولے شی
چه دا روح د بدن په هر اندام کښې ننوتے وی نو بنکاره شوه چه
آله ځکه نه ده چه دا د روح په غم او خوشحالئ کښې خا مخا شریک



نو ټوپک د قاتل، او تیشئ کرندئ د خانه کعبے د معیار په غم او خوشحالئ
بي هیچرے نشي شریکیدے.
(۲) د تناسخ د پاره دا دلیل باطل دے چه انسان د حیواناتو نه چه
ر آخلي یا د غریبے کورنئ یو ذلیل انسان چه مصیبتونو کښې مبتلا شي،
دے بنیاد دا دے، چه یو انسان بد عمل کړی وی، نو د هغه روح په ذلیل
ښناور یا ذلیل بل انسان کښې ننوزی او دا رنګ هغه وړاندینی کس ته
خپل عمل بدله د ښناور یا د انسان د ذلت په صورت کښې ملاؤ شي
باطل ځکه دے چه د ښاروو فطری تقاضا دا ده چه انسان ترې کار واخلي او د
د پاره د جرم سابق هیڅ ضرورت نشته ځکه چه د دُنیا نظام چلولو د
پاره د حکمتِ الٰهی تقاضا او ظهور دے، کچرے انسان دے ته کار نه اخلے
نو د ښاروو وجود به لغو او بے فائدے وو دا هم د حکمتِ الٰهی د شان
نه خلاف دی، دغه رنګ د دنیا د مو خوشحالی او بدحالی د هغوی فطری
تقاضا ده چه غنی د د فقیر نه کار واخلي، فقیر د اجرت محتاج او غنی د
هغه د کار محتاج دے په دے احتیاجونو د انساني تمدن ربط قائم دے
و د دُنیا نظام پرے چلیږی که د تناسخ تصور پکښې راغلو نو انساني تمدن
به بالکل درے وړے شی دا انسانانو مصیبتونه او غمونه هم د حکمت
الٰهی نه خالی دا سے نه دی چه د صحت او خوشحالئ په حالت کښې د شکر جذبه
او مرض او د بد حالئ په حالت کښې د صبر جذبه انساني کمالات بنکاره
وی او په دے د الله لورے او نزدے بندګان پیژندے شي.

## په تناسخي مجازات کښې د جرم علم نه وی

تناسخ په نامنلي صورت کښې یو حیوان او انسان ته دا علم نه وی چه
هغه د کوم جرم په بدله کښې عذابولے شي، په انساني عدالت کښې خو مجرم
ننودے شي په هغه د تا بتولو خوا دی اوکړېشي هله پس ته سزا

ورکولے شي، لیکن د تناسخ په صورت کښې د الله عدالت د لوبو توقو ښکار
کولے شي کوم کښې چه نه تحقیق وي، نه مقدمه چلول وي او نه مجرم ته
د خپل خپل جرم پته وي چه دا سزا هغه ته د کوم جرم په بدله کښې
ورکولے شي العیاذ بالله، نو ځکه د تناسخ دا عقیده د عقل نه هم خلاف ده

## د مرګ او پیدائش شمیر کښې د جوړښت نشتوالے د تناسخ تردید بیا دے

د تناسخیانو په خیال کچرے د حیواناتو پیدائش د انسانانو د بدعملو
د پاره د بدلے په نتیجه کښې وے نو ضروري ده چه د بدو انسانانو د مرګ
په مناسب شمیر کښې هومره ځناور او حیوانات پیدا کیدلے خو داسې
ځکه نه ده چه موږ وینو مثلاً یو ورځ کښې یو لګ انسانان مري چه په
هغې کښې نیم خو بلکه زیات مجرمان او بدکاره وي، خو بل خوا نو حیوان
هم په دغه ورځ کرور و نه او اربونه پیدا کیږي نو معلومه شوه چه د حیوانو
پیدائش د مجرمانو د تناسخي جنجال نتیجه نه ده بلکه د ابتدائي تخلیق
په دول د الله تعالی د حکمت په جوړ پیدا کیږي ځکه د تناسخ عقیده باطله ده.
د تناسخ د تردید یوه څلورمه وجه دا هم ده، چه د تناسخ په صورت کښې به
منل ضروري وي چه د مجرمانو انسانانو او د حیواناتو روحونه یو دي حالانکه
موږ وینو کوم روح چه دا جدا جدا دي، انساني روحونو کښې عقل او نطق
لیکن حیواني روحونه دا نه لري یا مثلاً په پشو کښې کچرے د انسان روح دا
وے د انساني روح په فطرت کښې د مږے نه کرکه په ته ده دا هیڅرے
نشي کیدے چه پشو کښې دا نو تو نه فوراً پس فطرت دا سے بدل شي چه
مږے پسے منډه کړي دا وے نیسي او په خوند ئے اُخوري هر کله چه د فطرت
فوراً بدلیدل نا معقول دي د انساني او حیواني روحونو فطرتونه جدا
جدا دي په دے وجه د تناسخ عقیده هم ټوله نا معقوله ده.
هر کله چه د مجازات اعمال دوه صورتونه زیات دے د روح معاد او تناسخ



او نا معقوله ثابت شو، نو د دے صرف یو صورت باقي پاتے شو هغه دا چه
د مړي بدن او روح دواړه ژوندي کړے شي او د حساب کتاب نه
پس د جنت او دوزخ په شکل کښې په دے قانون مجازات نافذ کړے شي. دا خبره
یوازے په آسماني شریعتونو او د انبیائے کرامو علیهم السلام په توا تر
ثابته نه ده بلکه عقل او فلسفه هم دا موږ ته او معقول ګڼړي، په ظاهر
خو دا ډیره ګرانه ښکاري لیکن حقیقت کښې هیڅ ګرانه نه ده.
د معاد جسماني حقیقت په دوه قاعدو مبني دے، یو دا چه دا ممکن دے
او محال نه دے، بل دا چه دا د تخریب او تعمیر الٰهي نتیجه ده:-

## د جسماني معاد دویم دلیل

د مجازات اعمال په خاطر روح سره د جسم دویم باره ژوندي کیدل ممکن دي او محال نه دي، د محال دوه معنی دي، یو عرفي چه مطلب ئے
ګران واله او سخت واله دي لکه یو سړے ته دا وئیل چه دا خو لاهور ته تر
هغه صدر اګرے چه نشم تلے دا بل ور پورے اوبنلي چه خاڅخا به ئے نو هغه
اوواتي چه نا ممکنه (محاله) ده نو د دے مطلب به دا وي چه تلل ورته ګران
دي. خو که روان کړے ئے وے ټکټ هر څه ئے ور ته برابر کړے وے د هغه
اراده شوے وے نو لاهور ته تلل ناممکن او محال نه وو، او بل د فلسفے
ممکن او محال دے معنی ئے دا چه نفي او اثبات یو ځائے کیدل چه هیڅرے
نشي کیدے لکه یو سړے یو کمره کښې په یو وخت شته هم او نشته هم یا لکه
دوه په دوه کښې پنځه چه تول د نیا د دے ضرب حاصل هغه څلور بنائي
چه پنځه نه وي، نو خلاصه مطلب به ئے دا وي چه پنځه نه دي څلور دي
نو قیامت او معاد په دے معنی محال نه دے او کچرے محال په معنی د مشکل
او د سخت واخلو نو هغه به وي خو انسان د پاره چه د هغه ټول کارونه
په اسبابو بنا دي او الله ته په دے معنی هم محال ځکه نه دے چه، اِنَّمَآ اَمْرُهٗ

إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَّقُوْلَ لَهُ كُنْ فَيَكُوْنُ، او بله دا چه متواتر خبر صادق ډ دے تصدیق کړے دے، نو حکم دا صحیح دہ، چه کله یو ممکن تواتر سره تصدیق اُشي یا اعتباري ذریعو سره دا ثابت شي نو د هغې په واقع کیدو کښې هیڅ شک شبه نه پاتے کیږي، مثلاً تیر شوی وخت کښې د جاپان هیرو شیما په ایټم بم تباه کیدل یو ممکنه معامله وه هر کله چه اعتباري ذریعو سره د دے تصدیق اُشو نو ټولے دُنیا اُمنله، د غه رنګ د موجوده دُنیا په شپیلۍ کړا اسرائیل علیه السلام د چه ایټم بم نه په اربونو درجے زیات قوي دے تباه کیدل ممکن امر دے او ور سره د دے تصدیق آسماني کتابونو او د انبیاؤ علیهم السلام غوندے رشتینو هستو په پرله پسے شهادتونو کړے دے نو بیا د دے په واقع کیدو کښې هیڅ شک شبه نشي کیدے۔

## دَجسماني معاد دویم دلیل

دَ معاد جسماني حقیقت ورا نول او جوړه وَل دي مطلب

دا چه د دُنیا نظام ورانه ول او د آخرت نظام جوړول د معادِ جسماني حقیقت دے دا به الله کوی نو ګرانه خکه نده کچرے انسان ئے ګرانه ګنړي نو هغه ځان ته ګوری او په دے قیاس کوی لکه چه شل منه آټي اُچتولے شي او میرے ئے نشي اُچتولے حالانکه دا د حیواناتو دی خالق او مخلوق خو برابر کیدے هم نشي الله داسے قوي دے چه نسبت ئے د مخلوق سره کول ناممکن دی نو هغه ته دا هیڅ ګرانه نده چه هغه خپل جوړ کړے تعمیر (دُنیا) وران کړي او د هغې په ځائے بل تعمیر (آخرت) اُکړي، ځکه چه داسے خو انسان لګیا دے کوی یو عمارت ورا نوی او بل د هغې په ځائے جوړ وي، نو ځکه الله تعالیٰ چه بے انتها قوي دے، یقیناً داسے کولے شي چه عمارت د دُنیا وران کړي



او عمارت د آخرت پرآباد کړي، او همدغه معادِ جسماني او قیامت دے چه د هغې درستوالے او رشتینوالے په عقل ثابت شو،

## دَ قیامت او معادِ جسماني دریم دلیل

خالق کائنات انسان نه رُومبے ژوندي ور کړو (لیدلے کیدلے شي) په هغه وخت چه د ده نوم او نشان هم نه وو،

هَلْ أَتٰى عَلَى الْإِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْئًا مَّذْكُوْرًا ۔

سورة دهر آیة ۱ او بیا به ئے په قیامت کښې د مجازاتِ اعمال د پاره ژوندے کوی، انسان ته رُومبے ځل بے نمونے پیدا شو جوړ ول ډیر ګران دی نو نه چه پیدا شي نو بیا ئے هغې بیا نه ځل هم جوړ ول اسانه شي، رُومبے د انسان هیڅ نمونه نه وه ځکه ئے بے تکلیفه پیدا کړی و نو دے قوي ترین هستي ته دوباره پیدا کول د انسان څنګه ګران کیدلے شي لکه فرمائي :

كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيْدُهُ وَعْدًا ۔۔ مونږ انسان رُومبے ځل جوړ کړو عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فٰعِلِيْنَ (سورة انبیاء دویم ځل به ئے هم داسے جوړ کړو آیة ۱۰۴) دا مونږ وعده ده مونږ به ضرور داسے کوو،

وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهُ قَالَ انسان په مونږ مثال ختړوي مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ قُلْ چه دا ورا سته هډوکي به څوک يُحْيِيْهَا الَّذِيْ أَنْشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ ژوندي کوي، هغه چه خپل سورة یس آیة ۷۸، ۷۹ پیدا ئش هیر کړو نو ته ورته اُوایه چه چا رُومبے وار پیدا کړه وو هغه به ئے دویم وار هم ژوندے کوي،

بلکه دویم آیت شریف کښې دي :-

وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ دا دویم باره پیدا کول د رُومبي وار پیدا کولو نه ډیر آزیات آسان دی

دے خبرو سره قیامت په عقلي رنګ کښې ثابت شو دا آسانه ده چه انساني نسبت اُ خو دا ګوندي الله ته دوباره پیدا کول بوشان دي،

وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ : (د الله د پاره اعلیٰ کمال دے)

## د معاد څلورم دلیل

یو درزي چه کوټ او شیروانۍ جوړولے شي نو هغه به څادر په ډیر آسانه ځکه جوړ ولے شي چه دا یو کار (ګندل) دے، دغه رنګ پیدا کول د آسمان چه الله کړي دے نو دویم باره پیدا کول د وړکي غوندے ریه نسبت د آسمان) انسان پیدا کول خو بیا ډیر آسان دي ځکه چه کار (پیدا کول) یو دے،

ءَأَنْتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ ۚ بَنَاهَا، آیا ستاسو پیدا کول ګران دي که د رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا (سورة النّٰزعٰت ایته) آسمان چه الله جوړ کړ وا و ډیر په اُوچت ځائے هغه کینښودو:

یعنې آسمان ته چه اګورے نو د هغے په نسبت انسان ډیر وړکوټے دے هر کله چه الله ته د آسمان پیدا کولو کښې هیڅ تکلیف نه وو نو د انسان په پیدا کولو کښې به ورته څنګه تکلیف وي، بنا په دے د انسان دوباره ژوند د عقل نه خلاف نه دے،

## د معاد او مجازاتِ اعمال پنځم دلیل

سوا د انسانه ټول کائنات د انسان د خدمت او فائدے لپاره پیدا شوي دي (وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، د آسمانونو او د ځمکے ټول کائنات الله تعالیٰ ستاسو په کارا و خدمت کښې لګیا کړي دي خو انسان ئے د طاعت او عبادتِ خداوندي لپاره جوړ کړے دے

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ، مونږ پیریان او بنیادم د خدائے د عبادت د پاره پیدا کړي او د عبادت نتیجه د دے فائدے دي



لکه دے قیامت، دوباره ژوند، مجازاتِ اعمال، جنت او دوزخ هیڅ نه وي نو د عبادت هیڅ فائده به نه وه بنکاره نشوه، له دے وجے د انسان پیدا کول عبث شو، او په دے بنا د کائناتو پیدا کول هم عبث شو او په دے به ول به (العیاذ بالله، د الله د ټول کار د نه عبث ثابت شي، چه د الله تعٰ د حکمت له شانه خلاف ده د الله تعالیٰ حکمت دا دے چه د انسان د عملونو پوره نتیجه د په قیامت بنکاره شي ځکه چه دُنیا کښې دا نشي کیدے رمونږ وړاندے تفصیل سره بیان کړے دے، چه د الله د عمل دا کارخانه عبث ثابته نشي او کړ دے او د انسان په پیدا کولو کښې د الله حکمتونه هم بنکاره شي، په دے خبرو د قیامت عقلي ثبوت راځي

## د قیامت او مجازاتِ اعمال شپږم دلیل

الله پاک انسان بیکاره د پاره نه دے پیدا کړے، أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَن يُتْرَكَ سُدًى (القیامة آیة ۳۶ آیا دا انسان دا خیال دے چه دے به بیکاره پریښودے شي) دغه شان، أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ ○ سورة المؤمنون آیة ۱۱۵ (آیا تاسو ګمان کوئ چه تاسو مونږ عبث پیدا کړي یئ او د عملونو نتیجو معلومولو د پاره به قیامت کښې مونږ ته بیرته نه راځئ) خو دُنیا کښے بنه او بد دواړه قسم انسانان شته، څوک ظالم څوک مُنصِف، څوک نافرمان څوک فرمانبردار، څوک متقي، څوک فاجر وغیره، د دُنیا ټول قومونه د الله د عدل او انصاف منتے کوي د دے په جوړ د الله تعالیٰ سلوک دے ټولو سره یو شان نه دے بیکار ځکه چه د الله عدل به بنکاره نشي لکه یو انساني بادشاه چه دا فرق کوي وفادار او باغي سره یو شان سلوک نه کوي وفادار له انعام ورکوي او باغي له سزا ورکوي په دُنیا کښے دا نشو کیدے ر دیا ئی تفصیل سره بیان شوے دے:

نو د انسان دویم ژوند د الله د دے قسم انصاف کولو د پاره ضروری شو
هغه قیامت دے او د مجازاتِ اعمال ورځ ده چه د عقل له اړخه ضروری
ثابته شوه او قرآن د دے بیان داسے کړیدے :
اَمْ نَجْعَلُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ، آیا په دے آخرت نړۍ کښې مونږ
كَالْمُفْسِدِیْنَ فِی الْاَرْضِ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِیْنَ : په الله باندے یقین کوونکی او
كَالْفُجَّارِ ○ نیکوکاره خلق مفسدانو سره برابر سازو او خدا ترسو سره
بدکردارو په شان سلوک کوو ، (هیچرے نه)

## دَ قیامت او مجازات اُوم دلیل

دا ضابطه ښه ده چه هر مرکب (اصلی یا مصنوعی) د پاره مفرد ضروری
دے لکه انسان چه د خاورے ، اَوبو ، هَوا او وَرنَا اصل مرکب دے نو ځان ځان
له د دے مفردات هُم شته خالص خاورے ، خالص اوبه وغیره مصنوعی
مرکب (شربت شکنجبین) د اوبو سره کے او چینو نه جوړ دے دا دوړه دا پاره
خالص څیزونه ځان ځان له هم موجود دی دا ضابطه په اعیانو ، اعراضو
جواهرو او صافو ټولو باندے حاوی ده ، مثلاً د یو زړوکی رنګ چه
تور او سُور رنګ نه مرکب وی ، نو دا دواړه ځان ځان له خالص هُم
شته ، دُنیا کښې غم او خوشحالی یو مرکب دے چه هر انسان کښې دا
دواړه جمع وی ، داسے انسان په دُنیا کښې نشته چه مکمل د خوشحالئ له وجے
او هیڅ غم ورسره نه وی ، او داسے هم نشته چه ټول یو غم وی او خوشحالی
هډو وی نه نو د تیر شوے قاعدے په حواله د خوشحالئ او غم نه مرکب
د پاره خالص مُفردات ځان ځان له پکار دی چه خوشحالی ځان له یوائے
موجوده وی لکه جنت کښې د نیکانو د پاره او غم د ځان له یوازے موجود دی
لکه دوزخ کښې د بدانو د پاره ، او هم د دے نه د قیامت مجازاتِ اعمال
او د جنت او دوزخ ثبوت کیږی :



## دَ قیامت او مجازاتِ اعمال اتم دلیل

په دُنیا کښې بنه خلق هُم شته او بد هم ، داسے
اګرچه لکه ټول انسانان یو داسے مجموعه وی ، چه پکښې اعلیٰ او قیمتی اجزاء
هُم وی ، خسیس او کمے درجے والا اجزاء پکښې هم وی لکه د غنمو بوټی
کښې یو اعلیٰ جُزء د غنمو دانه (غله) ده او بل ادنیٰ جُزء ئے دروځه او بوس
دی دانه ئے د بنیادم خوراک ده او بوس د څارو خوراک ده د دے بیلول
پکار دی چه هغه د پاره په درمن کښې د دے غوبلول او الوزول پکار دی
غله به د انسان معدے ته ځی او بوس به د څارو معدے ته ځی ، د غه
رنګ میدان حشر درمن اګرچه هغه کښې د نیکانو او بدانو بیلول
مقصد دی وَامْتَازُوا الْیَوْمَ اَیُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ ○ سورة یٰس آیة ۵۹
(اے مجرمانو د نیکوکارو نه بیل شئ)
اِنَّ یَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِیْقَاتًا (النباء آیة ۱۷) د نیکانو او بدانو د بیلولو ورځ
ټاکلے شوے ده ، نیکان به خپل فطری ځائے جنت ته لاړ شی ګویا کښې جنت
انسانی معده شوه او بدان به خپل فطری مقام دوزخ ته لاړ شی ګویا کښې
دا دوزخ حیوانی معده شوه ، او داسے شوه لکه نیکان غله او غنم وی
او بدان لکه بوس او دروځه چه د حیوانانو خوراک شی یا سوزولے شی په
تنورو وغیره کښې ا

## دَ قیامت او مجازات نهم دلیل

د انسان په فطرت کښې د خالص آرام او خوشحالئ تقاضا پرته
ده انسان د فرد په شکل کښې وی که د قوم یا د وطن په شکل کښې د دغه آرزو او
تقاضا ده په فطرت کښې ځای وی اُس دا آرزو پوره کیدل ممکن ځکه
وی چه مونږ وړاندے تفصیل سره بیان کړیدے چه ناممکن خواهش
او آرزو باندے ټول دُنیا متفقه کیدے نشی لکه د نساء افسانو بقیه ک

ژوندی پاتے کیدو خواهش، هرکله چه د خالص راحت او خوشحالئ
د تمنا پوره کیدو امکان ثابت شو نو په دنیا کښ د دے پوره کولو انتظام
یو خو له دے وجے نشو کیدے چه دنیا او زمکه تنګه ده ټول انسانان
پکښ په یو ځل نشو جمع کیدے او بل دا چه خالصه خوشحالی او راحت په دنیا
کښ ځکه نشی کیدے چه یو بادشاه چه ډیر خوشحاله او آرام کښ ښکاری خو
زړګونه غمونه ورسره وی لکه د حکومت آرېده و د رعیت بغاوت او مرض
بیماری د خپلو خپلوانو مرګ د بل ملک حمله وغیره، اوس عقل دا یقین
لری چه قدرت ددے خالص راحت او خوشحالئ خوندے فطری خواهش
پوره کولو انتظام کړے وی لکه چه د نورو ټولو فطری خواهشاتو انتظام ئے
ځکه کړیدے چه په فطرت کښ د اغیزلی خواهش د پوره کولو انتظام د
قدرت ذمه داری داسے ده چه هغه حکیم او عادل دے داسے خواهش
په فطرت کښ نه ور ځښوی کوم چه نه پوره کیدو وایکے وی او انسان پرې
تږی پریږدی، اوس دے پوره کیدونکی خواهش د پاره دیو لوئے بل جهان ضرورت
دے چه هغه پوره ډیر وسیع او لوئے وی او د انسان دا فطری خواهش د
جنت په شکل کښ پوره شی، لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ○ (سورة
البقره آیة ۳۸) نه به (په جنت کښ) د چا غم وی او نه به دویره اندیشه
وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيٓ أَنفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ○ سورة حٰمٓ
السجدة آیة ۳۱) (تاسو کاملوا انسانانو له پاره به په جنت کښ هغه څیزونه
وی کوم چه ستاسو زړه غواړی یا ئے تاسو په ښکاره اغواړئ) هلته
به ځوانی وی بوډا توب به نه وی، صحت، غنا به وی او مرض او محتاجی به
نه وی، د دے خبرو سره قیامت او جنت خو عقلاً ثابت شو مګر په دے
بنیاد دوزخ دلسے ثابتیږی چه دا د جنت ضد دے او تُعْرَفُ الْأَشْيَاءُ
بِأَضْدَادِهَا، هر څیز په خپل ضد پیژندے شی، شپه هله پیژندے شی چه



ورځ اُپیژنی، سپین به هله پیژندلے شی چه تور اُپیژنی ګرم به هله
پیژندے شی چه یخ اُپیژنی په دے قاعده دوزخ هم ضروری شو چه هغه
نه بدان یعنی د نیکانو ضد مجرمان لاړ شی، جنت به همیشه وی ټول
آرام او راحت به وی دوزخ به هم همیشه وی، ټول به بے آرامی او تکلیف
به وی د الله د انصاف تقاضا ده چه ټول جنت ته نه بوځی نو جهنم
ځکه ضروری شو، کوم قوم چه د جنت اقراری دے هغه دوزخ هم منی
دے کښے څه اشکال نشته، ځکه چه جنت او دوزخ د دنیاوی عملونو نتیجه
ده د دنیا کښ ښه او بد عملونه او خلق وو نو قیامت کښ هم د دے نتیجه
به د غسے فرق ښکاروه چه د الله تعالیٰ انصاف او عدل پوره ښکاره شی

## د قیامت او مجازاتِ اعمال لسم دلیل

د بشر اصلاح د دنیا ټول قومونه داسے خوښوی چه هغه د نه د خدائے
او نه د بنیاد موحق ضائع کوی چه انسان ژوند په اطمینان امن او خوشحالئ
کښ تیر شی هم په دے اراده هر قوم په هر دور کښے د بشری اصلاح د پاره
انتظامونه کړیدی مختلف ادارے ئے جوړے کړے مګر زړه پورے اصلاح اُنشوه
د اصلاح عقلی اسباب درے دی:

① تعلیم ② قانونِ حکومت ③ او عقیده د مجازاتِ اعمال

① په تعلیم خو د نیک و بد عمل نه واقفیت راشی لیکن د عمل کولو باعث
کیدے نشی،

② دویم سبب قانون هم په اصلاح بشری کښ پوره کامیاب نشو ځکه چه
جرمونه روح کوی تر کومه چه روح کښی پاکیزګی او انقلاب نه وی راغلے
نو د جرمونو سلسله نه ختمیږی قانون په دے وجهو مجرم نه په سزا ور
کولو کښ پوره کامیاب نه دے. هر ځائے کښے د قانونِ حکومت نشی کیدے
په غیر علاقو کښ نه قانون شته او نه حکومت، ځکه نه قانون او

حکومت وی نو بیا هم مجرمان داسې ځائې او دلته وخت کښ جرم
کوی چه هلته څوک ګواه نه وی په دې بنا هغه د سزا نه بچ شی او د
اصلاح کار نامکمله پاتې شی،

بعضې ځائې کښ ګواه خو وی لیکن د رښتیا ګواهی نه کوی۔

بعضې ځائې کښ ګواه ګواهی کول غواړی مګر د مدعی علیه له اړخه هغه
ته څه مالی لالچ یا ویره ورکول هغه د ګواهۍ نه بند کړی،

بعضې ځائې کښ د رښتیا ګواهی اوشی لیکن د مخالف فریق د وکیل په جرحه
د هغه ګواهی مشکوکه او بې اثره شی، او مجرم د سزا نه بچ پاتې شی.

بعضې جرح سره هم ګواهی صحیح ثابته شی نو فیصله د جج په لاس کښ
ده هغه غلطی هم کولې شی بالخصوص هغه وخت چه په زړه کښې ئې
رحم او خدائ ترسی نه وی، نو رشوت او سفارش فیصله په بل طرف واړوی او مجرم
سزا نه بچ شی؛

بعضې سزا اوشی نو هغه به د جرم په جوړ هومره سخته نه وی څومره
چه جرم سخت وی. دا شیونه چه وی نو قانون جرمونه نشی بندولې
همدغه وجه ده چه قانون او سزاګانې خو شته مګر جرمونه زیاتیږی
او قیدیان د بندیانو ورځ په ورځ زیاتیږی، بنا په دې اصلاح
بشری کار د زړه د ضمیر نه دا عمل شروع کول پکار دی چه اول خود جرم
اونشی او بیا که اوشی نو د سزا نه د بچ نشی، د دې صورت دا دې چه
په زړه او ضمیر کښې د مجازات اعمال او قیامت داسې پخه عقیده وی
چه هغه نه سړی سره دا فکر پیدا شی چه هره ګناه او حق تلفی کول خپل
ځان په آخرت کښ تباه کول دی او د څو ورځو فانی فائدو په بدل کښ د
آخرت هغه دائمی فائدې بیلل دی چه د یو عقلمند سړی کار نه دې
دا هغه عقیده ده کومه چه غلط او د اکوان (عرب د جاهلیت) فریښ



ځولې جوړ کړل او د دې عقیدې د پوخوالی په وجه د هغوی زړونه او
دماغونه داسې روښانه شول چه د هغوی نه د جرمونو، ظلم او حق تلفی
نوم نښان ورک شو د بشری اصلاح همدغه یو معجزه نسخه ده کومې چه د
تجربو او مشاهدو په بنیاد خپلو اصلاحی اثراتو نه دنیا واقفه کړه هم
دغه یو دا [illegible] چه د بشر مکمل اصلاح پرې کیدې شی، هغه ده د
مجازات اعمال [illegible] قیامت پخه عقیده او دا رنګ قیامت او مجازات
اعمال عقلاً ثابتیږی

## د قیامت او مجازات یولسم دلیل

انسان د کائناتو یو قیمتی جز دې څو عمر او ژوند ئې لنډ دې آسمان
زمکه او غرونه د ډیرې مودې راسې دی لیکن د انسان ژوند لکه د
لیبې د مرګ په یو چپه ختم شی لکه د چاګور کښې چه د خاورې لوښې وی،
او د سرو زرو هم لوښی خاوریږی په زر ترزره ختم شی او دغه قیمتی د سرو
لوښی به په بوډه ګوده پاتې وی څکه چه قیمتی څیز څوک ځان نه نه لرې
کوی، دا ئې نه معلومیږی، چه د قیمتی انسان سره مناسب بل قیمتی
اوږد ژوند دې کوم کښ چه د ده نه به د عملونو بدله ملاویږی او دا به
ثابتول غواړی چه د خسیسو شیونو په مقابله کښ د قیمتی انسان عمر
هم ډیر زیات وی ﴿وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِیَ الْحَیَوَانُ﴾ د انسان اصلی
ژوند د آخرت دې، چه دې قاعدې بنا شوې فرق د خسیس او د
او د قیمتی اصلی پوره ښکاره شی، دغه دې قیامت دغه دې مجازات
اعمال او دغه دې آخرت :-

## د مجازات او قیامت دولسم دلیل

ډاکټر فرانس لیکی، چه د نوی دنیا په جوړ کړ انسان شخصیت په
درې څیزونو ښکاره کیږی: (۱) نیت (۲) قول (۳) فعل

(۱) نیت دَ انسانی نفس لاندے په شعور کښ محفوظ دے چه هغه یو
خیال هیرکړی خوب کښ ئے اُګوری او بیا ورته را یاد شی۔
(۲) او قول دَ هوا په چپوکښے محفوظ دے چه په دیه یائی نظام بوخوا
بل خوا تړ وِلے دا آډ ولے شی ددے رفتار په یو سیکنډ کښ یو لاک
او شپګ اتیا زره (۱۸۶۰۰۰) میله دے، ټول اقوال په فضا کښ محفوظ دی
خو یو بل سره ګډ وَډ دی داسے آله لا نه ده پیدا کومه چه دَ یو بل نه دا بیل
کړی کیدے شی چه دُ ستو پیدا شی، په خلاف د ریډیائی نظام نه چه
په اوګدوالی دَ ریډیو ستن په مختلفو لا نړو نو برابرو لو سره مختلفو
ځائیونو نه آوازونه را کاږی او یو بل سره ګډ وډ کیږی نه ځکه چه دَ هغو
چپے په اُوږد والی کښ بیلے دی دغه رنګ هر فعل په فضا کښ بوحرارت
پریږدی چه په تیز دے وخت کښ په نوی علمونو معلو مولے شی، لیکن
په ډیر وخت تیریدو سره داسے آله لا تر اُوسه نه ده ایجاد چه
هغه دَ فضا نه بیرته را واخلی کیدے شی چه دُ ستو داسے آله هم پیدا شی
دے تقریر نه دَ آخرت وجود درست ثابتیږی چه په هغے کښ دَ نیت
قول او فعل (چه محفوظ دی) نتیجے مرتبے شی،
دے نه علاوه دَ ماهرینِ ارضیاتو دَ تحقیق مطابق دَ زمکے په خیټه
کښ دیارلس سوه (۱۳۰۰) درجے ګرمے شته حالانکه داوُ بویشتو لوه پاره
سل درجے ګرمی کافی ده۔ ددے نه علاوه هر کال دَ زمکے نه په زرګونو
زلزلے پیدا کیږی دَ بعضے پته اُلګی او دَ بعضے اُنه لګی دا د هغه ګرمئ
نتیجه ده کومه چه دَ زمکے په خیټه کښ پرته ده، (۳) دا ټول او دَ سمندر
دا بوتر بخولے دَ دے خبرے دلیل دے چه جهنم دَ زمکے او سمندر دَ
لاندے او دا ټول دَ جهنم اثرات دی۔ ٭ ٭



## دَ قیامت تفصیلات

**دَ قیامت کیفیت**

دَ قیامت حقیقت دوه خیزونه دی (۱) یو دَ دے
جهان ورانول او دَ بل جهان (آخرت) جوړول
دا دواړه الله دوه ټوکوسره تړلی دی، اول ټوکل تخریب دَ پاره دی او
دویم ټوکل دَ تعمیر دَ پاره دی تخریب په حقیقت کښ دَ دُنیا مرګ دے
عام عادت دا دے، چه مرګ دُورانده ځه مرض او رنځ دی هغه
چه په علاج بنه نشی نو دغه رنځ دَ طبیبانو په خیال کښ لا علاجه او
مُهلِک وی، نو هغه رنځور تر ... هلاک شی، ټول انسانان مجموعه یو
جسم اُګنړه هر کله چه هغه رنځور شی نو دَ دے قاعدے مطابق علاج
ئے کولے شی که علاج ئے ممکن نه وی نو لا علاج شی او هلاکت ته نیزدے
شی او بیا دَ الله قانون دَ هلاکت په ده نافذ شی او هلاک شی، دَ
انسان دپاره نو ټول کائنات خادمان دی هر کله چه انسان نه وی نو
بیا دے ټولو نورو کائناتو هیڅ ضرورت پاتے نشو نو ځکه دَ انسان هلا
سره دا ټول کائنات اُ تړلے شی او هلاک شی نو دغه قیامت دے
ددے نه وړاندے حالت دَ دُنیا د دے مرضِ موت اُګنړه چه دَ شریعت
په اصطلاح کښ دے ته اَ شراط الساعة یا دَ قیامت نشانے وئیلے شی لکه
چه یو سړی کښ دَ مرګ نه وړاندے دَ مرګ نښانے ښکاره شی تر مرګه
بوره شان وقفه وی دا خو دَ کوچنی انسان دے خود ټول عالم دَ مرګ
حالت ځکه مختلف دے چه دا دَ یو انسان په نسبت ډیر لوئے شے دے
نو دَ ده دَ مرګ او نښو دَ مرګ کښ به ډیره وقفه وی ددے نښے دَ
مرګ علاماتِ کُبرٰی دی کومے چه شریعت ښودلی دی۔

## عالمی مرضِ موت یا دَ قیامت نښے

دَ خلقو ایمان او هغې سره تړلې ضروری څیزونه عالَم دَ پاره لکه دَ ژوندو دَ روح مثال لری، دے کښې چه څومره کمُوت راځی هومره عالمی صحت دَ پاره مرض دے دَ امَرض چه عالمگیر شکل اختیار کړی نو دا به دا عالَم هلاکت او دَ قیامت دَ پاره به غټې نښے وی او دے رنګ تربه مهلک وسَلے شی لکه چه احادیثو کښې دی:-

(۱) دَ ابن مسعود رضی الله تعالے عنه نه مرفوعًا روایت دے چه قیامت به په شریرو انسانانو قائمیږی (مسلم شریف)

(۲) حضرت انس رضی الله دَ حضور صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه څو پورے الله الله وَئیونکی مؤمنان وی، نو قیامت به نه قائمیږی۔

(۳) حضرت حُذیفه رضی الله تعالے حدیث شریف نقل کړے دے چه قیامت به تر هغې نه قائمیږی خو پورے چه دَ دُنیا اقتدار دَ بد ترینو خلقو لاس کښې رانشی (ترمذی شریف)

دا احادیث ښائی چه هر کله بدی عالمگیره نه دی نو قیامت به نه کیږی او دا دَ هلاکتِ عالَم نښه ده او کچرے لږ ایماندار خلق پاتے وی نو په مسلم کښې دَ حضرت عائشے رض دَ روایت مُطابق الله به یو بنا نسته هوا رالیږی او په دے به دَ مُؤمنانو دَ روح قبض کړی او قیامت به یوازے په بدو خلقو قائم شی بنا په دے قیامت قائمولو کښې یورپ ډیر اهم کردار ادا کړے دے دَ دوی اتولو علومو فنونو ایمانی عقیدے او ایمانی عملونه ختم کړل دلیلونه ئے دا دی:-

(۱) دَ امریکے د هم جنسیت پرستانو یعنے دَ لواطت د حامیانو د انجمن دَ رپورټ (روزنامه جنگ ۲۰ اپریل ۱۹۶۲ئ کښې درج دے) په مُطابق دَ امریکے فوج کښې یو کروړ او یا لکه (۱۷۰۰۰۰۰) هم جنسیت پرستان یعنی لواطت



کوونکی دی او دَ امریکے په عامو خلقو کښې هر څلورم سړے په لواطت کښے بُوخت دے:-

یوازے په برطانیه کښې څوارلس لکه (۱۴۰۰۰۰۰) هغه حرامیان واره دی دَ کوم عُمرونه چه شپارس یا اُولس کاله دے:-

هر کال دَ حرامیانو ورو پیدائش او پاؤ زره دے دَ دَ حمل غورځولو دَ پیدائش بندولو نه علاوه دی او سطا هر څوارلسم کس حرامی وی سنه ۱۹۲۸ دَ رپورټ مُطابق په سلو کښې نوی امریکنیان په زنا کښې او اویا په سلو کښې په لواطت بُوخت دی، دَ دوی اندازه ده چه سنه ۱۹۷۷ پورے به هر پنځم بچے حرامی وی (رپورټ دَ ترجمان اسلام ۱۴ مئی سنه ۱۹۲۰) مغربی تهذیب چه کومه خونریزی کړیده په هغې ورانه دیغ جنګِ عظیم موجوده جنګونه او ایټمی وَ سلے استعمال لوی دَ خدائے او دا خلاق نه انکار دے سود او شراب د دوی دَ ژوند یو غټه برخه ده په دیکاتو او اخبارونو دروغ خبرے خورول دکامیاب سیاست نښه ګڼلے شی او تعجب دا دے چه دا ګناهُم نشی ګڼلے، لکه انګلستان او کنیډا چه د لاسونو په پر قارکښی دلواطت دَ جواز قانون پاس کړو۔

## دَ شپیلئ پُوکل

### رُومبے پُوکل

دَ جُمعے په ورځ به دَ اسرافیل فرښتے په ذریعه شپیلئ پُوک وهلے شی په دے کښے به دَ جلالی تجلو دومره زیات طاقت وی چه دَ هغې خدائی اثرنه به دا ټول عالم درپے ورپے شی دا پوکل به په حقیقت کښې دا الله دَ "مُمیتُ" دَ صفت مظهر وی چه هغے نه به په هر څیز (برَنی او کوُنی) باندے موت او فنا طاری شی، دَ قرآن بیان دے وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَن فِي السَّمٰوٰتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ سوره زمر آیة ع ۶۸ شپیلئ به اپوکلے شی نو دَ آسمان او دَ مکے کائنات به هلاک شی

یوا دَ هغو چه الله ئے هلاکول نه غواړی ؛

دَ هلاکت نه دا څیزونه مستثنیٰ دی (۱) دوزخ کارکوُنکی فرښتے (۲) جنت او دَ هغے حوُرے غِلمان څکه چه دَ دوی پیدائش دَ بقاء دپاره دے فنا دپاره نه دے، (۳) څلور مقرّبے فرِښتے (۴) او مُدبّراتُ الامر کوم چه کار اغستل وی، دَ شهیدانو روحونه چه هغوی سره دَ همیشه ژوند وعده ده، (بدور السّافرة فی امور الآخرة) کښ ــ دا مستثنیات دَ حدیثو نه ثابت کړیدی، هم په دے کتاب کښ دَ بیهقی په روایت دَ مُقاتِل منقوُل دی چه دَ شپیلئ دا ئرے فراخی دَ آسمانونو او دزمکو دَ فراخئ برابر ده،

## دویم پُوکل

قرآن شریف کښ دی (ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ ○ (سورة الزمر آیة ۶۸)؛

دوباره شپیلئ پُوک وهلو سره به مړه انسانان او حیوانات ټول ژوندی شی هم دا دَ ابن عباس رضی الله نه په بدور السافره کښ منقوُل دی، طبرانی مِقدام رض نه په حَسَن سند نقل کړیدی چه دَ بچی دتربوُ به ټول را ژوندی شی، کوم حمل چه دَ وخت نه وړاندے غورځیدلے وی کچرے دَ هغه اندامونه پُوره وی او ساه پکښ راغلی وی، نو ژوندے کولے به شی که دا سے نه وی نو نه به شی ژوندے کولے، دَ ټولو به عمر دَ دیرش کاله وی،

دا پُوکل به دَ الله دَ "مُحیی" صفت مَظهر وی، دَ قرآن دَ ذِکر شوی دے آیت ترجمه دا ده چه (دویم باره به شپیلئ پوک وَهلے شی نو ټول مړی به ولاړ وی او گوری به) په دوا ړو پوک وَهلوکښ به دَ څلویښتو وقفه وی، (بخاری) په دے څلویښتو کالو کښ به څلوینت ورځے دَ هغه نه دَ څک سپینو اوُبو باران کیږی چه دَ مړو په خاورین قالب به وریږی



او دا به په انسانی شکلونو کښ بدلیږی، په بدور السّافره کښ دَ ابوالشیخ دَ روایت مطابق په شپیلئ کښ دَ ټولو روحونو به شمیر سُری دی هغے کښ به د هغه روحونه وی په پوک وهلو به ټول خپلو خپلو قالبونو ته راواوُړی او پکښ به داخل شی، دَ بدن دَ ذرّو جمع کولو عمل به دَ زلزلے په ذریعه وی، لکه قرآن وائی (اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَیْءٌ عَظِیْمٌ ○ سورة الحج آیة ۱) هرکله چه دَ دوی دَ کالبوت شکل جوړ شی بیا دَ مُدبّرات الامر فرښتو په ذریعه جوړ شی، نو عرش نه به هغه سپین آبِ حیات څلویښتو ورځو پورے پرے ورِیږی،

په دے به دغه خاورین قالب (کالبوت) په غوښنین قالب (کالبوت کښ) بدل شی، او بیا به دا هیچرے نه بدلیږی او نه فنا کیږی، دَ انسان به دچے وُجُود (ماء الفناء) او دَ زمکے دَ اوبو نه وو، او دا وُجود به دَ (ماءُ الحیات) او دعرش دا اُوبو نه وی،

او ابوهریره رضی الله دَ حضور علیه السلام نه نقل کړیدے چه دے ته (ماء الحیات) حضور علیه السلام فرمائیلی دی، په دویم پُوکی به دغه تیارو قالبونو (کالبوتونو) کښ روحونه منتقل شی او روحونه به را پاسی

## دَ پُوکلو دَ حِکمت بیان

دَ دُنیا نِظام په مادی اسبابو روان دے، نو په دنیا کښ پیدا کیدل هم په وار وار دی، او مرګ هُم، نه ټول خلق یو ځائے پیدا کیږی او نه ټول خلق یو ځائے مری، بلکه پیدا او بنت او مرکیدل په وار وار او رو رو وی، لیکن دَ آخرت جهان دَ معنویاتو او دَ جلال او دَ قُدرت جهان دے دَ دے ته عالَم دَ دفعیات (په یو ځل فوراً) هم وئیلے شی، نو دَ دُنیا ټول الهی او انسانی آبادی به په یو ځل ختم کړیشی او په دویم ځل پُوک وهلو باندے به په یو ځل سمدستی ټول مړی را ژوندی شی، لکه چه فوځ به

په یو شپیلئ جمع کیږی او په یو خوریږی، د انسان په ړومبی ژوند او دُنیا کښې د مور په خیټه کښې د بنیاد د موک قالبونو کالبوتونو) برابرَ وَلو کار د مُدَبِّرَاتِ الْأَمْرِ، فرښتو د وا خپستو او دغه رنګ روح قبض کول او مړه کول ئې هم د دغه فرښتو په ذریعه کېږی.

وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ (فرښتې د روح قبض کولو د پاره لاسونه) قُلْ يَتَوَفّٰىكُمْ مَّلَكُ الْمَوْتِ الَّذِيْ (خورېږی) ته اُووا یه چه ستاسو روح وُكِّلَ بِكُمْ (سورة السجدة آية ۱۱؛ هغه فرښتې قبض کوی کومې چه تاسو مقرر دی)

دد ے آیتونو په موجب د فرښتو په ذریعه په دُنیا کښې الله تعالیٰ انتظام د ژوند او مرګ اُچلولو، د ے نه د الله تعالیٰ احتیاج او کمزوری نه بلکه خپله بادشاهی ښکاره کول وو، د وا په ټوک وهل به حضرت اسرافیل علیه السلام کوی ځکه چه د اُسْجُدُوْا لِاٰدَمَ، د تقاضا مطابق د مَلَکی قوتونو خادمانه حیثیت پوره ښکاره شی، تر دے پورے چه جنت او دوزخ پورے ټول انتظام او خدمت د انسانانو به فرښتې کوی، د جهنم انتظام فرښتې چلوی او جنت کښې د سلام اچولو فرض به هم د فرښتو په سپاره وی قرآن کښې ذکر دی. په ړومبی ټوک وهلو به الله تعالیٰ تجلی د امانت په کائناتو ور غورځوی او په دویم ټوک د هلوسره به د احیاء تجلی مړو ور غورځولے شی، د دواړو ټوکو وهلو کښې به هم نظم او باقاعدګی وی شروع به د علویاتو د آسمانونو نه کیږی، لکه اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ (الانشقاق آیة ۱) وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِنَاءٍ چه آسمان به مات که شی کوم چه د دُنیا چت د ے دغه رنګ. اِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝ وَاِذَا النُّجُوْمُ انْكَدَرَتْ (التکویر آیة ۱،۲) په مطابق د کائناتو د وبنا نه ټول قسم ستوری به بیکاره او ختم کړیشی وَاِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ ۝ (سورة



الانفطار آیة ۳) او اِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ (سورة التکویر آیة ۶) په مطابق ټول سمندرونه خوړېږی او ترخې او به یو ځائے کړیشی او په ګرمئ سره به ختم کړیشی د دغے ګرمئ نه به په اُوبو ورا ُلګی بیا به غرونه په ګرد او غبار کښې بدل کړیشی زمکه به خوږه کړیشی، لکه قرآن فرمائی "وَاِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ) وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۝ فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا ۝ (سورة الواقعة آیة ۵،۶) غرونه به والوزولے شی، او ذره ذره به کړیشی او تر به خوړ و ور ګرد و غبار جوړ شی، بیا به دویم ټوک وهلو نه د تعمیرا انتظام کیږی او مړی ټول به را ژوندی شی او د الله په محکمې به په قطارونو کښې اُودریږی،

## د محشر زمکه

د محشر زمکه به د دُنیا د زمکے نه بدله وی.

يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ) په دغه ورځ به د دُنیا د زمکے نه بله بدله کړے شی دویم دا چه صفات به ئے بدل شی او دریم دا چه یو وار به ئے صفات بدل شی او بل وار به ئے ذات بدل شی، غوره قول دا دے چه صرف صفات به ئی بدل شی، د بخاری او مسلم شریف کښې د سهل بن سعدؓ نه مرفوع حدیث را غلے دے، يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى اَرْضٍ بَيْضَآءَ عَفْرَآءَ كَقُرْصَةِ النَّقِيِّ لَيْسَ فِيْهَا عَلَمٌ لِاَحَدٍ، او په صحیحینو کښې د ابوسعید خدری رضی الله نه مرفوع حدیث را غلے دے،

تَكُوْنُ الْاَرْضُ خُبْزَةً وَّاحِدَةً) معنی ئے دا ده چه خلق به په دا سے زمکه را پاسولے شی، چه سپینه غنم رنګے به وی لکه د میده دَ ډوډئ پشان چه په د ے به هیڅ قسم نښه نه وی، د ابوسعید رض د حدیث ترجمه دا ده چه دا زمکه به د یو ډوډئ په شان وی، بعضے روایتونو کښے چه د چاندئ ذکر د ے، نو د هغه مطلب صرف سپینوالے د چاندئ پشان د ے،

بیهقی کښې د ابن مسعود رضی الله د په صحیح سند دا الفاظ نقل دي،
تُبَدَّلُ الْاَرْضُ اَرْضًا كَاَنَّهَا فِضَّةٌ ،، یعنې دغه نیا زمکه به په داسې زمکه
بدله شي چې لکه د چاندۍ به سپینه وي، ابن جریر رح د زید بن ثابت رض
نه مرفوعًا حدیث نقل کړی دی:
اِنَّهَا تَكُوْنُ يَوْمَئِذٍ بَيْضَاءَ مِثْلَ الْفِضَّةِ ،، دا زمکه به په دغه ورځ لکه د
چاندۍ سپینه وي دې نه معلومیږي چې غوره قول د صفاتو بدلیدو دی.

## د مؤمن خوراک څښاک

په میدانِ حشر کښې به زمکه د کیک پشان وي او مؤمنان به دې نه
خوراک کوي، بدور السافره ص۲۲ کښې منقول دي، چې مؤمنان به د
خپلو قدمونو له طرفه دغه زمکې نه خوراک کوي، او د کوثر هغه اوبه به
څښل کوي چې د پیو نه سپینې، او د ګبین نه خوږې او د شاتو نه خوږې وي"
حافظ بن حجر رح فرمائي، دا دې دپاره چې مؤمن ته د حشر په اوږده
موده کښې د لوږې، تندې څه تکلیف نه وي، بدور السافره ص۱۳۱ کښې د
طبراني معجم اوسط نه مرفوعًا حدیث منقول دی، چې د عرش د لاندې
به د الله له طرفه یو دسترخوان خور شي، چې په دې نعمتونه او د خوراک
څښاک داسې څیزونه او میوې وي، چې چا به نه وي لیدلي، نه به ئې په
خیال کښې راغلي وي خو په دغه خوانچه باندې به روژه تیان مسلمانان
خوراک کوي د هغوی پېژندګلي به دا وي چې د هغوی د خلو نه به د مشکو
او د کستورۍ د خوشبوئی بوئ د ورنه خیژي.

## بیان د حوضِ کوثر

قرآن فرمائي، اِنَّآ اَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ ، ابن عباس رض فرمائي چې دې نه
حوضِ کوثر مراد دی، په میدانِ حشر کښې به د هر پیغمبر د هغه د امت
په جوړ یو حوض وي او په هغې کښې د حضور علیه السلام حوض به تر ټولو نه



لوئې وي، دا مضمون ترمذي شریف کښې د سمره رض نه د مرفوع
حدیث په صورت کښې راغلی دی، د حضور علیه السلام حوض کوثر
په میدانِ حشر کښې د شپږ پنځوس ورځو مسافه وي نه نقل دی چې په
هغې کښې څلور خلفاءِ کرام رض او عشره مبشره هم دي، په ظاهر به
هغه حوض څلور ګوټیز وي، او څلور واړه غاړې به ئې په یو اندازه وي
چې څلور واړه به یو ازې د یو یو میاشت په مزل اوږدې وي
د هغې لوښي او ګلاسونه به د آسمان د ستورو د شمیر نه هم زیات وي
خو د هغه ستورو کوم چې موږ ئې او عوام ورته په نظر ننداره کاوو ربه
د پیو پشان سپین د شاتو نه زیات خوږ او د واوره نه به یخې وي دا
به هغه خلق څښي کوم چې د مؤمن نه علاوه د سنتِ نبوی تابعدار
وي، بدعتیانو نه به دې څکه ور کولې شي او دې نه به لرې کولې شي دا بدعت
لکه د خوارجو، د روافضو او معتزلو اعتقادي وي او که عملي وي، ظالمان
به هم دې نه شړلې شي دا قول روایات د حدیثو د بدور السافره ص۹۵
نه ترجمه کړلی شي، حوضِ کوثر په حقیقت کښې د سنتِ نبوی یا د کتاب
او سنت جسماني صورت دی چې دې نه به یواځې په کتاب او سنت عمل
کوونکي فائده اخستې شي ځکه چې آخرت کښې ټول اعمال به جسماني صورت
اختیاروي بد عملونه به د مضر شیانو او نیک عملونه به د فائده مند شیانو
صورتونه اختیار وي."

## عمل نامې

په قرآنِ کریم کښې ذکر دی

فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ فَسَوْفَ ؛ چا ته چې په ښي لاس عملنامه
يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا وَّيَنْقَلِبُ اِلٰى ؛ ورکړې شي نو هغه به آسان حساب
اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا ۝ وَاَمَّا ؛ ورکوی او په خوشحالۍ به جنت کښې خپل

مَنْ اُوْتِیَ کِتٰبَهٗ وَرَآءَ ظَهْرِهٖ فَسَوْفَ: اهل وعیال ته راورسی، اوچا ته
یَدْعُوْا ثُبُوْرًا وَّیَصْلٰی سَعِیْرًا (سورة: چه د شاله طرفه عملنامه ورو
الانشقاق آیة ع۱۰تا۱۲) کړے شي نو هغه به هلاکت هلاکت چغې وهي
او په دوزخ کښې به اُغورزیږي:
فَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ کِتٰبَهٗ بِیَمِیْنِهٖ فَیَقُوْلُ: چا ته چه په ښي لاس عمل نامه
هَآؤُمُ اقْرَءُوْا کِتٰبِیَهْ اِنِّیْ ظَنَنْتُ اَنِّیْ: ورکړے شي، نو هغه به د خوشالۍ
مُلٰقٍ حِسَابِیَهْ: نه نوروته بهانۍ چراګوري ځما عمل نامه ځما په دُنیا
یقین وو چه په دے ورځ به الله تعالیٰ سره ځما ملاقات وي.
(سورة الحاقة آیة ع۱۹و۲۰)
وَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ کِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ فَیَقُوْلُ: او چا ته چه په چپ لاس کښې عملنامه
یٰلَیْتَنِیْ لَمْ اُوْتَ کِتٰبِیَهْ (سورة: ورکړی شي نو هغه به افسوس کوي
الحاقة آیة ع۲۵) چه دا عملنامه خو ما ته نه وے راکړے شوے،
اِقْرَاْ کِتٰبَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْیَوْمَ عَلَیْكَ: هرکس ته به د خدائے تعالیٰ حکم
حَسِیْبًا (بني اسرائیل آیة ع۱۴) وي چه خپله عملنامه اُګوره او ته
پخپله د خپل حساب له پاره کافی ئے:
په دور السافره صکا تا ۱۰۹) کښې د احادیثو په بُنیاد بیان کړے شوے دے
چه ټولے عملنامے به د لوح محفوظ نه عرش ته راوړے شي کوم به چه په دغه
ورځ میدان محشر کښې وي او جمع به کړے شي نو الله تعالیٰ به باد خاص هوا
په ذریعه هرکس ته خپله خپله عمل نامه د هغه د عمل په مناسب لاس کښې
ورکړي او ګ هرے عملنامے ژو مبي الفاظ "اِقْرَاْ کِتٰبَكَ" به ده دره او دده
د پلار نوم سره آواز کولے شي او حکم به ورته کولے شي دا عمل نامه به
لوستی او نالوستی ټول لوستے شي، په دے وجه حدیث شریف کښې دي چه
د اولاد به نوم مور ته بند دی، چه د چا نسب ثابت نه وي نو هغه به د



د امور په نوم بللے شي، دا د عقل خلاف نه دی چه نالوستی به هم خپله
عملنامه لوستے شي، کوم علم چه خدائے پاک د اُستاذ په ذریعه ښودے
شي، هغه بغیر اُستاذ په الهامي طریقه هم ښودے شي لکه د انبیاؤ علیهم
السلام عُلوم او د حیوانانو علوم لکه د جولا د خپلے جالے جوړولو علم، د شاتو
د مچئ د خپل کبین جوړولو علم میږو نه د اجتماعي اُمورو علم کوم چه
په علم الحیوانات کښې بیان شوی دی، دے زمانه کښې ړندو ته د پړسیدلو
حروفو په ذریعه تعلیم ورکولے شي ما په مشرقي پاکستان کښې بخپله لیدلي دي

# ګواهي

## ۱- د انبیاء علیهم السلام او د علماءِ کرام ګواهي

د جُرم ثابتولو د پاره د مضبوطو او اعتباري خلقو ګواهي ضروري دی
انسانانو د قتولو نه ژو وجه د انبیاء علیهم السلام په ذریعه حق خبره
او د خدائے تعالیٰ حکمونه رسیدلی دي په دا سے خلقو به پخپله پیغمبران
علیهم السلام ګواهان جوړیږي او کچرے دا د پیغمبرانو وارثانو علماء کرام
رسولی وي نو هم دوی به پرے ګواهان جوړیږي، قرآن کریم فرمائي
وَجِایْٓءَ بِالنَّبِیّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ او فَكَیْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِیْدٍ
وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰۤؤُلَآءِ شَهِیْدًا (نساء آیة ع۴۱)

## ۲- د کِرامِ کاتبینو ګواهي

دویم دا چه د احکامِ خدا او نداوي نه د انسانانو خلاف کول او نه کول
به ځنګه ښکاره کولے شي، په دے به دریم قسم ګواهي پیش کولے شي
(۱) د کراماً کاتبین ګواهي کوم چه بیګناه د فرښتے دي (یَوْمَ یَقُوْمُ الْاَشْهَادُ
اي الملٰئكة)، او اِذْ یَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّیٰنِ عَنِ الْیَمِیْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ
قَعِیْدٌ ○ مَا یَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ اِلَّا لَدَیْهِ رَقِیْبٌ عَتِیْدٌ ○ ق

جَآءَتۡ كُلُّ نَفۡسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّشَهِيۡدٌ ۞ کوم وخت چه د انسان عملونه دوه راغستونکی فرښتې راځلی او کینړ او چپ طرف ته ناستې وی څه لفظ د خولے نه وتو سره شیش لګوونکے تیار وی او هر کس به داسے راځی چه یو فرښته به ئی راولی او دویم به ئی ګواه وی، د دُرِّ منثور په حدیثِ مرفوع کښ دی چه دا دوه فرښتې به هم هغه وی کوم به چه نیکی او بدی لیکله۔

## ۳۔ د اندامونو ګواهی

کوم اندامونو چه عمل کړے وی د هغې به هغوی پخپله هم ګواهی کوی اَلۡيَوۡمَ نَخۡتِمُ عَلٰٓى اَفۡوَاهِهِمۡ وَتُكَلِّمُنَآ: نن ورځ به مونږ د دوی په خولو مهر اَيۡدِيۡهِمۡ وَتَشۡهَدُ اَرۡجُلُهُمۡ بِمَا كَانُوۡا: الګوو او د دوی لاسونه به مونږ يَكۡسِبُوۡنَ (سورۃ یٰسٓ آیة ۶۵): سره خبرے کوی او د دوی پښے به هم د هغې عمل ګواهی ورکړی کوم چه دوی به کول۔

وَمَا كُنۡتُمۡ تَسۡتَتِرُوۡنَ اَنۡ يَّشۡهَدَ: او تاسو نشئ پټ کیدے چه په تاسو عَلَيۡكُمۡ سَمۡعُكُمۡ وَلَآ اَبۡصَارُكُمۡ وَلَا: ګواهی اوکړی ستا سو غوږونه سترګے جُلُوۡدُكُمۡ (حٰمٓ السجدة آیة ۲۲): او څرمنے۔

وَقَالُوۡا لِجُلُوۡدِهِمۡ لِمَ شَهِدۡتُّمۡ: او دوی به خپلو څرمنو ته وائی چه تاسو عَلَيۡنَا قَالُوۡٓا اَنۡطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِيۡٓ: څومونږ خلاف ولے ګواهی اوکړه هغوی اَنۡطَقَ كُلَّ شَيۡءٍ وَّهُوَ خَلَقَكُمۡ اَوَّلَ مَرَّةٍ: به اُووائی چه مونږ هغه خدائ ګویا نه وَّاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ (حٰمٓ السجدة آیة ۲۱): کړو کوم چه هر شے ګویا نه کړے دے او هغه تاسو وړومبے وار پیدا کړی یئ او هغه ته به واپس ځئ۔

## ۴۔ د ځمکے ګواهی

قرآن کریم فرمائی، يَوۡمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخۡبَارَهَا (الزلزال آیة ۴) ابن عباس رض د دے آیت په تفسیر کښ فرمائی، ځمکه به د انسان د هغه



عمل خبر ورکوی کوم ئے چه په دے کړے وی، دا ټول څلور قسمه ګواهی شوه، د پیغمبرانو او فرښتو علیهم السلام ګواهی اعتباری ده ځکه چه دوی د ګناه نه پاک دی، نور دوه ګواهی (د اندامونو او د ځمکے) هم اعتباری ځکه دی چه د اخلاف عادت دی دوی پخپله خبرے نشی کولے الله پاک ئے خبرے راوباسی نو ځکه چه دوی به پخپله هم د بیان کوی نو د الله تعالیٰ نه زیات اعتباری به بل څوک وی،

دا اعتراض غلط دے چه اندامونه او ځمکه ژبے نلری نو خبرے به څنګه اوکړی، ځکه چه یو انسان چامید شی، ریکارډ او ټیپ کښ خبرے محفوظ کولے شی، څه وخت چه غواړی نو هغه خبرے آوری، نو الله تعالیٰ خو په طریق اولیٰ داسے کولے شی، بلکه داچه د الله کار دے ژبے نه خبرے اُوباسی او که پښو لاسو نو نه ځکه چه ټول اندامونه د غوښے دی او ئے ژبے نه خبرے راوباسے اُوس د نوروا اندامونو نه د الله پاک قدرت او طاقت چرا منلے شی، نو داسے خبر ومعلوم کښ بیا هیڅ ښه پیش نه وی، دے نه علاوه د نوی تحقیق په بنیاد جمادانو او حیواناتو کښ د مرتبو په جوړونه هر ښته او ګویائی هم لیکن د انسان نه علاوه د نورو ګویائی د انسان د غوږ ولو نه پټه ده۔

آیتونه وَقَالَتۡ نَمۡلَةٌ۔ عُلِّمۡنَا مَنۡطِقَ الطَّيۡرِ، وَاِنَّ مِنۡهَا لَمَا يَهۡبِطُ مِنۡ خَشۡيَةِ اللّٰهِ، يُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ، كُلٌّ قَدۡ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسۡبِيۡحَهٗ،

حضور علیه السلام سره د کانړو او د اُونو خبرے په احادیثو کښ ثابتے دی دا ټول شیزونه ښائی چه هر څه خبرے کولے شی خو فرق دا دے چه د اخو یا انسان آوریدے نشی او یا پرې پوهیږی نه، خو آخرت کښ به د دے عادت په خلاف آوریدلے شی ځکه چه آخرت هم د نا آشنا

شیُونوجهان دے، هسے خو تول هر څه الله ته معلوم دی، دګواهو او د عملنامو ضرورت هغه نه نشته خو بیا هم داسے الله د دے د پاره کوی چه بنیادم ته پخپله خپل عمل ها یاد شی او پخپله په ځان اقرار اُکړی او ګواهان پرِ د ثبُوت د پاره پیش کړیشی، چه د الله عدل وانصاف ښه واضح شی. ځکه چه اقرار او ګواهان د مُدعٰی ثابتولو مضبوط دلیلونه دی هم هغه چه ډیره اعتباری وی او جرحه پرِ ځکه نشی کیدے چه دوی غیر جانب دار دی لکه پیغمبران او فرښتے علیهم السلام، داندامو نو شهادت یو قسم اقرار دے چه بتولو نه مضبوط ثبوت دے،،

البته د ځانے ګواهی ځکه ډیره اعتباری ده چه وړا نده ے بیان اُشو چه دا د الله نِعل دے او په دے یو شهادت هم جرحه نشی کیدے ځکه چه بُنیادی جرحے دوه دی یو دا چه ګواهی بے اعتباره ثابته کړیشی دلته داسے هم نشته ځکه چه پیغمبران فرښتے مکان او اندامُو نه تول اعتباریان دی د علماؤ تصدیق به هُم پیغمبران کوی، ځکه دګواهی هم اعتباری شوه، او دویم دا چه دګواهانو جانبداری ثابته کړیشی دلته داهم ځکه لنشته، بلکه چه انسان سره ددی هیڅ لاند ے باندے هیچرته نشی کیدے چه داسے ترځن د یو بل سره اُلری بلکه د اندامونو ګواهی خو ک بتولو نه زیاته اعتباری ځکه ده چه دا پخپل ځان اقرار دے دوی به پخپله هُم په د غه ګناه عذا بیږی،،

## دَ عملُونو تول

### قرآن فرمائی

وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۚ وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفٰى بِنَا حٰسِبِيْنَ ۞ ،، موږ به د انصاف تله د قیامت په ورځ ایږدو بیا به په چا هم ظلم نه وی او که چیرے د عمل مقدار د اری





د دانے برابر وی هم به ئی مونږ راوړو، او مونږ حساب د پاره کافی یو، وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِ نِ الْحَقُّ ۚ ،، د قیامت په ورځ د عملونو تلل حق دی) فَاَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ ۙ فَهُوَ فِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ۗ ؛ چه د چا تولونه درانه وَاَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ ۙ فَاُمُّهٗ هَاوِيَةٌ ۗ رسره ه ؛ شوه نو هغوی به ذره ۔۔ القارعه آیه ع۶تا۹) پوره ګنډاران کښ وی، او د چا تولونه چه سپک شُو نو هغه به کاؤ نره ګنده ده که ؛،

داسے نورو آیتونو کښ او احادیثو او د اهلِ سُنّت د علماؤ اجماع سره ثابته ده چه عملونه به تلل شی، البته مُعتزله تول او سلفو کښ مجاهد، اَعمش او ضحاک دا وائی، چه تلل د عملونو نشته، کوم ځائے چه وزن لفظ راشی نو د هغے مطلب برابرے او عدل الٰهی به وی پوره مطلب دا چه الله به د عمل په برابر (زیاتے کمے به نه وی) دَ هغے جوړ ک د انسان فیصله کوی خو دا قول ځکه غلط دے چه وزن او میزان په قرآن کښ درونډوالی او سپکوالی سره مَوصُوف دے که انصاف مطلب وے نو دے سره د درونډوالے او سپکوالے به ذکر نه وو ځکه چه انصاف درونډ سپک نشی کیدے نو د جمهورو رائے داسے صحیح ده، چه د غه تله به جسمانی او حِسّی وی، معنوی تله (انصاف) ترِ نه مراد۔ دَ میزان حِسّی په ثبوت کښ د سلمان فارسی رض دا مرفوع حدیث دے،،

يُوْضَعُ الْمِيْزَانُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَلَوْ وُضِعَ ؛ تله به اُدرولے شی هغه به دومره فِيْهِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ لَوَسِعَتْهُ ؛ فراخه وی که چیرے پتول آسمانونه او زمکه په دے کښ کیښودے شی نو ټول به ځائے شی،

حافظ بن حجر رح دا حدیث د بخاری دَ آخری حدیث په شرح کښ حاکم نه په روایت د سلمان رض او ابن مردویه نه په روایت د عائشے رض او بیهقی نه په روایت د انس رض او طبرانی نه په روایت د ابو هریرة رض نقل کړیدے

او ابن المبارک رح دَ سلمان رض روایت په کتاب الزهد، ابوالقاسم لسکائی په کتاب السنة او آلوسی رح په تفسیر دَ سورۀ اعراف کښې نقل کړیدی

## تله یوه ده که ګڼړے

دَ حافظ ابن حجر په رائے تله یوه ده خو کله که دَ جمع په صیغه ذکر شی نو هغه داعمالو په اعتبار سره دَ ځکه چه اعمال ګڼړ دی نو جمع اعتباری شوه یا مُراد دَ جمع د سے نه تعظیم وی، مطلب ئے دا که یوه ده خو کلوئے والی په وجه دَ دے وَرِ ده چه ګڼړے ورته اُو ییلے شی لکه کَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحٍ نِ الْمُرْسَلِیْنَ، حضرت نوح علیه السلام ئے تعظیماً په ګڼړو پیغمبرانو شمیر کړو دَ بعضو رائے ده چه تلے په ګڼړے وی، یا دَ هر کس دَ پاره بیله بیله تله ده او یا دَ هر عمل دَ پاره بیله بیله تله ده، خو اوله قول غوره دے:

## دموزون لهم بیان

دَ چا عملونه به تلل شی، او دَ چا به نشی تلے، قسطلانی رح دَ امام غزالی رح نه نقل کړیدی چه دَ دے دَ لوعملونه تلے نشی، او دَ نورو دلو مکلفو به تلے شی، (۱) معصومین دَ ګناه نه پاک خلق پیغمبران علیهم السلام خو ځکه په نزد دے کښې دَ مسلمانانو واړه او لیونی هم شامل دی، (۲) بل هغه لوے خلو اربه ادنوی کړو به (......۹۹) خلق دی، (۳) دریم ډله دَ کفارو دَ تللو دَ پاره مقابله ضروری وی په دُو مبو دو کښې دَ مقابلے بد عمل نشته او په دریم کښې دَ مقابلے نیک عمل نشته، دا رنګ په آیت فَلَا نُقِیْمُ لَهُمْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ وَزْنًا کښې دا بسکاره ده چه دَ کفارو عملونه به نشی تلے لیکن امام بخاری رح دَ هغه لو دَ پاره دَ عملونو تلل هم منی لکه فرمائی اِنَّ اَعْمَالَ بَنِیْ اٰدَمَ تُوْزَنُ، چه دَ تولو بنیادمو قول او عمل به تلے شی او دا قول حافظ ابن حجر او علامه



آلوسی رحمه الله هم غوره ګڼړلے دے نو فَلَا نُقِیْمُ لَهُمْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ وَزْنًا، کښې به دَ تول نه مطلب قدر او مرتبه وی، یعنی دَ قیامت په ورځ دالله په نزد دَ کفارو دَ عملونو هیڅ قدر او عزت به نه وی بلکه خبره دا چه امام قرطبی دَ تول دَ پاره اعمال متضاده ضروری نه ګڼړی دَ کفارو دَ نیکئ چابړئ به تش دی او دَ کفر به تر خامخا چابړے درونه وی، یا ګچرے دَ کفارو صدقے او خیرات نو نه دَ عذاب دَ کیفیت په کم والی کښې مؤثر ګڼړے شی نو په کیت کښې ګچرے هغه په بل چابړی کښې پراته هم وی نو دَ کفر او ګناهونو په مقابله کښې د وبیر کموالی په وجه دَ کفر چابړے درونه پاتے شی،

دویم قول دَ سبکی رح په شرح عقائد کښې امام ماتریدی نه منقول دے چه دَ کفارو دَ پاره به دَ تمیز او فرق معلومولو دَ پاره تله وی په هغه به دا معلومولے شی چه دَ کوم کفارو ګناهونه او کفر زیات دی نو دَ هغوی به عذاب هم سخت وی او دَ هغوی په نسبت په کفر او ګناه کښې کم نفاذ به دَ هغوی نه لږ شان کم عذاب وی اګرچه ابدی عذاب کښې خو به ټول کافران شریک وی دا فرق به دَ کیفیت زیاتوالی او کموالی دَ حافظ ابن حجر رح دَ ابولهب او ابوطالب دَ قصو نه دا دلیل نیولے دے چه دَ کفارو بعضے نیکئ دَ کموالی دَ سپکوالی دَ عذاب باعث جوړیدے شی، دَ سورۀ مؤمنون دَ آخر آیت نه دَ کفارو دَ عملونو تلل ثابتیږی، وَاَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِیْنُهٗ فَاُولٰٓئِکَ: چه دَ چا تول سپک وی دا هغه الَّذِیْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فِیْ جَهَنَّمَ: خلق دی کوم چه خپل ځانونه خٰلِدُوْنَ ۝ تَلْفَحُ وُجُوْهَهُمُ النَّارُ: په نقصان کښې غورځولی دی، جهنم وَهُمْ فِیْهَا کٰلِحُوْنَ ۝ اَلَمْ تَکُنْ: کښې به همیشه وی دَ دوزخ اور به

اٰيٰتِىْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ بِهَا ؛ د هغوی مخونه سوزوی او خولے به
تُكَذِّبُوْنَ ۝ (آیة ۱۰۳ تا ۱۰۵) ؛ بګنی ورانے وی، دوی ته به اُوویلے
شی چه آیا تاسو ته زما آیتونه نه وو اورولے شوی چه هغه تاسو دروغ ګڼل
آخری فقره (فَكُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ، به کفر ثابت شواو د دومبی فقره
وَاَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ، نه د عملونو تول ثابت شو،

## د موزون بیان

په میزان کښی به څه تلے شی؛ په دے کښی دُوه قوله دی اول د ابن عباس رضی الله عنه قول دے
چه اعراض او اجسامونه به جسم جوړ کړیشی او تلے به شی او دا سے
الفاظ (يُقَلِّبُ اللّٰهُ الْاَعْرَاضَ اَجْسَامًا)، قسطلانی رح نقل کړیدی، او
بدور السافره ، صـ۳۲۵ اکښی د بیهقی د شعب الایمان دا الفاظ نقل دی
يُؤْتٰى بِالْحَسَنٰتِ بِاَحْسَنِ صُوْرَةٍ وَّيُؤْتٰى بِالسَّيِّاٰتِ بِاَقْبَحِ صُوْرَةٍ،
یعنی نیکی به په ښه شکل او بدئ به په خراب شکل کښ راؤړے شی،
طیبی د مشکوة شریف په شرح کښ دے قول ته ترجیح ورکړے ده :-
دویم قول دا دے چه عمل نامے به د عملونو د نوعیت په اعتبار تلے شی
د دے دلیل حدیث د (البطاقة) دے او دا امام ترمذی رح د عبدالله
بن عمرو بن العاص نه نقل کړیدے او ښه (حسن) ئے ورته ویلی دی
او ابن حبان هم په خپل صحیح کښ دا حدیث راوړے دے چه الفاظ ئے دا دی
يُؤْتٰى بِتِسْعٍ وَّتِسْعِيْنَ سِجِلًّا فَتُوْضَعُ : یعنی یو کم سل غټ کتابونه به
فِىْ كَفَّةٍ وَّيُؤْتٰى بِالْبِطَاقَةِ فَتُوْضَعُ ؛ یو چا بری کښ کیښودلے شی، او بیو
فِى الْاُخْرٰى فَطَاشَتِ السِّجِلَّاتُ وَ ؛ ورکوټے پرچه د کاغذ به بل چاړی
ثَقُلَتِ الْبِطَاقَةُ ؛ کښے کیښودلے شی، نو دغه یو کم سل کتابونه به
سپک وی او هغه ورکوټے پرچه به درنه شی،
د دے نه امام الحرمین ترجیح ورکړیده او وئیلی دی چه درونده والے به د



(جر پرا ندا زوی، قرطبی رح هم دا غوره ګڼڕلے ده او د ابن عمر رضی الله عنه قول د
دریم قول دا دے، چه هم عملونه به تلے شی چه په هغے کښ ترمذی او
ابوداؤد هغه مرفوع حدیثونه دلیل دی او ابن حبان د دے تصحیح
کړیده د حدیث الفاظ دا دی :-
مَا يُوْضَعُ فِى الْمِيْزَانِ اَحْسَنُ مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ (په میزان کښی به د ښه
خوئے نه زیات خائسته عمل بل نشی تلے) دے له حافظ بن حجر
ترجیح ورکړے ده، د عملونو تلل به پخوا د عقل نه لرے خبره ګڼڕلے
شوه لیکن اُس خو په تهرما میټر) د بدن یا د موسم درجه حرارت
معلومیدے شی، حالانکه دا عرض دے ، خو موږ په دے دریے
وارو اقوالو کښ اختلاف نشته، کیدیشی چه په دریے وارو طریقو
(عمل د جسم په شکل، عمل د عملنامے په شکل او عمل پخپله) دے
د یاره تلے شی، چه په آخری فیصله کولو کښ هیڅ قسم د شک شبهے
ظاهری صورت بنکاره نشی،
امام ذهبی رح د علم په فضیلت کښ د عمران بن حصین نه د رسول الله
صلی الله علیه وسلم حدیث نقل کړیدے چه د علماؤ سیاهی او د شهیدانو
وینه به تلے شی خو د علماؤ سیاهی به درنه وی (بدور السافره صـ۱۴۱)

## تلونکے

تلونکے د عملونو به څوک وی، د مختلفو روایاتو په بنیاد دے کښ خلق دی
(۱) الله جل مجده به تلونکے وی، دا د امام غزالی قول دے (الدرة الفاخرة
فى كشف علوم الاٰخرة) او دلیل ئے د قران دا آیت بیولے مے ، وَ
نَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ (یعنی موږ به ترازو ګانے ته الله تعالیٰ نسبت
کړے دے،،
(۲) دویم قول دا دے چه تلونکے به مَلَكُ الموت وی او وریو د انس بن

مالک نه دده روایت کړے دے (۳) دریم قول دا دے چه تلونکے به آدم علیه السلام وی په معجم صغیر کښې طبراني د ابو هریرة رض نه په دے الفاظو نقل کړیدے،

يَا آدَمُ قَدْ جَعَلْتُكَ حَكَمًا بَيْنِي ؛ اے آدم علیه السلام ما ته حَما او دخپل

وَبَيْنَ ذُرِّيَّتِكَ قُمْ عِنْدَ الْمِيزَانِ ؛ اولاد په مینځ کښې منصف مقرر کړے

څه میزان سره اُدریږه

(۴) څلورم قول دا دے چه تلونکے به جبرائیل علیه السلام وی دا روایت ابوالقاسم اللالکائي د حذیفه په روایت نقل کړیدے،

حما په نزد دے څلورو وارو قولو کښې څه اختلاف نشته دا ټول صحیح دی الله نه ے تلونکے په دے وجه اُونیلو چه نول به د هغه په حکم کیږی او عام طور حکم کوونکی ته هم د هغه کار کوونکے ویلے شی، په دُنیا کښې کو پولیس چه چالان اُکړی د هغه بیان اخستل په عدالت کښې ضروری وی دغه رنګ عزرائیل علیه السلام د مړو چالان کړیدے د الله تعالی په عدالت کښې به د ده بیان او موجودګی ضروری وی:۔

دُنیاوی عدالتونو کښې د قانونی مشیر ضرورت وی دغه رنګ د الله عدالت کښې د جبرئیل علیه السلام پیشی دے د پاره ضروری ده چه قانون (قرآن) د الله له جانبه راوړے دے او د قانون شکنئ په مقدمه کښې دده پیشی ضروری ده:۔

د اولاد د آدم علیه السلام مقدمه پیش ده نو د سرپرست په حیثیت حاضری ضروری ده:

## دَ عملونو تللو حکمت

الله عالم الغیب دَ عملونو دَ ذرے ذرے نه خبر دے، نو د الله عملونو تللو کښې هیڅ غرض نشته خو عملونه تلل دَ عدالتی کار روائی



تکمیل لپو ذریعه ده. (۱) عمل کوونکے د عملناے په ذریعه د خپلو عملونو نه خبر شی که هیرکړی ئے وی نو را یاد به شی ورته رنګ په پاکرئ کتو چه تیرشوی څیزونه را یادیږی) او نفسیاتی طور به اُمنی چه دا ټول درست دی په ژبه اقرار اُکړی، او که اُنه کړی، لکه:،

اِقْرَأْ كِتَابَكَ ؕ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ، چه دے حکمت ته اشاره شویده ۔

(۲) د عملونو تللو سره نسبت معلومیږی چه نیک عمل یو پوټه او د الله له طرفه د هغے بدل دغه نه هم لوئے دا انسان ته په دے تللو د الله د فضل لوئے والے ښکاره کول دی، او د بد عمل په سزا کښې د الله پاک انصاف ښکاره کول دی:۔

(۳) د انبیاء علیهم السلام، د علماؤ، د فرشتو، د انداموناو ګڼلو ګواهو تیرولو نه مطلب دا ظاهرول دی چه دا ټول کار او عدالتی کارروائی په حقیقت او انصاف بنا ده:۔

(۴) دے ټولے کارروایئ مقصد دا ښکاره کول دی، چه انسانی اعمال دومره اهم دی چه دا ټول انتظامات د هغے د پاره هم په دے وجه کیږی چه د کائناتو د تخلیق مقصد انسانی اعمال دی:۔

## د غورزیږاو ناغورزیږ پیژندل

دَ نیکئ او بدئ د چابرو ذرنیدوا و سپکیدو پیژندلو کښې دوه قوله دی (۱) د دنیا د قاعدے په شان د آخرت هم دا قاعده ده چه د دُونه چابرے به ښکته او سپک به پورته ځی دا د جمهورو علماؤ قول دے:۔

(۲) دویم دَ دے په عکس دے مطلب دا چه کوم چابرے پورته ځی هغه به د دُونه او کوم چه ښکته ځی هغه به سپک وی، څکه چه څیز

او مرکز د میلان به آخرت کښې بدلیږی د نیکو مرکز به پورته وی کوم ځائے چه جنت دے او د بدو مرکز به ښکته وی کوم ځائے چه دوزخ دے دغه قول د بدرالدین زرکشی دے (البرهان فی علوم القرآن) او شاه عبدالعزیز غوره کړیدے (فتح العزیز)

(۳) دریم قول دا دے، چه د نیکو د چاپیرې نه به یو نُور انی ستن دا اُوزی دا د نیکو د دُونده والی نښه دہ او د بدو د چاپیرې نه به تور کاد تیرو ستن دا اُوزی نو دا به د بدو د دُونده والی نښه دہ، دا قول علامه آلوسیؒ د سُورة قارعه په تفسیر کښې نقل کړیدے۔

## د تتول مقام

حکیم ترمذی په نوادر الاصول کښې او ابوالقاسم اللالکائی په کتاب السنة کښې نقل کړیدی چه میزان به د الله په وړاندے اُدرولے شی، د نیکئ چابړے به د عرش په ښی اړخ او پورے به ترجنت وی، او د بدئ چابړے به د عرش چپ اړخ ته وی او پورے به تر دوزخ وی،

## د پُل صراط تیریدل او نُور

په قرآن کښې دی

وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ : په تاسو کښې به داسے هیڅوک نه وی چه د رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ۝ ثُمَّ نُنَجِّي : پُل صراط په ذریعه به جهنم کښې نه وا الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا : دا دالله پرے کړے فیصله ده بیا جِثِيًّا ۝ د سورة مریم آیة ۷۱،۷۲ : به د الله نه ویریدونکی خلق مؤمنین خلاص او ظالمان به ورته په گونډو ور اُغورزو او پکښې به ئے پریږدو:

په دے آیت کښې ذکر دی چه ټول خلق به جهنم کښې واردیږی، مسند احمد حاکم سره د سند د تصحیح او بیهقی ابو سمیه نه په اسناد د جابرؓ مرفوعاً نقل کړیدے چه د (وَارِدُ) معنی داخلیدل دی او دا رنګ



مستدرک حاکم کښې ابن مسعودؓ او ابن عباسؓ نه هم منقُول دی چه د هغے مطلب د ټولو جهنم ته داخلیدل دی امام قرطبیؒ دا قول غوره کړیدے، دویم قول دا دے، چه د وارد یدلو نه مطلب د پُل صراط په ذریعه جهنم نه تیریدل دی، داخلیدل نه دی، دا قول امام نووی غوره کړیدے، دا قول په مسند احمد او ترمذی کښې د ابن مسعودؓ نه مرفوعاً نقل دے، په کوم کښې چه دا هم ذکر دی چه څوک به د برېښنا په شان تیریږی، او څوک به د هوا په شان څوک به د تیز آس په شان څوک به د سوار غاړو په شان څوک به د سور لئی په شان او څوک به د جهنم په اور زخمی شی او تیر به شی او څوک به پکښې اُغورزیږی؛

دریم قول د وارد یدلو نه مطلب نزدے کیدل او د دوزخ لیدل دی چه حساب به دوزخ سره نزدے وی، بیا به کافران په دے کښې اُغورزولے شی او مسلمانان به جنت ته اُرسولے شی، لکه څنګه چه د حضرت موسیٰ علیه السلام په قصه کښې، وَلَمَّا وَرَدَ مَاءَ مَدْيَنَ، راغلے دے دے مطلب په اوبو کښې ننوتل نه دی بلکه هغے ته نزدے کیدل او خوا ته ورتلل دی، څلورم قول دا اګور دے، نو که هر چا جهنم ته ننوتل به د عذاب د پاره نه وی بلکه په نیکانو خلقو به د جهنم اور اثر نه کوی او لکه ابراهیم علیه السلام په هغوی به د غه اور یخ او سلامتی جوړ شی لکه طبرانی او بیهقی کښې چه خالد بن معدان نه منقول دے چه مؤمنانو ته به پته هم نه لګی، نو اُ به وائی چه مونږ خو د وعدے د الله مطابق جهنم ته وارد نه شو نو د الله له طرف به جواب ورکړیشی، مَرَرْتُمْ عَلَيْهَا وَهِيَ خَامِدَةٌ، تاسو په هغے تیر شوئ لیکن هغه مړه وه، طبرانیؒ او ابن عدیؒ د یعلی بن منبهؓ نه مرفوعاً روایت کړیدے چه دوزخ به مؤمن ته وائی

تیر شه ستا نور حما اور مرکړو رحیز یا مؤمن اطفأ نورک لهبي
بدور السافرة، ص۵۲ و ص۱۵۳ د پل صراط په خطرناک وخت کښې به
تیاره وی، د لاس تلو به نه ښکاری، د اعمالو په مناسب به په مؤمنانو ایمانی
نور تقسیمیږی بعضو سره به د غر هومره رڼا وی، بعضو سره به د ګجورې
د ونې په سمون او تولو نه کم د نیک عمل خاوندانو سره د ګټې ګوتې په
سمون رڼا وی ابن جریر عن ابن مسعودرض دا رڼا چه اوویني نو
منافقان به مومنانو نه خواست اوکړی،
انظرونا نقتبس من نورکم قیل : بېرشان حصار شئ چه مونږه هم ستاسو
ارجعوا وراءکم فالتمسوا نورا ط : په رڼاکښې تیرشو نو هغوی به جواب
ورکړی چه دنیا ته لاړ شئ او هغه ځائے نه رڼا راوړئ
ځکه چه رڼا د عمل نه حاصلیږی او دار العمل دنیا ده آخرت نه دے
آخرت دار الجزاء دے ربدور السافره مع تشریح ص۱۳۵ و۱۴۲

## د صراط حقیقت

د پل صراط اوږوالے د دیلوے سټیشن د پل پشان معلومیږی، ابن عساکر
د فضیل بن عیاض رض نه نقل کړیدے چه د جهنم د پاسه د پل صراط اوږدوالے
د پنځلس زرو ۱۵۰۰۰ کالو د مزل په اندازه دے د دے په درے برخو کښې
یوه برخه پوره تختل دی، بله د ریمه برخه د اکوزیدل دی او مینځنۍ د یو څو
هوار نیغ تلل دی، د بدور ص۱۵۹ بیهقی کښې د انس رض نه مرفوعاً منقول
دی چه ادق من الشعر واحد من السیف،
او دغه رنګ په مسلم کښې د ابو سعید خدری رض او ابن جریر کښې دابن
مسعود رض نه او مستدرک حاکم کښې دی چه د بعضو د پاره به د ویښتو نه
نرے او تورے نه تیره او د بعضو د پاره به د میدان پشان فراخه وی

٭ ٭ ٭



## پل صراط او د نور حکمت

پل صراط باندے تلل به د (موقف) میدان حشر نه شروع کیږی او
دا پل د دوزخ د پاسه دے، ځکه چه تیر شی نو د جنت حد به شروع
کیږی، او بیا به جنت ته داخلیدل وی، لکه څنګه چه بدور السافره
کښې د روایاتو نه ثابت دی، د یو قول مطابق که ټول خلق به په جهنم د پاسه
تیریږی نو اهل تقوی ته به هیڅ تکلیف نه وی خو کفارو او فجارو ته به
تکلیف وی، او کچرے د بل قول مطابق جهنم ته داخلیدل هر کس د پاره
ضرورت نو اُس لږ وړاندے موږ بیان کړیدے چه متقیانو ته به
تکلیف او پته هم نه لګی چه د جهنم او ر به هغوی ته یخ او سلام وی
او پخپله قرآن کریم کښې هم ذکر دے،
ثم ننجي الذين اتقوا ونذر الظالمين فيها جثيا ۝ : بیا به موږ تقوی دارو ته د پل
سوره مریم آیة ۷۲ : صراط او د دوزخ او ر نه خلاصے
ورکړو، او کفارا او فجار به ورته پرګونډو دا غورځو، پل صراط به د ویښتو
نه نرے او د تورے نه تیره صرف کفارو او فجارو د پاره وی د هر چا د پاره
به دا سے نه وی، لکه اُس لږ وړاندے موږ دا مسئله بیان کړیدے، هان
کچرے د ټولو هم دغه یو لار د پل صراط وی، نو بیا هم د مؤمن څه خطره
نشته، لکه چه امام بدرالدین زرکشی په البرهان فی علوم القرآن
کښې ذکر کړیدی، چه عالم آخرت کښې به جیز او مرکز بدلیږی د دنیا
د دستور مطابق به نه وی بلکه د شاه ولی الله رحمه الله د قول مطابق
احکام د روح به په احکام د بدن غالب وی د کفارو مرکز میلان به ښکته
یعنی جهنم اړخ نه وی، او د نیکوکارو او تقوی دارو مرکز میلان به پورته
یعنی جنت اړخ ته وی لهذا کفار به د ټول پل زور پریوتو په جهنم کښې شی
او رنګ دوړنګ به شی او درز ورګډ ابه شی او د تقوی دار میلان،

اوزور به پور نه وی د پُل هیڅ بوج او زور به پرې نه پریوزی، او هیڅ تکلیف به ورته نه وی، د دې مثال داسې دې چه څوک د نورې په تېره پښه کېږدي نو تکلیف وی، بلکه زخمی کېږی، لیکن که پښه اوچته کړی او بیا د نورې په تېره د پورته نه پرې پښه کېږدي، نو هیڅ تکلیف به ورته نه وی ځکه چه د قدم میلان پورته اړخ ته نه دے، بلکه کوز اړخ ته دے د حیز او مرکز بدلیدو وجه دا ده چه کفارو په دُنیا کښې جهنمی عملونه کړی دی چه د هغه میلان او ماتے مرکز جهنم ته او جنتیان به د جنتی عمل په وجه خپل میلان او ماتے جنت ته لوی باقی جهنم د کفر او گناه مثالی صورت دے، او جنت د ایمان او عبادت مثالی صورت دے. د گناهونو مزاج گرم دا او د اور تیرے دے، او د ایمان او نیکئ مزاج یخ او د نور دے کوم ته چه د نبی علیه السلام په دے دُعا کښې اشاره ده:-

اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ «اے خدایه خما گناهونه د واوره او د ګلئ په اوبو اوینځه»، په صحیحینو کښې حدیث دے،

حُفَّتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ وَحُفَّتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ. «جنت تکلیفونو کښې کېر دے او دوزخ خواهشاتو کښې کېر دے».

جنت ته تللو د پاره د پُل صراط نه تیریدو مطلب دا حقیقت ښکاره کول دی چه شریعت باندے عمل کولو د پاره دے خلقو هر قسم تکلیفونه تیر کړی دو او جنت د پاره ئے سړک تیار کړے وو، او د نورانی عملونو په وجه هغوی نورانی دار السلام او جنت ته اُرسیده، او چا د شریعت په پُل او په سړک باندے تلل پریښی وو یا خو په شریعت تلل او خو خپل طبیعت تلل دو جنت په سړک (شریعت) تلل لکه چه دوی ته په دُنیا کښې گران معلومیدل د غه رنګ به آخرت کښې هم د جنت په سړک (پُل صراط) تلل دوی ته گران وی مطلب دا چه آخرت عالم مثال دے، شریعت له به الله تعالیٰ د قیامت



په ورځ د پُل صراط شکل ورکړی د چا چه دے سره په دنیا کښې تعلق وو، خپل خواهشات ئے پریښی وو او په شریعت ئے عمل کولو هر قسم تکلیفونه برداشت کول او قربانئ ورکول دوی ته د شریعت د پاره آسان وو دوی شریعت سره داسے ځان عادت کړے وو چه هم په دے کښې به ورته آرام رنړا او اطمینان حاصل وو، نو هغوی به په ډیرے آسانئ فراخئ او رنړا کښې په دے تیر شی، او خپل مرکز میلان (جنت) ته به اُرسی کوم چه د نیکو او ښیګړو مرکز هم دے، او کوم خلق چه په دُنیا کښې داسے نه وو، شریعت سره ئے تعلق نه ساتلو په دے باندے عمل کولو ته ئے ساده به وه، خپل خواهشات به ئے په د سے غوره کنټرول، نو هغه خلق په پُل صراط هُم نشی تیریدے دا به ورته د نورے نه تیره شی او د ویښته نه به نرے شی، لکه څنګه چه ورته دُنیا کښې ښکاریده او دے نه تیریدو په ځائے به خپل مرکز میلان (دوزخ) ته گذار شی کوم چه د بدو او ګناهونو مرکز هم دے.

## د نور اسباب

اَلصَّلٰوةُ نُوْرٌ - وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْ اُنْزِلَ مَعَهٗ، اَلصَّبْرُ ضِيَاءٌ، وَالظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ:

په پُل صراط به رنړا د لمونځ، قُرآن، روژے او د ظلم پرده کولو سره حاصلیږی (بدور السافره ص ۱۳۷)

## پُل صراط باندے تیریدل د کومو عملونو په وجه آسانیږی

① کمزورے سره د حکومت د ظلم نه په خپل اثر رسوخ خلاصول (طبرانی عن عائشة رض)

② د دین کار د پاره جماتونو سره تعلق لرل او هم په دے غرض جماتونو ته بیا بیا راتلل (بزاز باسناد حسن عن ابی الدرداء)

(۲۶۲) په خپله رائے په دین کښې د زیاتئ نه ځان ساتل، او د سنّت تعلیم ورکول (دیلمي في الإنابة بحواله السافرة ص۱۰)

# جَنَّت او دوزخ

د اهل السنّت والجماعت په دے عقیده اتفاق دے، چه جنت او دوزخ پیدا دی. امام ابوالحسن اشعري په مقالات الاسلامیین واختلاف المصلین کښې د بِلَفْظِ مَا اَجْمَعَ عَلَیْهِ اَصْحَابُ الْحَدِیْثِ وَاَهْلُ السُّنَّةِ مطلب دا چه اهل حدیث او اهل سنّت په کومو عقائدو چه متفق دی د هغې په تفصیل کښې فرمائی: وَاَنَّ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ مَخْلُوْقَتَانِ (جنت او دوزخ پیدا شوی دی)

امام ابن قیم رح صحابه کرامو رض تابعینو تبع تابعینو رح اهل السنة والحدیث فقهاؤ او اهل تصوّف په دے عقیده اجماع نقل کړے ده (حادی الارواح) د معتزله وُ دا وینا غلطه ده چه اُس جنت او دوزخ نه دی پیدا د قیامت په ورځ به پیدا کیږی چه ضرورت به ئے هغه وخت وی، غلطه ځکه ده چه اُس د دوارو موجود والے عبث نه دے بلکه په دے کښې فائدے دی:

## د جنت او دوزخ د اُسنی موجود والی دلیلونه

① ټولو انبیاؤ علیهم السلام د جنت زیرے ورکړے دے او د ویرو لو تاثیر هله قوی وی چه دا دواړه اُس موجود وی"

② په صحیح احادیثو کښې د مرګ په وخت او په قبر کښې د جنت دوزخ لیدل او د هغې اثرات محسوسول ثابت دی چه دا د دے د اُس موجود والی دلیل دے، په صحیح احادیثو کښې دا هم ذکر دی، چه د بعضې نیکانو



لکه شهیدانو، صدیقینو، انبیاءو او بعضے مؤمنانو روحونه له مرګه د جنت د نعمتونو نه فائدے اخلی او بدکاره خلق د دوزخ تکلیفونه تیروی د قیامت نه وړاندے د نیکانو او بدانو د جنت او دوزخ سره ربط او ارتباط دا ښائی چه اُس هُم دا دواړه موجود دی او د قیامت نه وړاندے د دے پیدا کیدل دا قسم فائده علری

## د جنّت او دوزخ د وجود نقلی دلائل

په قرآن کریم کښې د آدم علیه السلام په جنت کښې استوګنه او بیا د مځکے ته راتلل ذکر دی، دا جنّت آخرت والا هغه دار الثواب دے، دا صحیح قول دے، د امام رازی رحمه الله دا قول د ابوالقاسم بلخی معتزلی او د ابومسلم اصفهانی نقل کول دی چه د آدم علیه السلام د کیدو ځائے د مځکے یو باغ وو" او پخپله د امام رازی په دے کښې خپله رائے نه ښکاره کول، یا د جُبّائی دا وینا چه دا د آدم آسمان جنت وو، یا د بعضے صُوفیانو رح دا وینا چه د جبل یاقُوت یو باغ وو، یا د یهودو نصارئو د باغ عدان یا فلسطین یا اصفهان متعین کول، ټول د عقل او نقل نه خلاف دی.

## وجوهات دا دی

## د آدم علیه السلام د کیدو ځائے آسمانی جنت وو

هر کله چه د جنت لفظ په لام د تعریف سره ذکر شی او په الفاظو کښې د مځکے یو باغ مُراد کولو څه قرینه هم نه وی نو جنت نه به مطلب هغه دار الثواب وی بالخصوص په دے صورت کښې چه د قرآن الفاظ په دوو قرینو دا ګواهی کوی چه د آدم علیه السلام د کیدو ځائے آسمانی جنت وو، یو خو په سورت طٰه کښې چه کوم صفتونه د جنت بیان دی هغه هم آسمانی کیدے شی کوم چه دار الجزاء دے زمینی نشی کیدے، هغه دا چه الله تعالیٰ آدم علیه

السلام ته د جنت بو تلو نه پس اُفرمائیل، فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ ○ إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ ○ وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ○ (سورة طٰه آية ۱۱۷ تا ۱۱۹) دا پنځه صفتونه د دُنیا د هیڅ مقام نشي کیدے، مثلاً دا چه د جنت نه په وتلو پس به تا ته تکلیف وے کښې برلوږه نه وي، بربنډ به نه وي، تندَه به نه دي، او گرمي به نه لګی، دا ټول خصوصیات د برتني جنت کیدے شی د زمیني نهٔ، د دنیا یو باغ کښې کومه فائده چه کیدے شی هغه د دُنیا په بل باغ کښې هم کیدے شی چه د اوّل باغ نه را اُوزي مګر نورے څلور فائدے د دُنیا په هیڅ یو باغ کښې نشي کیدے،

دُوَیم په سُورهٔ بقره کښې وي، قُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ○ (سورة البقرة آية ۳۶) په دے آیت کښې د جنت نه په را کوزیدو دوه نتیجے مُرتبے کړے او له دا چه ستاسو د اولاد په مینځ کښې به دُشمني وي لکه څنګه چه ورانه د فرښتو په ژبه هم ظاهره کړے شوے وه، أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ چه ته دا سے خلق په زمکه کښې جا نشین جوړے کوم به چه فساد او خُون ریزي کوي، په دے آیت کښې اِهْبِطُوا کوزشئ بیا ئے د جمع په لفظ اُفرمائیل چه ستاسو اولاد به دیو بل دُشمنان وي، او بل دا چه ستاسو او ستاسو د اولاد آستوګنه به تر تا کلي وخته پورے په زمکه وي او دے نه به فائده حاصلول وي کجرے د آدم علیه السلام د کیږدو ځائے آسماني نه وے نو دا الفاظ به الله تعالیٰ نه وے ویلے ځکه چه دُشمني خو د زمکے د ژوند خصوصیت دے او دا به ئے هم نه وے ویلے چه د کوزیدو نه پس به تاسو زمکه کښې اُسیږئ ځکه چه زمکے ته د کوزیدو وا د



د زمکے د یو باغ نه بل باغ په تلو دا سے الفاظ هیڅ معنیٰ نه لري، د زمکے نه زمکے ته کوز شئ، د زمکے د یو باغ نه اُوزئ او په زمکه کښے اُسیږئ معلومه شوه چه دا زمیني باغ نه وو بلکه آسماني جنت وو لویدل باطني ذِلّت دے او بربنډ والے ظاهري ذِلّت دے، تنده باطني ګرمي ده او د نمر ظاهري ګرمي، د دے په مینځ کښې جوړه نه ده، د آدم علیه السلام د کیدو ځائے دے ټولو نه پاک وو،

## دا دم علیه السلام د کیږدو د ځائے متعلق استدلال

### د حدیث استدلال

په صحیح مسلم کښې د ابو هریرة رضی الله او او د حذیفه رض نه مرفوعاً حدیث دے چه د قیامت په ورځ به د آدم علیه السلام اولاد د آدم علیه السلام نه جنت پرانستو غوښتنه اُکړي د دے په جواب کښې به حضرت آدم علیه السلام اُفرمائي وَهَلْ أَخْرَجَكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ إِلَّا خَطِيئَةُ أَبِيكُمْ، چه تاسو خو جنت نه هم ستاسو د پلار غلطي را وایستي یئ، د دے نه معلومیږي چه د قیامت جنت هم هغه دے کوم نه چه آدم علیه السلام را وایستے شوے وو، هر کله چه د جنت اُسنے وُجود ثابت شو نو دوزخ هم خامخا ځکه موجود دے چه د فرق هیڅوک قائل نه دے ؛

### قرآني استدلال

د جنت په باره کښې قرآن کریم فرمائي أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ۝، او د دوزخ په باره کښې فرمائي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ ۝ دواړه د ماضي صیغے دي، مطلب ئے دا دے چه جنت او دوزخ دواړه تیار نه موجود دي، دریم دلیل دا دے چه فرعون سره د فرعونیانو هر کله چه غرقیدل نو قرآن فرمائي، أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا ۝ دا هم دواړه د ماضي صیغے دي چه په تیره شوے زمانه کښې د فرعون او فرعونیا نو غرقیدو سره هغوی او ور جهنم ته ننوستے شو،

کېږي قیامت نه وړاندې دوزخ ته نو دوی څه ته داخل کړې شوي

## دَآدم علیه السلام دَکیږ ځائے جنت وو په دې دشبهوا...

دَآدم علیه السلام دَکیږ ځائے جنت الخلد نه منلو شبهې دا دی،

(۱) جنّت کښې داخله به دَ قیامت په ورځ وی، خو آدم علیه السلام دَ قیامت

نه وړاندې جنت کښې څنګه داخل شو۔

(۲) جنت کښې به بربنډتیا او لوږه راتلل نه وی، که دا جنت الخلد وې نو

آدم علیه السلام ته دا دواړه هلته څنګه پیښ شول۔

(۳) جنت په آسمان کښې دې چرته چه امر او نهی نشته او نه مکلّف کیدل ...

نو آدم علیه السلام ته دَ منع (نهی) حکم څنګه هلته راغلو،

(۴) آسمانی جنت ته داخلې نه پس هلته نه وتل نشته، نو بیا آدم علیه السلام

هلته نه ولے اُویستے شو۔

دې څلورو واړو جواب هُم بوْدې، هغه دا دې چه دا څلور واړه خبر...

هغه وخت دَ پاره دی چه دَ قیامت په ورځ به مُومنان دَ نیک اعمالو...

په نتیجه کښې داخل شی او دَ دې تائید دَ قرآنی آیتونو سیاق او سباق...

دے کوم کښې چه دا څلور واړه خبرې په جنت کښې دَ قیامت دَ داخلے نه...

نو هم دا شبه چه دَ جنت نه ویستلے شو نو شیطان بیا جنت ته...

وسوسے اچولو دَ پاره څنګه لاړو،

نو اوّل جواب دا دې چه وسوسے اچولو دَ پاره جنت ته دا خیدل ضرور...

نه دی دا ګهر نه هم کیدے شی لکه مونږ چه ګورو نو میله لرې...

موبږ ته ګرمی او رڼا راز سَتولے شی، حالانکه نمر جسم کثیف دے...

جسم لطیف (شیطان) خو دَ دې نه زیات هم لرې نه دګوډ نه...

زیات مضبوط اثر غورزولے شی، دوّیم جواب دا چه شیطان په جنت...

کېږ دَ استوګنے نه بندوو د هغے پیښیدو او دَ امتحان او آزمینت کولو...



...ن نه وو، دریم دا چه دَ شیطان بندیز قانونی وو قانونی بندیز

...ا مجرمان دَ بندیز ځائے نه په پټه او غلا غلا ننوتلے شی، دا نَه دَ پټ

...ل مُمکن نه دی لیکن الله دَ څه حکمت دَ وجے نه دَ دَه په دغه قسم

...کښې څه دَخل اُ... نکړو۔

...یم مه شُبه دا ده چه آدم علیه السلام په زمکه خلیفه جوړ شوې وو

...نو دَ آسمان جنت ته ولے بوتلے شو، دَ دې جواب دا دې، چه دَ الله

...حکمت دَ دَه په دغه بو تلو کښې دا سے وو لکه چرته دَ عیسیٰ علیه السلام ...

...آسمان ته په خیژولو او بیا په زمکه راکوزولو کښې څه حکمت دے،

...آسمانی جنت کښې دَ آدم علیه السلام دَ استوګنے او دَ اُونې دَ خوراک

...السلام په وجه دَ هغه راکوزولو کښې دَ الله تعالیٰ حکمت ...

## ژوُمبے حکمت

ژوُمبے حکمت دا وو چه دَ آدم علیه السلام په اولاد کښې دا شعور مضبوط کړېشي چه دَ دوی اصلی وطن

...ا و زمکه نهٔ بلکه آسمانی جنت دے او دوی زمینی ژوند کښې دَ دې حاصلولو

...سیاق ... پاره دَ انبیاؤ علیهم السلام دَ هدا یاتو او دَ هغوی دَ تعلیماتو مکمّل پیروی

...کری او دَ خپل پلار ګنی وطن جنت دَ حاصلولو پوره پوره کوشش اُکړی

...نه دَ هم دغه وجه ده چه په قرآن کښې دَ آدم علیه السلام دَ نزول جنت

...نه پس دا مضمون ذِکر دے، فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَن تَبِعَ

...هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ دَ سورة البقرة آیة ع۳۸

... ځنی په زمکه دَ راکوزیدو نه پس هر کله دَ انبیاؤ علیهم السلام او دَ

...آسمانی کتابونو په ذریعه دَ الله له طرفه کوم سامان دَ هدایت چه را شی

... نه، خو که په هغے عمل کوی نو هغوی به دَ جنت هغه ژوند بیا موندی کوم چه

...ریږې او دَ غمه پاک دے،

## دویم حکمت

لکه خنګه چه د دے واقعې نه معلومیږی، دویم حکمت په دے کښ د الله د نافرمانئ دا نتیجے

خطرناکو نتیجو نه د انسانانو ویرول دی، آدم علیه السلام د انسانانو
پلار او د خُدائے تعالٰی محبوب او مقبول بنده وو هرکله چه هغه په دا
کار (هغه اُونه خوړل) چه ګناه هم نه وه (وَلَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا) د
نه خارج کړے شو نو د ګناه نتیجے خو به دے نه هم زیاتے خرابے وی
هغه نافرمانی د الله ده کومے سره چه قصد او اراده شامله وی قرآن
ګواه دے چه د آدم علیه السلام دے فعل کښ اراده د نافرمانئ نه و
ځکه چه جنت د شرعی احکامو ځائے نه دے چه د هغه خلاف کول ګناه
اُبولې نو دا حکم تشریعی نه وُو بلکه تشفیقی وو، د حکم تشفیقی د مطلب
وی، چه مثلاً یو د اکټر ناجوړ ته د پرهیز کولو مشوره په دے غرض
کړی، چه د دے په خلاف کولو کښ د ناجوړ نقصان دے هرکله چه
بدپرهیزی اُکړی نو د اکټر هیڅ نقصان اُنشو او نه د حکم عدولی اُشو
نقصان د ناجوړ اُشو چه د مرض زیات شو یا بل مرض ترے پیدا اُشو
یا دا حکم عام وو د هٰذِهِ الشَّجَرَةَ، نه مقصد د الله تعالٰی د هغه قسم
بوټو اُو نو نه بند بوزوو او آدم علیه السلام د یو خاص اُونه بند
ترے مطلب واخستو دا غلطی اجتهادی وه او په اجتهادی غلطئ
عذاب نشته سوال پیدا کیږی چه هرکله دا ګناه نه وه، نو قرآن
فرمائی، (وَعَصٰى اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى) د دے جواب دا دے چه
حقیقت کښ عصیان او غوایت نه وو بلکه په صورت د دے وو. د عربئ
ژبے د قواعدو په لحاظ هغه نیکئ نه هم بدی ویلے شی کوم چه د بدئ
هم شکله وی لکه (جَزٰٓؤُا سَیِّئَةٍ سَیِّئَةٌ مِّثْلُهَا) سورة الشوریٰ آیت
مث او (فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَیْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَیْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَیْكُمْ)



سورة البقرة آیة ۱۹۴، دُومبی آیت کښ ئے داشکلئ په وجه د بدے
بدلے ته بدی اُو ئیلے حالانکه بدله اخستل جائز دی، د غه رنګ
دویم آیت کښ د زور ظلم بدل اغستلو ته د هم شکلئ په وجه زور
ظلم اُو ئیلے شو، حالانکه بدله اخستل څه بده کار د ګناه خبره نه ده
لکه مطور دا سے خلق وائی چه د سپیرے بدل ئے په سپیره واخستو
سپیره سے دواړه پوشان دی مګر دُومبی سپیره ناجائز او دویمه
سپیره جائز صرف شکل کښ دواړه سپیرے پوشان دی، خلاصه دا چه
تیر ودا چه دے واقعے کښ د الله دا حکمت بنودل وو چه هرکله آدم علیه
السلام دا سے یو کار اُکړو چه صرف شکل او صورت د ګناه وو (حقیقت
کښ ګناه نه وه) مګر په نتیجه کښ ئے د جنت نه رااُ شکلو د هغے آرام او
بے پایان نعمتونه ترے واخستے شو او د دُنیا په تکلیف وه ژوند غمونو
سرګردانو کښ ئے مبتلا کړو او کار هم یو وو نو هغه کسانو ته عبرت
کول وو کوم چه حقیقی ګناه کوی او یو هم نه بلکه تول عمر په ګناهونو
کښ اَړم وی نو د هغه به څه حال وی څومره خطرناکے نتیجه به هغه د
قیامت په ورځ را اُوزی، او هغه همیشه ژوند به ئے څومره خراب وی،

## دریم حکمت

دریم حکمت دا دے چه جنت دار د راحت او دُنیا
دار د محنت دے لهٰذا په دے دار د محنت کښ د
پاره محنت کول د حقیقی راحت یعنی د جنت د حاصلولو د پاره ذریعه
دے، په دے وجه دُنیا کښ تکلیف تیر کړئ مشقت اُکړئ چه د جنت
راحت مو نصیب شی،

براحتے نرسید آنکه محنتے نه کشید،

د دُنیا نظام هم دا سے جوړ دے چه څوک محنت کوی نو هغه
راحت بیا مومی،

## څلورم حکمت

دَآدم علیه السلام او دَابلیس دَ واقعې نه اِنسان ته دا ثبوت ورکول
چه شیطان دَ انسان دتولو نه لوئے دُشمن دے دَ هغه کار دَ الله
تابعدارئ نه لرے کول او په خواهش نفسانی کښې ګډ ول، مګول دی
انسانیت او ابلیسیت کښې به جاري عداوت وي، خو دَ انساني کامیابئ
په دے کښې پټ دے چه هغه دَ ابلیسي حربو نه ځان اُساتي
او دَه نه دخپل پلار مقام او خپل وطنِ اصلي په ګوتو ورشي ګوند
دَ اصلي وطن نه به لاس وینځلے وي،

## پنځم حکمت

جنتي ژوند نه دَ بن مکے شو ونه ته دَ آدم علیه السلام دا بدلول
حکمت دا هم وو چه دَ جنت دَ خوشحالو ډک ژوند دَ دُنیا دَ غمو
ډک ژوند سره مُقابله کړی او دا تاریخي حقیقت دِ په اولادِ آدم عليه
السلام کښې برابر جاري وي چه غور یز ژوند دَ آخرت دے حکم
دوی دَ دُنیا په جنجالونو کښې اُمید و سره آخرت او دَ جنت حقیقي
شان اُنه غور ژوي، او دَ، وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى، راعلیٰ آیه
والصوړ چه دَ آخرت او دَ جنت ټول عمري او هیشه ژوند دیر
دَ اولادِ آدمؑ په هغه کو ششونو کښې دَ بجلتي چپے پیدا کړی کوم
دجنتي ژوند ګټلو کپاره کوی،

## شپږم حکمت

دادم علیه السلام قصه دَ اِبلیسي عداوت ښکاره کولو دَ پاره یو آئینه
په دے کښې دَ الله تعالیٰ دا پټ حکمت ښکاره ګول دی چه انسان دبا
دَ ابلیسي عداوت وجود له دے وجے ضروري دے چه هغه دَ دے نه
ځان محفوظ کولو دَ پاره هر وخت تیار او سیږی او دَ دین دَ دے خطر



غت دُشمن دَ دُشمنئ خیال په اِنسان کښې دَ دین دَ حفاظت خیال
او جذبه پیدا کوی، انساني وُجود یو ورکوټے حکومت اګنړه دَ دے
ندامونه دَ رعیّت پشان او رُوح ئے دَ یو بادشاه پشان دے، قانونِ الٰهي
وشریعت دَ دے ورکوټي حکومت آئین او دستور دے شیطان او
ابلیسیت لګی شی دغه اندامونه په بغاوت کولو آماده کوی، چه دغه
دستور اُنه منی کچرے دَ اِنسان رُوح دَ خپل دے حکومت په بچ کولو
او به حفاظت کښې پاتے راشی نو دشمن به په خپته واچوی او دَ دے
انساني اندروني مملکت ټول انتظام به ګډوډ کړی (لکه ن صبا لبنان
کښې چه اسرائیلو کړلي) او که چرے دَ دشمن دَ چالونو هر وخت نګراني
کوی، دَ حکومت دَ حفاظت خیال ساتي او دغه انتظام ئے مضبوط وی
نو ابلیسي چلونه به ټول بیکاره شی، ددے ښکاره مثال دَ پاکستان
حکومت دے چه په خواکښې ئے دَ بهارت یو مکار دُشمن حکومت موجود دے
کچرے دا دُشمن نه وے نو حکومت او عوام دَ پاکستان دوا به بے فکره
ناست وُو دَ خپل ملک دبچ کولو او دَ حفاظت دَ جوش ډک انتظام به ئے نه
کولو او دَ پاکستان بری، بحري او فضائي فوځ به دَ نیشت برابر وو، جنګي
وسله او جنګي فوګو نه به ئې پکار نه راوستل، دا خو دَ غت دُشمن بهارت
صدقه ده چه پاکستان کښې دِ فاعي ساز و سامان مخ په ترقئ دے،
مطلب دا چه دَ انسانیت دَ تکمیل راز دَ ابلیس په دُشمنئ کښې پټ دے
لکه چه حضرت علي هجویریؒ مشهور په داتا ګنج بخش، خپل هغه مُرید
دا سے پوه کړو کوم چه دَ دُشمنانو دَ ضررونو شکایت کړے وو، دا و قعه
علامه اقبال په خپلو شعرونو کښې دا سے بیان کړی دی. ع

راست ... عدوم یارِ لست — هستئ او رونق بازار کیست
برکه دانائے مقاماتِ خودی است — فضلِ حق داند اگر دشمن قوی است

| کشتِ انسان را عمو باشد سحاب | | مکنا تش را بر انگیزد ز خاک |
|---|---|---|

## دَ جنت دَ ژوند حقیقت

دَ جنت حقیقت او نعمتونه دومره اُوچت دی، چه دَ انسان په خیال کښې هم نه شی راتلے:-

| فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ سورة السجدة آية ۱۷ | ترجمه:- یعنی په خپلو سترګو کښې لیدلی ورباندے هیڅ یو کس دا نعمتونه نه پیژنی کوم چه ماپټ ساتلی دی دوی |
|---|---|

دپاره دَ سترګو یخوالے دے، چه دوی دَ عملونو بدله به وی ۔

په بخاری او مسلم کښې دَ ابُوهریرة رض په روایت دَ حضور علیه السلام ارشاد منقول دے، چه الله پاک فرمائی چه ما په جنت کښې هغه نعمتونه تیار کړیدی چه نه څوکومو سترګو لیدلی دی او نه کومو غوږونو دَ دے تعریف آوریدلے دے، او نه کوم یو زړه ددے خیال راوړے شی، دَ دُنیا نعمتونو سره دَ دے نعمتونو هیڅ مُناسبت نشته، ځکه دَ دے اصل حقیقت بغیر دَ لیدو او استعماله ممکن نه دے خو د انسان پوهولو دپاره دَ دے اجمالی پیژندګلی دَ علوم آخرت په همن کښې ضروری وه لیکن دَ انسان پوهه دَ دُنیاوی څیزونو نه پوره نه ده ځکه ئے په دغه رنګ کښې قرآن شریف او حدیث بیان آکړو۔

ابن عباس رضی الله فرمائی، چه دَ جنت نعمتونو دپاره دَ دُنیوی شیو نومونه او الفاظ چه استعمال شویدی دا صرف تدرسی او تعبیری مناسبت په وجه دی ګوندی دَ آخرت دَ نعمتونو حقیقت دَ دُنیا دَ نعمتونو نه بالکل مختلف دے، ځه وایم چه جنت کښې به هم اُوبه وی، او په دُنیا کښې هم اُوبه شته لیکن په دواړو کښې دَ آسمان او زمکے فرق دے ځکه چه دَ تولے دُنیا



دولت اُلګولے شی او په هغے یو ګلاس شربت تیار کړیشی نو دا به دَ جنت دَ اُوبو په مقابله کښې داسے وی چه په لیدو به ئے هغه چا ته سرخُون ورځی چاچه دَ جنت اُوبه څښلی وی ځکه چه دَ جنت په اُوبو کښې مُوندونکی خوندونه بدنی او رُوحانی اثرات هغه دی کوم چه دَ دُنیا په هیڅ څښاک کښې نشته ۔

## دَ آخِرت دَ ژوند اِجمالی نقشه

قُرانِ حکیم دَ جنت دَ ژوند په منفی انداز کښې دا نقشه راښکلے ده،
لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ ، هغه ژوند دَ ویرے او دغم نه بیخی پاک دے، او په مثبت انداز کښې ئے داسے بیان کړے دے،

| وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْٓ اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ۝ نُزُلًا مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ۝ (سورة حٰمٓ السجدة آية ۳۱ و ۳۲) | ترجمه: یعنی دَ جنت په ژوند کښې به هغه شے ملاویږی کوم چه په زړه کښې تیرشی او هغه شے به هم ملاویږی کوم چه اُغوښتے شی، او بیخیله دَ انتظام کولو |
|---|---|

ضرورت ځکه نشته چه هلته به خلق دَ الله پاک تول عُمری میلمانه وی، نو تول عمری انتظام به هم دَ الله پاک وی، په بدور السافره کښې مذکُور احادیثو کښې دَ دغے پاک ژوند دا تفصیل بیان دے ۔
غِنَاءٌ لَا فَقْرَ صِحَّةٌ لَا مَرَضَ ؛ یعنی دَ جنت په ژوند کښې بینیازی شَبَابٌ لَا هَرَمَ حَيَاتٌ لَا مَوْتَ ؛ او غنی توب دے، فقیری او محتاجی پکښې نشته، ظاهری او باطنی تندرستی به وی او رنځ پکښې نشته ځوانی شته بوډاتوب نشته، ژوند شته، مرګ نشته دا هغه لنډه نقشه ده، چه دَ هغے مُطابق بومینې ژوند به په دُنیا کښې تولو دلوئے باد شاه ته هم نه وی نصیب شوے په دے وجه دَ الله اِرشاد دے، وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۝ (سورة عنکبوت آية ۶۴) ۔

چه لوازم د آخرت ژوند حقیقي دے، په حدیث شریف کښے راځي چه د یو جنتي سړي طاقت به د یو سلو مضبوطو ځوانانو هومره وي همیشه د پاره او هیڅ کمزوري به پکښې نه راځي د هغه بنائست به بې مثاله وي او په هغے کښې به زیات والے راځي، لکه چه په صحیح احادیثو مبارکو کښې ثابت دي، د دے نه علاوه داچه د دیدار الٰهي خوند به د ومره وي چه بل هیڅ د جنت خوند به دے ته نه رسي:

## د قیامت په نښو کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام آسمان نه راکوزیدل په بحث کښې شامل دي:

د حضرت عیسیٰ علیه السلام آسمان نه خیژول او وخت د هغوی ژوندا او په آخره زمانه کښې په زمکه راکوزېدل د مسلمانانو اتفاقي عقیده ده څکه چه په تیرشوو څوارلس سوو ۱۴۰۰ کالو کښې په دے کښې هیڅ یو مسلمان عالِم اختلاف په دے نه دے کړے چه دا د یو داسے صفا مسئله ده چه اسلام او د دے انکار نشي جمع کیدے په بحر المحیط تفسیر جلد ۲ ص۴۷۳ کښې د امام ابن عطیه رح د اجماع الفاظ منقول دي ""

حَیَاةُ الْمَسِیْحِ بِجِسْمِهٖ اِلَی الْیَوْمِ وَنُزُوْلُهٗ : تر دے وخته د مسیح علیه السلام مِنَ السَّمَآءِ بِجِسْمِهِ الْعُنْصُرِیِّ مِمَّا اَجْمَعَ : ژوند سره د جسم او جسم عنصري عَلَیْهِ الْاُمَّةُ وَتَوَاتَرَ بِهِ الْاَحَادِیْثُ : سره د آسمان نه د ده راکوزیدل داسے یو عقیده ده چه په دے اُمت متفق دے او له مُتواترو احادیثو ثابت دے په جامع البیان تفسیر کښې د اِنِّیْ مُتَوَفِّیْكَ تفسیر د تفسیر جیز نه نقل شوی دے وَالْاِجْمَاعُ عَلٰی اَنَّهٗ حَیٌّ فِی السَّمَآءِ یَنْزِلُ یَقْتُلُ: په دے اجماع ده چه الدَّجَّالَ وَیُؤَیِّدُ الدِّیْنَ : حضرت عیسیٰ علیه السلام په آسمان کښې ژوندے دے، راکوزیږي به دجال به قتل کوي او دین اسلام به مضبوطوي ، دارنګ د امام شوکاني رح په رساله اَلتَّوْضِیْحُ فِیْمَا تَوَاتَرَ فِی



الْمُنْتَظَرِ وَالدَّجَّالِ وَالْمَسِیْحِ، او د امام سیوطي رح په اَلْاَعْلَامُ بِحُکْمِ عِیْسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ کښې هم تواتر او اجماع مذکور ده ، صحیح الکرامة ص۲۲۳ کښې امام شوکاني رح یو کم دیرش احادیث د عیسیٰ علیه السلام د نزول په باره کښې ذکر کولو نه پس د تواتر او اجماع ذکر شوید ے ، دغه رنګ حافظ ابن حجر په تَلْخِیْصُ الْحَبِیْرِ کتاب الطلاق کښې لیکلي دي، اَلْاِجْمَاعُ عَلٰی اَنَّهٗ رُفِعَ بِبَدَنِهٖ حَیًّا، یعنې په دے اجماع ده چه هغه سره د بدن نه ژوندے پورته کړے شوید ے ،

دارنګ په رفتح الباري، کښې د ادریس علیه السلام د ذکر سره د حضرت مسیح علیه السلام په نزول اِجماع منقول ده ، دغه رنګ په تفسیر ابنِ کثیر کښې د نزول تواتر صفا بنکاره کړے شوید ے ، داشان

(۱) مرزا غلام احمد، براهین احمدیه ص۴۹۸ کښې د حضرت مسیح علیه السلام د دُ سني ژوندون او د دوباره راتلو تصریح کړید ه او دا کتاب د ده د اِقرار مطابق هغه وخت لیکلے شوے دے چه هغه پخپل خیال کښې نبي وو ( ایام الصلح ص۷۵ )

(۲) مرزا غلام احمد براهین احمدیه حاشیه ص۵۰۵ کښې د اِنَّ مُحَمَّدًا ثُمَّ عُدْنَا، په تفسیر کښې لیکي، چه په دے کښې د مسیح علیه السلام په جلالي انداز راتلو ته اشاره ده ، کچرے نرمي نه قبلوله ، نو هغه زمانه هم راتلونکے ده چه مسیح علیه السلام به سره د جلالت په دنیا راکوزشي او جلال الٰهي به ګمراهي نیست او نابود کړي ، څنا زمانه د هغے زمانے د پاره د ارهاص په توګه واقع شوید ه ::

(۳) مرزا غلام احمد په براهین ص۴۹۸ کښې، د هُوَ الَّذِیْ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ تفسیر داسے بیانوي چه هرکله حضرت مسیح علیه السلام دویم ځلی د دے دُنیا ته تشریف راوړي نو د هغوی په لاس به دین اسلام

په تولو آفاقو او اقطارو کښې خور شي. (۴) مرزا غلام احمد په ازالهٔ اوهام ص۲۲۵ کښې لیکي چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم عمرؓ د قتل نه منع کړو او وې فرمائيل کچرې دا دجال وي نو دهٔ صاحب عیسیٰ علیه السلام بن مریم دے هغه به ئې قتلوی موږ هٔ دے نشو قتلولے

د مسیح علیه السلام د ژوندون او د هغه د نزول په مسئله به موږ د قرآن، حدیث، تاریخ، او عقل په رنړا کښې مختصر بحث کوو. د اجماع په رنړا کښې موږ په دے مسئله بحث اُکړو.

## د مسیح علیه السلام ژوندون د قرآن په رنړا کښې

(۱) وَمَكَرُوا وَمَكَرَ اللّٰهُ ۖ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ آل عمران آیة ۵۴: یهودو د حضرت مسیح علیه السلام په خلاف چل اُکړو او الله د هغه د بچ کولو چل اُکړو، د الله چل د ټولو چلونو والو نه ډیر ښه دے مرزا صاحب د دے آیت دا مطلب بیان کړیدے (یهودیانو د حضرت مسیح علیه السلام د پاره د قتل او سولئ چل جوړ کړے وو، خو دا خدائے تعالیٰ مسیح علیه السلام ته وعده ورکړه او وے وئیل چه تا به زهٔ خپل ځان ته راپورته کړم، (اربعین جلد دریم ۲ ص۷)

بیا په آئینه کمالات ص۲۳۰ و ۲۶۷ کښې لیکي چه د وعدے الفاظ دلالت کوي چه هغه ډیره زړه پوره کیدونکے ده) بیا مرزا صاحب په ازالهٔ اوهام ص۲۸۰ کښې لیکي چه بیا دَدے نه پس ئې هغه علیه السلام د هغوی (یهودو) په حواله کړو. په چابکونو اُ وهلے شو، کنځل آوریدل، سپیرے خوړل ئې تو ئې مسخرے ورپورے کیدل هغه اُلیدل آخر ئې په سولئ اُ خیژولو، دا مرزائی تفسیر یوازے بے دلیله او تحریف د قرآن نه دے بلکه یو لوئے بهتان دے او د ذات الٰهی د شان هم خلاف دے د مرزا په قول یهودو د حضرت مسیح علیه السلام خلاف چل اُکړو او الله پاک د



د هغه د بچ کولو چل اُکړو او بیا یهودو هغه په چابکونو او کړوپوا وهلو کنځل ئې هم ورته اُکړل تو ئې مسخرے ئې هم ورپورے اُکړے په سولئ ئې هم اُ خیژولو، او بیا هم قرآن دا اُ وئیل چه الله خیر الماکرین دے، دده چل ډیر ښه او کامیاب شو، کچرے د مرزائی تحریف دا دغا نه جوړه کړے شي تو ئې هم اُ منلے شي چه د سولئ نه راکوز ولو په وخت یهودو هغه مړ اُ گڼړلو، لیکن آخري سلگئ ئې پاتے وے چه په علاج کولو ښه شو بیا کشمیر ته لاړو او ډیره موده پس په خپل مرگ مړ شو خو بیا هم د دهٔ د مرگ په لاره کښې د یهودو غلط فهمي یو ښه جوړ شو او نه څه عجیبه واقعه اُ شوه.

په ذکر شوی آیت کښې د روح الله د حفاظتي تدبیر د یهودي چل سره د مقابله کولو کښې د الله د تدبیر د پوره کامیابئ او لویئ بیا نول مقصود دی، لیکن د مرزا په تفسیر کښې د دے وعدے الٰهي سره هم یهودو په ټوله حضرت مسیح علیه السلام سره هر هغه څه اُکړل کوم چه هغوی غوښتل او بیا هم د مرزا په قول تدبیر الٰهي او د هغه وعده پلنه او کامیابه شوه، مرزا په دے شان د حضرت مسیح علیه السلام او د قرآن والاحد ئې د یهودو په مقابله کښې توهین او تذلیل اُکړو،

کچرے د ماغو کښې کوږوالے او الحاد نه وے نو د آیت مطلب صفا دے چه یهودو د حضرت مسیح علیه السلام خلاف چل اُکړو چه هغه بیعزته شي او سولئ ته اُ خیژولے شي، لیکن د الله تدبیر د هغه د بچ کولو وو، لهذا د الله پاک تدبیر غالب شو هغه ئې آسمان ته پورته کړو او یهودو د هغه یو ویښته هم کوږ نکړو، خوالسؓ سوو کالو نه خود قرآني علومو ماهرانو صحابهؓ او تابعینو رح وغیره د آیت نه دا مطلب واخستو لیکن په څوارلسم صدۍ کښې د مسیحیت د کان برا نستو والا دا نا معقول"

وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا (سورة ال عمران آية ۵۵)
يعنې زه به د منكرانو نه تا او ستا مور بي بي پاک كرم، لكه چه دا انتظام د قرآن او د محمد رسول الله په ذريعه اُكړے شو، د عيسىٰ عليه السلام او د هغوى د والده ئے ژوند بے داغه وو ے،

(۴) يو پريشاني دا هم وه چه څما د پوره تړكولو پس به څما د تابعدارو څه حال وي، نو الله تعالىٰ اُفرمائيل، وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ (سورة ال عمران آية ۵۵) چه تر قيامته به ستا تابعداران ستا په منكرانو غالب وي، دا وعده نن هم حقيقت دے، د اسرائيل وجود په دے وعده څكه اثر نه اچوي چه قرآن پخپله د يهودو د ذلت او مسكنت دوه استثنائي صورتونه بيان كړيدي، يو دا چه يهود مسلمانان شي او د اسلام په پناه كښ راشي، او دويم دا چه د يو قوم (عيسائي) په پناه كښ راشي، إِلَّا بِحَبْلٍ مِنَ اللَّهِ وَحَبْلٍ مِنَ النَّاسِ (سورة ال عمران) اُس د اسرائيل مرجود دے نو په دويم استثنائي صورت كښ ځكه چه دوى د برطانيه امريكے او نورو عيسائي قومونو پناه اخستو په وجه موجود دي د يهودو اقتدار او قوت د عيسايانو په آسرا قائم دے ليكن د مسلمانانو اقتدار د عيسايانو د آسرے حاجتمند نه دے خواه امريكه وي او كه روس وغيره دوى د محتاج دي نو خپل منځو كښ د اتفاق لكه الله تعالىٰ فرمائي ،
وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا (سورة ال عمران) ؛
او بل د سامانِ قوت تيارولو، لكه چه فرمائي وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ ۵ هر كله چه مسلمانان متحد شي او خپل مشترک دولت په قوت جمع كولو كښ صرف كړي، نو مسلمانان نه بيا هيڅوک شكست نشي وركولے، خو هله چه په حبل الله او اسلام باندے عمل



كوي نه چه مغربيت ته كچكول اُنيسي او په اسلام كښ تحريف اُكړي د يورپ د قوت راز هم اسلامي اجزاو باندے عمل كول دي، لكه سامان د قوت جمع كول څكوندي هسے خو په غير اسلامي اجزاؤ باندے عمل كولو په وجه دوى ديره كمزوري شويدي، غير اسلامي اجزاء دا دي چه دوى خدائے او آخرت هير كړيدي، د پيغمبرانو عليهم السلام اخلاقي قدرونه ئے د خپل ژوندا و تهذيب، تمدن نه خارج كړيدي، د نسل او وطن غوندے بتانو عبادت كوي، زنا، لواطت، جوارئ شراب نوشي، سود، عياشي مغربي طاقتونه دومره كمزوري كړيدي چه دوى د وجے نه بر طاقت د كوريا او ويت نام غوندے ډير معمولي طاقتونو دلاسه و هلے كيږي اُس خو تو ئے ته جوړ شويدي خو تو بہ ئے نه قبليږي دا د مغرب زده مسلمانانو بد قسمتي وه چه د دوى كمزوري ذهنونو دوى لره د سامان قوت په پرينودو (چه اسلامي جزء دے) او د هغوى اخلاقي كمزوري په ځان كښ په دا د ستورچه غير اسلامي جزء دے مجبوره كړل او په خپل لوئے قوت (اسلام) كښ ئے تحريفونه اُكړل او كوي، او د يورپ خطرناک شيطاني تهذيب په ځان كښ راولي،

۲- وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا ۝ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۝ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ

د يهودو په زړونو د هدايت د بنديز مهر لګيدلے دے د دوى د كفر په وجه او په حضرت مريم باندے د غټ بهتان ترلو لو د پورے كولو) په وجه او په دے وجه چه دوى وائي چه مونږ د خدائے رسول عيسىٰ څوئے د مريم بي بي وژلے دے حالانكه نه دوى هغه قتل كړے دے او نه ئے په سولئ كړيدے مګر

عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ۝ (سورۃ النساء آیة ۱۵۶ تا ۱۵۹)

شک کښې پرېوتي دي او د حضرت عیسی علیه السلام متعلق چه دوی اختلاف کولو نو هغه شک کښې دي دوی یقیناً حضرت عیسی علیه السلام نه دے قتل کړے، بلکه الله تعالی هغه خپل طرف ته پورته کړے دے، هغه غالب او حکمت والا دے، د اهل کتاب هیڅ یو به هم داسې نوی خو ایمان به راوړي د هغه د مرګ نه مخکښې او د قیامت په ورځ به هغه په دوی ګواه وي.

په دے آیت کښې څو څیزونه بیان شوي دي،

(۱) یو دا چه حضرت عیسی علیه السلام نه قتل شوے دے او نه په سولۍ خیژولے شوے دے، څوک چه د قتل او د سولۍ قائل دي، هغه ښکاره غلط دي، ځکه چه قرآن شریف ښکاره دده رد کړو، د مرزا یا نو یا د مېرزا داوینا چه په سولۍ خیژولے شوید ے، لیکن هلته نه دے مړ شوے نو دا خبره هم لکه د یهودو او انصاریو د قرآن نه خلاف ده وَمَا صَلَبُوْهُ، دا معنی کول چه په سولۍ اُخیژولے شو خو په سولۍ مړ نشو د عربو د لغت نه خلاف ده، د (صَلَب) معنی په سولۍ خیژول او د مَا صَلَبَ معنی په سولۍ نه خیژول دي دا خو قطعاً د قرآن تحریف دے چه د مَا صَلَبُوْهُ، دا معنی اُشي چه یهودو حضرت عیسی علیه السلام په سولۍ اُخیژولو خو هلته مړ نشو،

(۲) په آیت کښې د مَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا، نه پس اُفرمائیل، بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ یعنی حضرت عیسی علیه السلام قتل نشو او الله پاک خپل طرف ته پورته کړو، په مَا قَتَلُوْهُ، او بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ) دواړو کښې ضمیر (ه) حضرت عیسی علیه السلام ته راجع دے او عیسی د روح او جسم دواړو نوم دے مطلب دا چه روغ رُوح سره د جسمه پورته اُخیژولے شي ځکه چه د



په نتیجه کښې جسم بے روحه پاتے شي نو د عدم قتل مطلب به جسم سره د روحه پورته کول وي، علاوه له دے (رفع) د عیسی علیه السلام نه مطلب هغه ټول د رُوح او جسم دواړو (رفع) اُچتول دي قرنو چه د دے خلاف بله قرینه نه وي، لکه د وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ، دا مطلب دے چه حضرت یوسف علیه السلام خپل والدین (رُوح سره د جسمه) تخت ته پورته کړل نه دا چه یوازے رُوحونه د هغوی ئے پورته کړل،

(۳) بیا چرے د عیسی علیه السلام رُوحانی پورته کول مراد واخستے شي، نو دا په څو وجو غلط دي،

① یو وجه دا ده چه بے له قرینے مجاز مطلب اخستل غلط دي، -

يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ، کښې د دَرَجٰتٍ، په قرینه دیني پورته کول مراد دي جسماني پورته کول نه دي مراد لکه څنګه چه په وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ، کښې "دَرَجٰتٍ" په قرینه د رفع مجازی مراد ده،

بله وجه په وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ، کښې د رفع رُوحانی رفع په دے معنی مراد اخستل چه یهودو قتل نه کړو خو خدائے د هغه درجه بلنده کړه غلط ځکه ده چه عیسی علیه السلام دے نه وړاندے مخلوبیت کاله پیغمبر وو او د پیغمبري نه بله اُچته درجه نشته نو درجے اُو چتولو دلته بیا هیڅ مطلب نه راأوزي او د الله کلام دے نه پاک دے،

(دے نه علاوه په عربي ژبه کښې (بَلْ) د دوه مقابل څیزونو د پاره استعمالیږي، کچرے دا معنی دلته واخلو چه عیسی علیه السلام په سولۍ نکړے شو خو مرتبه ئے الله تعالی بلنده کړه نو مقابله را نغله او د (بَلْ) استعمال به غلط وي چه د الله کلام له دے پاک دے مقابله به هله راتله چه داسے وئیلے شوے وے چه یهودو په سولۍ کړو خو الله تعالی ئے

درجه بلنده کړه ځکه چه یو مؤمن یا پیغمبر قتل شی نو الله تعالیٰ هغه له د شهادت رُتبه ورکړی، او په دا سے به د "بَل" استعمال هُم صحیح شوے وے دلته د مرزا یانو دا توکړے د: بے ځایه دی بلکه تحریف دے، (چه د ربائیبل) په مُوجب (په سُولئ مړے سړے ملعُون وی، نو د "بَل" په تقاضا مقابله به دا سے جوړیږی چه الله تعالیٰ د سُولئ د قتل نه بچ کړو کوم چه لعنت وو، او د هغه په مقابله کښ ئے ورله درجه بلنده کړے نو مقابله هم راغله او مُراد هم پوره شو، زه وایم چه دا خو د بائبل د روح او غلط ځکه ده چه د بائبل کښ ئے هغه سولئ شوی سړی ته ملعون ویلی دی کوم چه د جُرم کښ په سُولئ شی او کوم چه ناحق سولئ شی نو هغه شهید وی، نو د مرزائیانو د غلط خیال مُطابق په دے کښ بیا مقابله نوت کیږی او هسے اړتو پړتو ترجوړیږی او دا سے نسبت د الله کلام ته کول د هغه توهین دے "اَعَاذَنَا اللّٰهُ"؛

دریمه وجه دا ده چه رُوحانی رفعُ الله تعالیٰ هر نبی ته ورکړے وو، خصوصًا د نبو او نبیا نه رفعِ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم ته ورکړے شوے وو، نو د عیسیٰ علیه السلام خصوصیت په دے صُورت کښ نه وو، دلته خصوصیت د رفعِ صفا ښکاره کوی چه د رفع نه مُراد رفع جسمانی ده کومه چه خاص ده عیسیٰ علیه السلام سره یا چه د چا رفع جسمانی شوی وی، څلورمه وجه دا ده چه دے رفع نه پس په قرآن کښ "وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ۝" الفاظ راغلی دی کوم چه د بل نبی د پاره په دے انداز کښ نه دی راغلی نو دے نه هم معلومیږی چه رفع جسمانی مُراد ده په کومه کښ چه قُدرت او قُوّت ښکاره کول هم مُراد دی چه لفظ د "عَزِيزًا" پرې دلالت کوی او د حکمت اظهار هم دے چه لفظ د "حَكِيمًا" ؤ پرې دلالت کوی، او دا بیان به اُس مُونږ لږ وخت پس کوؤ،



دویمه خبره چه آیت نه معلومیږی هغه دا ده چه د اهل کتابو ټولے فرقے به د عیسیٰ علیه السلام د وفات نه وړاندے په هغه ایمان راوړی کوم به چه د نزولِ قرآن نه پس زمانه کښ هغه وخت وی چه هغه دوباره له آسمانه راکوز کړیشی، "بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ" نه صُعُود ثابت شو نو په دے آیت کښ د واړه (صُعُود او نُزُول) ثابتیږی، تشریح ئے دا سے ده "وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ" نه دا ثابتیږی چه هر فرقه د اهل کتابو به پرِ ایمان راوړی، د هغه د وفات نه وړاندے ځکه چه د (بِهٖ) او (مَوْتِهٖ) د واړه ضمیرونه (ه) حضرت عیسیٰ علیه السلام ته راجع دی (لَيُؤْمِنَنَّ) کښ نونِ تاکید ثقیله دے چه هغه د مضارع صیغه مستقبل د پاره مخصوص کوی، نو مطلب به ئے دا شی چه د اهل کتابو ټولے فرقے به د قرآن د نزول نه پس هغه وخت په عیسیٰ علیه السلام ایمان راوړی کله به چه هغه د آسمان نه راکوز کړے شی،

هم دا وجه ده چه صحیحینو کښ د حضرت عیسیٰ علیه السلام د نُزول حدیث مرفوع روایت کولو نه پس ئے د حدیث راوی ابو هریرة رض فرمائی "فَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ" د کته دا ښودل مقصُود دی چه اهل کتاب به په عیسیٰ علیه السلام د هغه د آسمانه د نازلیدو نه پس په هغه ایمان راوړی، دا مسئله خالص نقلی ده په عقل نه معلومیږی په دے وجه د ابو هریرة رض موقوف حدیث د مرفوع حکم لری مطلب دا چه حضُور علیه السلام نه به ابو هریره رض ضرور آوریدلی وی، چه ټول اهل کتاب به خامخا په عیسیٰ علیه السلام د هغه د نزول آسمانی نه پس ایمان راوړی، د (موته) ضمیر (ه) کتابی ته راجع کول صحیح ځکه نه دی چه انتشار د ضمائرو د بلاغت له شانه خلاف دے، دویم (د موته) قید به عبث اوکړ بلاغت له شانه خلاف ځکه وی، چه معنیٰ به ئے دا رنګ ده

چه هرکتابي به په عیسیٰ علیه السلام د خپل مرګ نه وړاندے ایمان راؤړي، ایمان راؤړل خوي د مرګ نه وړاندے، نو دا قید لګول بیا عبث شو، او که څوک پرے زور لګوي، نو دا بنکاره کول په ضروري شي چه ... دا سے وینا نه خوښوي، چه ما دو دیٔ د مرګ نه وړاندے اُخوړه او ما اُوبه د مرګ نه وړاندے اُڅښلے) ځکه چه د دے قید لګولو ضرورت په ... نشته چه هرکس پوهیږي چه خوراک څښاک د مرګ نه وړاندے کیږي د مرګ نه رُستو خو دوئ چا نه دي خوړلے، که څوک بیا هُم زور لګوي او وائي چه د ځنکدن په حالت کښ به ایمان راؤړي نو دا ایمان منظور نه دے، هرکافر د ځنکدن په وخت کښ ایمان راؤړي خو منظور یږي ... نو تخصیص د عیسیٰ علیه السلام پاتے نشو او داسے نا منظور ایمان د ... د قُرآن او د الله د شان سره مُناسب نه دے دا سے تاویلات ... سائل ته کار دي الله دِ توفیق ورکړي.

(۴) وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ۝ وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطَانُ ۖ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۝ (الزخرف آیة ۶۱، ۶۲) | حضرت عیسیٰ علیه السلام د قیامت نښه ده، نو قیامت کښ شک مه کوئ او زما تابعداري اوکړئ هم دا سیده لار ده، شیطان تاسو د سے ... مه منع کوي، بیشک هغه ستاسو ښکاره دُشمن دے.

د دوؤ وجو نه عیسیٰ علیه السلام د قیامت نښه اُوبلل شو، یو د هغه بغیر پلاره پیدائش چه د مړو دوباره ژوندي کولو دلیل کیدے شي دویم قیامت سره نزدے د آسمانه د هغه نزول چه د قرب قیامت نښه ده، د سیاق سباق مُطابق د (اِنَّهٗ) ضمیر (هٗ) عیسیٰ علیه السلام ته راجع دے نه بغیر هر یو بله رائے ضعیفه ده، ابن ماجه ص ۳۰۹ باب فتنه الدجال کښ د حدیث اسراء په تشریح کښ حضرت عیسیٰ ...



د قیامت سوال اُوشو نو هغوي اُفرمائیل، چه د هغے د واقع کیدو وخت سوا د الله نه بل څوک نه پیژني او څه وخت چه د دجّال ذکر اُشو نو وے فرمائیل چه ګ... به راکوزیږم او هغه به وژنم، د دے آیت په تفسیر کښ ابن جریر رح د حضرت عیسیٰ علیه السلام د قیامت نه وړاندے نزول د ابن عباس رض، ابي مالك رح، عوف رح، مجاهد رح، قتاده رح، سدي رح ضحاك رح او ابن زید رح د روایاتو نه نقل کړیدے چه د هغوي علیه السلام د نزول دلیل دے، او د دے نزول په وجه په دے آیت کښ ده ته د قیامت نښه ویلے شوے ده او دا صحیح معنیٰ ده، کچرے بغیر پلاره پیدائش نښه د قیامت ده، نو د دے حقدار د ټولو نه زیات حضرت آدم علیه السلام وو چه د هغوي پیدائش د مور او پلار د واړو نه بغیر شوے وو، معلومه شوه چه دلته په آیت کښ د نښے د قیامت مطلب قیامت ته نزدے د حضرت عیسیٰ علیه السلام د آسمانه نازلیدل دي، او که څوک په د ے عقیده کښ خنډ ان پیدا کوي نو هغه شیطان دے.

(فَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطَانُ) ئے دلیل دے.

(۵) إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ (آل عمران آیة ۴۵) (هغه وخت یاد کړئ) چه فرښتو اُوئیل اے مریمے بیشک الله تا ته زیرے درکوي د یو کلمے چه د الله له جانبه وي، د هغه نوم به مسیح عیسیٰ ابن مریم وي با عزت به وي په دُنیا او آخرت کښ او د مقربینو له ټولي به وي ... آیت کښ دا ویلے شوي دي چه عیسیٰ علیه السلام د مقربینو د ټولي نه به وي، په بل ځائے (سورة واقعه) کښ د جنتیانو په باره کښ داسے بیان دے (أُولَٰئِكَ الْمُقَرَّبُونَ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ) په دریم ځائے د ملائکو په باره کښ داسے راغلي دي.

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ۝ : مسیح علیہ السلام د الله په بنده کیدو نه شرمیږی او نه مقربې فرښتې شرمیږی، دے د رسه دا پوهه ایزلو کښ د قرب نه مرا د جسمی جسمی او آسمانی قرب مراد دے همدا وجه ده چه د دے آیت په تفسیر کښ امام رازی رحمه الله تعالیٰ په تفسیر کبیر کښ او ابوالسعود رح په خپل تفسیر کښ د حضرت عیسیٰ علیه السلام آسمان ته پورته کیدل د جسم سره ذکر کړیدی او مدارک خازن، سراج المنیر او کشاف کښ دی، وَكُوْنُهٗ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ د حضرت عیسیٰ علیه السلام د مقرب کیدو مطلب د هغه آسمان ته پورته کول د فرښتو ملګرتیا ورته حاصلیدل او بیا د نورو امورو تکمیل د پاره د هغه علیه السلام زمکے ته را نازلیدل لکه نکاح، حج، جهاد کولو او د مسیحی قومونو فتنو ختمولو لو ز کولو د پاره:

## د مسیح ژوندون او نازلیدل د حدیث په رنړا کښ

بخاری کښ ابوهریرة رض د حضور علیه السلام نه حدیث نقل کوی، فرمائی رقسم م ... د په خدائے وی چه علیه السلام به د پور ته نه په تاسو کښ نازلیږی د حضرت مریم خوئے چه حاکم به وی، انصاف دار صلیبی قوت به مات کړی او د خنزیر د قتل حکم به ورکوی او د ټولو خلقو د مسلمانیدو په وجه به د جهاد ضرورت پاتے نشی، او خلقو ته به دومره مال ورکړی چه څوک قبلولو والا به نه وی، او د عبادت شوق به دومره زیات شی چه خلقو ته به یوه سجده د ټولے دُنیا د دولت نه دیره ښه ښکاریږی، بیا ابوهریرة رض د دے تصدیق د پاره دے آیت ته توجه ورکړه چه د هغے معنیٰ دا ده په دے وخت کښ به داسے یو کتابی پاتے نشی چه په عیسیٰ علیه السلام به ایمان را نوړی د مرزا د قول مطابق قرآن نه پس د ټولو نه د صحیح کتاب بخاری حدیث دی۔



دویم حدیث دا دے، چه حضور علیه السلام اُفرمائیل د عیسیٰ علیه السلام په مینځ کښ نبی نشته او د هغه به راکوزیږی، چه څه وخت ئے اووینئ نو وے پیژنئ، د هغه قد درمیانه سور سپین دے، دوه زیړ جامو کښ به راکوزیږی د سر ویښتو به ئے معلومیږی چه ګویا کښ اوبه ترے را څاڅی اګر چه اوبه ورته نه وی رسیدلے، نو په اسلام به خلقو سره جهاد کوی، صلیبی قوت به مات کړی، د خنزیر د قتلولو حکم به ورکوی جزیه به بند کړی، په دے وخت کښ به د اسلام نه بغیر ټول دینونه ختموی، دجال به قتل کړی، په زمکه به څلویښت کاله اُسیږی او بیا به وفات شی او مسلمانان به پرے د جنازے مونځ اُکړی (ابوداؤد عن ابی هریرة رض مرفوعًا جلد ۲ ص ۲۳۸)

(۳) په مشکوٰة باب نزول عیسیٰ ع کښ عبدالله بن عمرو د حضور علیه السلام نه نقل کړیدی چه ابن مریم ۲ به په زمکه راکوزیږی واده به کوی اولاد به ئے کیږی په زمکه به پنځه څلویښت کاله پاتے کیږی او بیا به فوت کیږی او دفن کیږی به زما په مقبره کښ نو قیامت کښ به زه او عیسیٰ علیه السلام د یو مقبرے نه پاسو چه د ابوبکر رض او عمر رض په مینځ کښ به وی،

(۴) په صحیح مسلم کښ روایت دے حضور علیه السلام فرمائی، چه حضرت عیسیٰ علیه السلام به د دمشق په مشرق کښ په سپینه مناره په دوو جامو کښ د دوو فرښتو په مینځ کښ راکوزیږی، دواړه لاسونه به ئے په فرښتو ایښی وی، دجال په "لُدّ" دروازه بیا مومی او وے به ئے وژنی:

د مسیح علیه السلام په ژوندون آیتونه ډیر دی او احادیث د تواتر حد ته رسیږی چه د بوکم دیرشو صحابه کرامو نه منقول دی لیکن مونږ د اختصار په غرض په پنځو آیتونو او څلورو احادیثو اکتفا اُکړه، حضور علیه السلام په دے احادیثو کښ د ایمان د تحفظ او د ګمراهئ نه د بچ کولو د پاره د حضرت

مسیح علیه السلام چه کومې نښې نښانې ذکر کړیدي هغه کافي شافي دي۔
او کوم ګمراهانو چه د استعارو او مجازاتو په زور د پوره تاریخ او یو دنیا بدلول
شي: نو هغوی د پاره د قرآن او حدیث پوره دفتر هم بیکاره دے. په دے
احادیثو کښې د حضرت مسیح موعود علیه السلام د پیژندلو چه کومې ښکارې
نښې نښانې دي هغه په نمبروار دي،

(١) د مسیح موعود علیه السلام به پلار نه وي، نو د عامو ضابطې خلاف به
هغه خپلې مور بي بي مریم ته منسوب وي۔ د مرزا غلام احمد پلار مرزا
غلام مرتضی وو او د مور نوم ئې ممتاز بي بي وو۔ د هغه نسبت به پلار ته
کیدو او مور ته نه۔

(٢) هغه به حاکم وي لیکن مرزا غلام احمد د انګریزانو غلام وو،

(٣) هغه به عادل وي، د الله تعالی قانون چلول عدل دے، د مرزا
په وخت کښې شرعي قانون بند وو، او د انګریزانو قانون په ډاګه او د ده
په مریدانو جاري وو،

(٤) حضرت عیسی علیه السلام به صلیبي قوت ماتوي خو د مرزا په
وخت کښې صلیبي قوت دومره زور اخستو کوم چه دے نه وړاندے
چرے هم نه وو۔ خپله د ده اقرار دے چه پلار ته ئې پنځو د آسونو سواره
ورکړے شوي وو او هغه د ۱۸۵۷ء په تحریک د آزادئ کښې په هندستان
د صلیبي قوت مستحکمولو د پاره جنګ کړے وو، او په تحفهٔ قیصریه کښې مرزا
خپله د خپلو او د مقصد دا ښکاره کړے دے، چه زه د انګریز صلیبي
حکومت د پاره برداسے فوځ تیار کړم چه د انګریز حکومت وفادار وي،

(٥) د حضرت عیسی علیه السلام په وخت کښې به د خنزیر خوراک ختم شي
لیکن د مرزا په وخت کښې دا زیات شو۔

(٦) حضرت عیسی علیه السلام به په خلقو دومره مال ورکړي چه خوک به ئې



قبلولو ته نه وي، مرزا خو هیڅ چاله مال ورنکړو، بلکه خپله ئې اغستو
چنده اغستل ئې عام کړل او د بهشتي مقبرے د پاره ئې چنده غونډول
د ایمان یو شرط اوټاکلو۔

(٧) د عبادت خوند به د عیسی علیه السلام په وخت کښې دومره زیات
شي چه د یو سجدے قیمت به د خلقو په نظر کښې د ټولے
دنیا نه زیات وي لیکن د مرزا په وخت کښې عیسایانو مسلمانانو د
لکهونو په شمیر کښې مرتدان کړل۔

(٨) حضرت عیسی علیه السلام به د آسمان نه په زمکه راکوزیږي
لیکن مرزا په زمکه پیدا او هم په زمکه پاتے شو۔

(٩) په فرښتو به حضرت عیسی علیه السلام لاسونه اینښي وي
لیکن د مرزا په نصیب کښې د یو فرښتے لیدل هم نه وو،

(١٠) عیسی علیه السلام به د دمشق په سپینه مناره راکوزیږي،
لیکن د مرزا په نصیب کښې د یو عرب زمکے لیدل هم نه وو،

(١١) حضرت عیسی علیه السلام به لګی شي په (باب لُدّ) به یهودي
دجال قتل کړي، لیکن د مرزا په قسمت کښې نه خو (لُدّ) لیدل وو او
نه د دجال، البته د ده روحاني اولاد د دجال قوم یهودو سره تعلق په
دے وخت پیدا کړو، چه د عالم اسلام نه د دوي تعلق ختم دے، خبره
دا سے معلومیږي چه د دجال په ظاهریدو به دوی د هغه مدد
د پاره د غلته د اُسره موجود وي:

(١٢) د عیسی علیه السلام په وخت کښې به یو باطل دین هم پاتے نشي
لیکن د مرزا په وخت ټول باطل دینونه په جوش وو
او د اسلام خلاف نور نوي دینونه را پر سیره شو چه په هغې کښې
د هغه د مرزائیت هغه دین هم دے کوم چه د اسلامي یو والي په خلاف

ایتم بم دے (۱۳) حضرت عیسیٰ علیہ السلام بہ حج کوی، لیکن نن مرکہ دَ مرزا حج نصیب نشو۔

(۱۴) دَ حضرت عیسیٰ علیہ السلام بہ آسمان نہ پورتہ کیدو نہ وړاندے نہ واده وی او نہ ئے اولاد بلکہ دَ نزول نہ پس بہ واده کوی او اولاد بہ ئے کیږی، لیکن دَ مرزا دَ نبوت دَ دعوے نہ وړاندے واده هم وو او اولاد هم وو۔

(۱۵) حضرت عیسیٰ علیہ السلام بہ جهاد کوی او جزیہ بہ بندہ کړی لیکن مرزا دَ جهاد کولو پہ ځائے جهاد کولو تہ حرام اُویلے۔

او دَ نصارٰے دَ استعمار لارے صفا کړه او دَ جزیئے بندولو هیڅ سوال پاتے نشو۔

(۱۶) دَ عیسیٰ علیہ السلام پہ وخت کښے دَ ټولو خلقو یو دین یعنی اسلام بہ وی، نو پہ دے وجہ اسلام سره دَ هیچا یو مذهب جنگ بہ نشی کیدے لیکن دَ مرزا پہ وخت کښ کفر و باطل مذهبو نو دَ هندوستان ترکی، فلسطین او شمالی افریقے پہ مسلمانانو کوم ظلمونہ چہ اوکړل دَ هغہ مثال پہ تاریخ کښ نشتہ او دا دَ مرزا برکت کیدے شی۔

(۱۷) دَ عیسیٰ علیہ السلام پہ وخت کښ بہ امن قائم شی او جنگ بہ ختم لیکن دَ مرزا پہ وخت کښ ځہ چہ دَ هغے نہ پس دَ امن و امان نوم او نښہ پاتے نشوه او دَ جنگ دَ پاره هغہ دَ سلے او سامان جوړ شو چہ دَ مرزا دَ وخت او دَ هغے نہ پس دیو جنگ بربادی دَ ټیر شوو سوُونو جنګونو دَ بربادی نہ زیاتہ ده۔

دَ دے ټولو نښو نښانو پہ رڼا کښ دا ډیرہ پہ حقہ ده چہ مرزا دَ مسیح موعود ضد دے۔ لیکن دَ مجازا تو استعمارا تو او تاویلا تو پہ زور قرآن حدیث تاریخ او واقعا تو پوره چہ مرزا کوشش اکانے او پوتے اکړے



د هغے پہ موجب هیڅ یو حقیقت نشی پاتے کیدے دا څومره دافسوس خبره ده چہ دَ مسیح موعود علیہ السلام ټولے نښے نښانے پہ دا سے یو سری (میرزا) ورد... اُ تپلے شی چہ نہ ئے خپل قوم نہ ئے دَ قوم نہ دَ هغہ مکان نہ دَ نزول مقاصد مسیح موعود علیہ السلام سره سموُن خوری، پہ دا سے بے سره او پینو تاویلو نو خود ټولو بادشاهیچ یو نظام دَ کار او فائدے نشی پاتے کیدے۔

## شیخ اکبرؒ او دَ عیسیٰ علیہ السلام ژوندُون

شیخ اکبرؒ پہ فتوحات مکیہ باب صـ ۳۶۷ کښ لیکی:

فِیْ حَدِیْثِ الْمِعْرَاجِ فَلَمَّا دَخَلَ بِجَسَدِهٖ فَاِنَّهٗ لَمْ یَمُتْ اِلَی الْاٰنَ بَلْ رَفَعَهُ اللّٰهُ اِلٰی هٰذِهِ السَّمَآءِ وَاَسْکَنَهٗ بِهَا وَحَکَّمَهٗ فِیْهَا وَهُوَ شَیْخُنَا الَّذِیْ رَجَعْنَا عَلٰی یَدِهٖ وَلَهٗ بِنَا عِنَایَةٌ عَظِیْمَةٌ وَلَا یَغْفُلُ عَنَّا سَاعَةً وَاَرْجُوْ اَنْ اُدْرِکَهٗ فِیْ نُزُوْلِهٖ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰی ؛

دمعراج پہ حدیث کښ دی چہ هغوی داخل شو نو عیسیٰ علیہ السلام سره دَ جوسے ورسره ملاقات اُ کړو ځکہ چہ هغوی علیہ السلام لا مړ ندے بلکہ الله تعالیٰ هغوی علیہ السلام دے آسمان تہ پورتہ کړیدی دے کښ ئے اُ سیوی او پہ دے کښ ئی دَ دوئ حکم چلولے دے دا څمونږ ټولو عزت مند دے چہ دَ هغہ پہ لاس مونږ خدائے تہ رجوع کړیدہ

دَ هغہ پہ مونږ لو یہ مهربانی ده او مونږ نہ یو گهړئ هم غفلت نہ کوی څما امید دے کہ خدائے پاک اُغو ښتہ نو څہ بہ دَ هغہ دَ نازلیدو (رذهل نہ) زمانہ بیا مومم:

## پہ تاریخی لحاظ سره دَ مسیح علیہ السلام ژوندُون

حضرت مسیح علیہ السلام حضور علیہ السلام سره دَ ټولو نہ زیات نژدے پیغمبر دے او ټول نصاریٰ او مسلمانان دَ هغوی لوئی او شخصیت منی

آسمانی ژوند د فرښتو په شان دے. هلته هغه د ځمکې د بشری خوراک محتاج نه دے، بلکه داسے خو په ځمکه هم کیدے شی چه الله اُغواړی.

(۱) طبقات شافعیه جلد ۶ صـ ۲۰۲ کښی د شیخ عزیزالدین فاروقی نه روایت دے، چه هغه په عراق کښی داسے سړے لیدلے وو چه خوراک څښاک ئے نه کولو.

(۲) امام ذهبی فرمائی ریه اندلس کښی یوه داسے ښځه وه چه د شلو کالو نه ئے خوراک څښاک نه کولو (دا واقعه مشهوره ده)

(۳) حاکم تاریخ نیشاپور کښی د عیسی بن محمد الطهمانی نه نقل کوی، چه د رحمت په نوم د یوے ښځے خاوند شهید شوے وو. هغه د غه خاوند خوب کښی داسے اُلیدلو چه د جنت طعام ئے خوړلو بیا ئے په ځیلے ښځے ته هم ورکړه هغه چه له خوبه راوېښه شوه نو ټول عُمر ئے خوراک ته حاجت پیښ نه شو.

د ذکر سوی طبقات په حواله دویم جواب دا دے چه د آسمان او ځمکے نسبت په خپل منځ کښی لکه د غرد آسمان) او د اُوری کړ داسے (ځمکے) دے هر کله چه خدائے پاک په دے وړوکی ځمکه د اربونو مخلوقاتو د خوراک انتظام فرمائیلے دے نو په آسمان کښی د یو کس د ضرورت یا نو انتظام کول هغه ته گران دی څه؟ هیچرے نه دی گران!

## ۲ - د ختم نبوت په لحاظ د حضرت عیسیٰ د نزول حکمت

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ ؕ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا

څه وخت چه الله تعالیٰ د نبیانو د عهد واغستو چه څه کتاب او علم ما درکړو او بیا تاسو ته یو لوئے رسول راشی کوم چه تاسو سره کتاب ته هم رښتیا وائی نو تاسو به په هغه ایمان راوړئ او د هغه مدد به کوئ، وے فرمائیل



قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ؕ سوره آل عمران: ایة ۸۱: چه تاسو اقرار اُکړو او په دے شرط مو خپل عهد قبول کړو؟ هغوی اُو وئیل: چه مونږ اقرار اُکړو، نو وے فرمائیل تاسو اُوس گواه اُوسئ او زه به هم تاسو سره گواه یم:

د حضرت علی او عبدالله بن عباس رضی الله عنهم د تفسیر مطابق د انبیاؤ علیهم السلام نه دا وعده د خاتم الانبیاء علیه السلام په باره کښی اغستے شوے وه گویا کښی حضور علیه السلام (نبی الأمم) او (نبی الانبیاء) هم دے د ذکر شوی آیت په موجب انبیاؤ علیهم السلام د خاتم الانبیاء علیه السلام نبوت اعتقاداً او اقراراً او د هغه نصرت (امداد بالواسطه) اُمنلو، ټولو انبیاؤ علیهم السلام د حضور علیه السلام د نبوت تصدیق اُکړو او خپلو اُمتونو ته ئے د هغه د نبوت منلو او مدد کولو تاکید اُ فرمائیلو لکه چه موسیٰ علیه السلام د تورات کتاب استثناء باب ۱۸ او باب ۲۳ کښی داؤد علیه السلام په زبور باب ۴۵ کښی، حضرت سلیمان علیه السلام په (غزل الغزلات) کښی حضرت عیسیٰ علیه السلام په انجیل یوحنا باب ۱۹ آیت ۶ تر آیت ۱۵ کښی اعلان کړیدے، اُس د دے خبرے ضرورت وو چه د دے نبی الانبیاء، عملی بالذات ظهور اُوشی، لکه په حدیث د معراج یو صورت د دے دا اُشو چه ټولو پیغمبرانو علیهم السلام ته ئے امامت اُکړو او بل عملی صورت ئے دا شو چه د دے نه د یے پیغمبر حضرت عیسیٰ علیه السلام تر آخرے زمانے ژوندے اُ ساتلے شو او بیا دغه نبی د حضور علیه السلام د یو اُمتی په شکل د دین محمدی د خدمت دپاره د آسمانه راکوز کړیشو، چه حضرت عیسیٰ علیه السلام د ټولو نبیانو

انبیاو علیهم السلام دَ یو نمائنده په ډول دَ شریعت محمدی خدمت وامداد عملاً وکړی او په دے ډول دَ حضور علیه السلام دَ پیغمبرانو دَ پیغمبری عهده واضحه کړی۔ دَ پیغمبرانو دَ پیغمبری دا عهده دَ حضور علیه السلام دَ یو پیغمبر په ذریعه عملاً ممکن نه وه ځکه نا ممکن وو چه دَ حضور علیه السلام نه پس دَ نبوت دروازه بنده ده دَ ختم نبوت او دَ پیغمبرانو دَ پیغمبری عهده دَ حضور علیه السلام بنه ښکاره کولو دَ پاره دیو پیغمبر رالیږل په ډول دَ اُمتی ضروری وو چه په نزول دَ عیسیٰ علیه السلام دا حکمتِ الٰهی مکمل شو:

نو دا خبره یقیناً صحیح شوه چه دَ عیسیٰ علیه السلام نزول دَ حضور علیه السلام دَ ختم نبوت په حیثیت دی:

## ۳۔ دَ عالمی فتنو او دَ عمومی اصلاح په لحاظ دَ مسیح دَ نزول حکمت

په دے باره کښی دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ نزول حکمتونه دا دی

(۱) ددوی دَ نزول یو مقصد دَ دجال دَ فتنے ختمول او دَ دجال قتلول دی دجال به دَ خدائی دعویدار وی، نو عیسیٰ علیه السلام به دَ توحید الٰهی قائمولو په غرض دجال په دے جرم کښی اُوژنی چه هغه به دَ الله نه سوا دَ بل چا خدائی ته خلق رابلی دَ دے بل حکمت به دَ عیسیٰ علیه السلام خپل اُمت (نصاریٰ) ته دا ښکاره کول وی چه دَ الله نه بغیر دَ بل چا دَ خدائی عقیده لوئے گمراهی دَ قتل حق اردے، ځکه چه نصاریٰ چونکه هم دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ خدائی دعوه لری نو دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ لاسه دَ (یهودی) دَ دجال او دَ یهودیانو قتلول کیدل دَ هغوی (یهودو) دَ دے دعوے تردید کول او سزا ورکول دی دَ کومے دَ مخه چه هغوی حضرت عیسیٰ ع م خپل مقتول او مصلوب گنړی:



(۳) دیوار (رحمتی) مسیح (علیه السلام) په لاس دَ بل (لعنتی) مسیح (دجال) او دَ هغه دَ مریدانو تباهی ډیره مناسب معلومیږی، مونږ وړاندے بیان کړی دی، چه حضرت عیسیٰ علیه السلام مسیح هدایت دے او بل په دے وجه مسیح دے چه دَ هغه خاص ځائے نه وو او سیاحت به ئے کولو او دا بل مسیح ضلالت دے او بل په دے وجه مسیح دے چه دَ هغه کینړه سترګه داسے رنګه لکه چه هوار لیووړ کړے شوے وی:

(۴) نوی تمدن او دَ سائنس ترقی دَ دنیا دَ تباهئ په غاړه اُدرولے ده، دا تباهی ویجاړول او غټ فسادونه په مادی قوت هیڅ رے نشی ختمیدے، که یو نیک حکومت کارخانے جورے کړی وسلے راجمع کړی نو خدائے دُشمن، فسادیان، دَ نیا تمام کَوونکی مشرقی او مغربی غټ طاقتونه په سائنسی، ایټمی، بلکه هر قسم سامانِ جنګ او تباهئ په چلولو کښی دومره وړاندے دی چه په مادی طاقت ئے دَ غه صالح طاقت (حکومت) نه شی رالاندے کولے دے دَ پاره داسے یو لوی روحانی طاقت پکار وو چه دَ هغه په یو شف او دَ دُعا په یو جمله دا ټول هرڅه تباه شی او دَ امن دوره دوره شی، دے کار دَ پاره حضرت عیسیٰ علیه السلام ځکه مناسب دے چه هغه کښی ټلور غټ خلاف عادت روحانیتونه جمع دی، هغه دروح القدس له پوکی پیدا دے دَ ژند په ژوند کښی روح القدس ورسره وو، وَاَیَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ، آسمان ته دَ روح القدس په ذریعه اُوچت کړیشو، دَ آسمانه راکوزیدو وخت به ئی دواړه لاسونه دَ دوو فرښتو په اُوږو ایښی وی: وَاضِعًا كَفَّيْهِ عَلٰى اَجْنِحَةِ مَلَكَيْنِ، دا حدیث دَ نواس بن سمعان په روایت دَ مسلم شریف دے. دَ دے ځلور خاص روحانیتونو اثر به دا دی

چه کړ ده د دُعا په یو جُمله به ټول یاجوجي ماجوجي فسادی قوتونه په خپل خپل ځای تباه شي ټوله زمکه به د دوی د مړو د ارو نه بدبُو نیه شي، په مُسلم شریف کښې د نواس بن سمعان په روایت حدیث شریف دے، چه یاجوج ماجوج به حضرت عیسیٰ علیه السلام او د هغه ملګري راګیر کړي (فَيَرْغَبُ نَبِيُّ اللّٰهِ عِيسٰى وَاَصْحَابُهٗ فَيُرْسِلُ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ النَّغَفَ، الحدیث،

حضرت عیسیٰ علیه السلام او د هغه ملګري به دُعا اُوکړي نو الله به د هغوی په څټونو کښې د کرکټونو (پوټو) یو رنځ راولي، فَيُصْبِحُوْنَ فَرْسٰى كَمَوْتِ نَفْسٍ وَّاحِدَةٍ، نو ټول به د مرو یو داسے ډیرے شي لکه چه یو سړے مړ شوے وي یو لیشت زمکه به هُم د دوي نه تشه نه وي د بدبُوئي نه به دوکه پکه وي نو الله تعالیٰ د مُختې اُوبنا نو پشان غټ غټ مارغان را اُلیږي هغوي به د غه مُردار ے چرته بل خوا یوسي،

د دُنیا ورا لوی لوی غټ ځواک د دُشمن طاقتونه د دجالي فتنه ده د کوم متعلق چه د عمران بن حصینؓ په روایت په مُسلم شریف کښې حدیث د کړے مَا بَيْنَ خَلْقِ اٰدَمَ اِلٰى قِيَامِ السَّاعَةِ (یعنی آدم علیه السلام د پیدا ئش نه تر) اَمْرٌ اَكْبَرُ مِنَ الدَّجَّالِ، (قیامته پورے د دجال د فتنے نه بله غټه فتنه نشته؛

د یاجوج ماجوج په باره کښې ذکر بکار دے چه دا څوک دے یاجوج ماجوج ته په عبرانۍ ژبه کښې (غوغ ماغوغ) او په انګریزۍ ژبه کښې (ګاګ میګاګ) وائي (عقیدة الاسلام صفحه ۲۹۰) روس او چین یاجوج دی، او برطانیه او امریکه ماجوج دی چه بعضے دے ته رکاس میکاس) او بعضو ته (چین ماچین) (ناسخ التواریخ) د آدم علیه السلام ... تاریخ

هبوطي لیکلے دے) او کله یاجوج ماجوج هر کافر ته د ویلے شي، الکه د حشر په حدیث کښې وي،

مِنْ يَّاْجُوْجَ وَمَاْجُوْجَ اَلْفٌ وَّمِنْكُمْ رَجُلٌ، یعنی په دوزخ کښې به یاجوج ماجوج زر کسان او تاسو یو کس (یو کس په زرو کښې) حافظ ابن حجرؒ او قرطبیؒ د دے تشریح کړیده، اَيْ مِنْهُمْ وَمِمَّنْ كَانَ عَلَى الشِّرْكِ مِثْلَهُمْ وَرَجُلٌ مِّنْكُمْ اَيْ مِنْ وَمِمَّنْ كَانَ مِثْلَهُمْ، ګویا کښې د زرو نه مطلب مُطلق کافر او د مِنْكُمْ نه مطلب مطلق مُؤمِنُ دے (سهدرین جوګا (ایهود) د یهودو په عقیده کښې د حدیث درجه لري په (خزائن الروم) کښې عبرانۍ خط سره موجود دے، په دے کښې نقل دی، چه، عالم به د ۶۰۰۰ نه پس یتیم شي او د هغے نه پس به د رکوک ماکوک) جنګونه وي او په دے زمانه به د ماشیح وي (م صاحب ناسخ "ماشیح مبارک" خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم ته وئیلي دي او په رعبری کماد) کښې د ماشیح) نه پس لیکلي دي چه د دے نه پس به دُنیا یتیمه بے محافظه پاتے شي، یعنی نبوت به ختم شي،

## پنځم حِکمت

پنځم حِکمت دا دے چه د موجوده دور د عالمي فتنو او د ایټم تباهۍ بانیان یهُود او نصارٰی دی، د اشتراکیت بانی کارل مارکس یهودی دے د ایټم بم جوړونکے شوپن هار "یهُودی دے" د نوی تهذیب خدائي هیرو نکے د فاسقانه معاشرے او انسان کُش سامراجیت بنیاد مسیحي طاقتونو قائم کړیدے او د تورو من هبو نو خصوصا د مُسلمانانو عقیدے او عملونه خرابونکي قومُونه هم عیسایان دی، په دے وجه ضروري وه چه د یو اسرائیلي پیغمبر (چه عیسائي قوم ئے خپل پیشوا مني) د لاسه د ده د اُمت پیدا کړي فسادونه ختم شي، غرض دا چه د عیسیٰ علیه السلام اُمت ما دی

سائنسي، ایټمي ذریعو سره کوم فساد چه دا پورته کړی دی، د آسماني تدبیر نه بغیر . د دغو طاقتونو نه د هغې د مقابلې توان نه لري په دې وجه عقل، د عیسیٰ علیه السلام راکوزیدل ضروري ګڼړي د کوم چه تدبیر الٰهي په ذرګونو کاله وړاندې فیصله کړی ده. د دې دجالي قوتونو تالي ست د اصلاح هیڅ ډیر نشي کولی کوم چه عیسائي او مسیحي د کان چلولو د پاره د دجالي قوتونو قبضه مضبوط کړې او د اسلام بتوله ګټه (د خوارلسو سوو کالو مسلمانان کافران کړي) تباه کوي:

# فائده

## د ذوالقرنین د بند متعلق

په دنیا کښې دا وخت دیر بند وو نه دي لو د چین دیوال چه دیر اوږد او پلن دی او هغه ته په منګولي ژبه کښې (ټنګوده) او په ترکي ژبه کښې (بوقورقه) وییلې شي.

دوّیم: د بخارا او ترمذ په مینځ کښې چه ورته (در بند) وییلې شي، دا د تیمور په وخت کښې موجود وو.

دریم د ځ داغستان،، بند،، دی دې ته (باب ابواب) دې او ځ در بند هم ورته وییلې شي، بستاني په (دائرة المعارف،) کښې د دې تفصیل بیان کړی دے:-

څلورم، هغه بند دې کوم چه (کاکیشیا) (قفقاز) سره په داڼیال دره کښې دے (یاقوت) په (معجم البلدان) کښې لیکلي دي چه دا ډیر مشهور تلی نه جوړ دے او دا لوړ درې د کاشرو دی بنا په دے، د قرآن د تشریح مطابق د ذوالقرنین بند هم دا څلورم دے، په (ناسخ التواریخ) کښې دا ښکاره بیان شوی دے د دې تائید دا سې هم کیږي، چه (خرد اذبه) په کتاب المسالک، کښې لیکلي دي چه عباسي خلیفه واثق بالله د ذوالقرنین



د بند د تحقیق د پاره د ماهرانو یو کمیشن اُلیږلو هغوی هُم دا بند د قرآن مطابق د ذوالقرنین بند اُټاکلو، د ذوالقرنین دې بند ته په فارسي ژبه کښې د ژه آهنی،، ترکي ژبه کښې ،،د امرکپو،، او په چیني ژبه کښې ،، بهاګ کورائي،، واي بعض د کور،، د ژ د ،،کور،، مطلب ،،کورش سائرس،، دے چه دا ځ ،،کیخسرو،، نوم دے،

## ذوالقرنین

د ذوالقرنین درے سفره په قرآن کښې ذکر دي، یو مغربي، بل مشرقي او دریم غالباً شمالي دے. ذوالقرنین څوک وو، امام رازي رح په تفسیر کبیر سورة کهف کښې لیکي چه دا د مقدونیے سکندر، د فیلقوس خوئے د ارسطو شاګرد وو، امام رازي ارسطو ته ښکاره کافر وئیلي دي، بعضو ذوالقرنین کیقباد ته وئیلي دي، او بعضو مغفور چین ته، بعضو یمن بادشاه ذونواس حمیري ته، او بعضو د حضرت ابراهیم علیه السلام د زمانے سامي بادشاه ته ذوالقرنین وئیلي دي، بعضو وائي چه دا مصعب بن عبدالله وو لکه چه ابن عبدالبر لیکلي دي، بعضو عبدالله بن ضحاک بنائي او بعضو دا سائرس (کورش) ګڼړي دا اخیري صحیح دے نور ټول غلط دي نور اقوال هم شته خو هغه هم غلط دي، د مصعب بن عبدالله او د عبدالله بن ضحاک سند صحیح نه دے حافظ بن حجر رح د دے تردید کړی دے، او د ابراهیم علیه السلام د زمانے مصعب او عبدالله بن ضحاک د په تاریخ دا ثابت نه دي چه دوی د ابراهیم علیه السلام د زمانے وو او دا هم نه دي ثابت دے دوی دا بند جوړ کړی دے، نور بادشاهان مؤمنان نه وو، سائرس ذوالقرنین چه مؤمن صالح وو او د ۵۵۹ قبل از مسیح کښې تیر شوی دے صحیح خبره دا ده چه دا بند هم ده جوړ کړی دے ځکه چه قرآن کریم نا کم ده ته نیک سړے خو ښیلي دي او د دے بند نسبت کول ده ته درست

بنائی دا رنګ په تاریخ کښې دده دې سفرونه هم ثابت دی، سکندر د قفقاز سفر نه دے کړے او نه نور دذکر شوو ګسانو سفر کړیدے د ذوالقرنین مغربی سفر د ایشیائے کوچک وو، او د نمر ډوبیدل په ، عَیْنٍ حَمِئَةٍ ،، کښې د سمرنا د سمندر په اوبو کښې وو کوم چه تورے دی، سائرس بابل فتح کړو بنی اسرائیل ئے خلاص کړه، د بیت المقدس تعمیر ئے اُوکړو او یسعیاه علیه السلام آته شلے کاله رُومبے د بیت المقدس د تعمیر پیشن ګوئی کړے وه، چه بابل کښې به اُوریا کاله یهودیان قیدوی بیا به بیت المقدس آباد شی، امام رازی رح په تفسیر کبیر کښې ښکاره وئیلی دی چه دا بند سائرس جوړ کړیدے او دا چه ذُوالقرنین یقیناً سائرس دے دانیال علیه السلام په دین وو، دا تحقیق د تاریخ نه علاوه د یسعیاه علیه السلام صحیفے باب ۴۵ ایت ۱ تا ۴ او د دانیال علیه السلام مکاشفے باب ۸ آیة ۱ تا ۸ د زکریا علیه السلام کتاب باب ۱ آیت ۱۲ او د عزرا باب ۱ آیة ۱ تا ۴ نه را ضِتے شویدے کوم چه د قدیم تاریخ اهم ترین بنیاد ګڼلے شی، ابراهیم زردشت هُم د دانیال علیه السلام شاګرد او مُوَحّد وو ځکه چه د هغه اُوستاد اعوذُ بالله او بسم الله نه شروع کیږی د ابن کثیر تحقیق هُم دا سے دے رکنهات اصطخر کښې دا الراته هُم مؤمن او د مجوسیت دُشمن وئیلے شویدے، سائرس ذُوالقرنین کدادا نه ورپاندے نیږ شویدے، د یاجوج ماجوج په باره کښے د هغوی د لوړوالی واقعات غلط دی، ابن کثیر رح په خپل تاریخ کښې او بُخاری رح په باب د یاجوج ماجوج کښې د دے تردید کړیدے، دغه رنګ په ترمذی کښې د ابو هریره رض هغه روایت چه هغوی بند کښې او بیا وائی چه صبا به نور کنو خو انشاء الله وئیل هیر کړی نو بیا بند په خپل حال شی او څه وخت چه دوی انشاء الله اُوائی

نو دغه بند به مات کړی او ترې به را اُوزی، دا هم ضعیف روایت دے، امام احمد بن حنبل رح ابن کثیر رح په خپل تفسیر جلد ۳ ص ۱۰۵ کښې نقل کړیدی چه دا خلاف قرآن دی،

فَمَا اسْطَاعُوٓا اَنْ یَّظْهَرُوْهُ وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا (سورة الکهف آیة ۹۷) یاجوج ماجوج نه په بند ختلے شی او نه پکښې سورے کولے شی:

ابن کثیر رح لیکی چه دا روایت ابو هریره رض د کعب الاحبار نه را غستے دے او خلقو د غلطئ نه ورنه مرفوع وئیلی دی (د عقیدة الاسلام) په مطابق یاجوج ماجوج به په بند بهر ته نه را پورے اُوزی بلکه د بُحیره کیسپین نه تر منچوریا پورے به د یو ځائے نه را اُوزی، قرآن د دے بند مضبوط والے بیان کړیدے او د هغه ماتول ئے د قیامت علامه ښودلے ده مګر د یاجوج ماجوج ذکر چرته چه را غلے دے هلته د بند ذکر نشته دے نه معلومیږی چه یاجوج ماجوج به د بند په لاره نه بلکه په بله لاره را اُوزی (حدیث شریف متفق علیه) وَیْلٌ لِّلْعَرَبِ قَدِ اقْتَرَبَ مِنْ فَتْحِ رَدْمِ یَاْجُوْجَ وَمَاْجُوْجَ مِثْلُ هٰذِهٖ ،، عمدة القاری جلد ۸ کښې د کرمانی نه منقول دی چه دا استعاره ده مطلب ئے فتنے خورېدل دی، لکه چه د ګوتے د کړئ په اندازه یو سُوری ئے شی او فتنے ترې را بر سیره شی، لیکن مطلب ئے هرګز دا نه دے چه دغه د ذوالقرنین بند به ماتیږی او یاجوج ماجوج به ترې را اُوزی، په عقیدة الاسلام کښې د ذوالقرنین تشریح په مختلفو اقوالو سره شویده لیکن د اصطخر له آثارِ قدیمه د ذوالقرنین کومه مجسمه چه برآمد شویده په هغه کښې د ذوالقرنین د سینے د پو ښکیږے او چپے غاړے ته له منځه تش د سینے ښکرونه غوندے جوړ شویدی د دے نوم دا وجه ښودل صحیح ښکاری:

———

# تتمه

## دَ کُفارو دَ عذاب همیش والے

دَ خَتَمَ اللّٰهُ آیت تفسیر بیانولو په وخت امام رازی رح په تفسیر کبیر کښې دَ کُفارو په دائمی عذاب اشکالونه پیش کړي دي، احقر به دَ الله په فضل دغه شبهے نقل کو او جواب به ئے ورکوي۔

### رُومبئ شُبه

په دے مسئله باندې اشکال دا دَ ی چه دا دَ خدا دَ انصاف نه خِلاف دَه، ددے جواب دا دے چه دَ عذاب همیش والے ظُلم نه دَے بلکه انصاف دے، دَ ظُلم مطلب دا دے چه دَ بل په ملکیت کښې تصرُّف اُوکړے شي او کُفّار خو دَ خُدائے مِلک دي خُدائے په خپل مِلک کښې تصرُّف کوي دَ بل چا په مِلک کښې نه کوي۔

### دویمه شُبه

همیشه عذاب دَ خُدائے دَ رحمت خِلاف دے دَ دے جواب دا دے چه دَ مُجرم سزا عینِ رحمت دے ځکه کوم حکومت کښې چه سزا نه وي هغه ټول خلق دَ رحمت نه خلاف کړي

### دریمه شُبه

دَ جُرم وخت لږ دے یعنې دَ بلوغ نه تر مرګه او دَ عذاب وخت ختمیدُونکے نه دے دا مناسب نه ښکاري، دَ دے۔

اوّل جواب دا دے، چه دَ جُرم او سزا په وخت کښې برابرے ضروري نه دے، واکے ما دَ اکه دَ یو گهنټے یا ئې غورځي لیکن سزا په کالونو څوري اصلي خبره دا ده چه سزا دَ جُرم دَ نوعیت په مطابق ورکولے شي دَ هغه دَ وخت په مطابق نه، دَ کُفر دَ جُرم نوعیت سخت دے، نو ځکه ئے سزا هم سخته پکار ده، دویم جواب دا دے چه دَ کفارو جُرم (کُفر) هم نه ختمیدُونکے دے په مرګ ختمیدل دَ دوی په اختیار کښې نه وي دا تره بے



اختیاره پاتے شو که دے ژوندے وے نو په خپل اختیار دَه کُفر ټول عمر نه پریښوده دَ ناگیریدا او مجبوري په حالت کښې مجرم پاتے کیدل مخلوق او خالق دواړه نه منې، مطلب دا چه دَ کفر جُرم هم نه ختمیدونکے دے او عذاب ئے هم نه ختمیدُونکے مُناسب دے۔

دریم جواب دا دے، چه کفارو دا الله تعالىٰ دلا محدُودو او بے پایانه انعاماتو او کمالاتو نه انکار او بغاوت اُکړو نو ځکه ئے سزا هم لامحدُوده او بے پایانه مُناسبه ده۔

څلورم جواب دا دے، چه دَ کفارو سزا دَ طبعي تاثیر په ډول ده، لکه دَ سرطان جراثیم چه دَ عُمر سره سم وي ټول عُمر تر ننځور بے آرامه او تکلیف کښې وي، دَ کُفر جراثیم هم دائمي اثرات او نتیجے لري یعنې دَ جسم په او دَ کښې همیشه پاتے کیدل، فرق او بیلتُون صِرف دومره دے چه دَ جسماني رنځ (سرطان) اثرات او نتیجے دَ جسم په ختمیدُو په مرګ ختمے شي او دَ رُوحاني رنځ (دَ کُفر) اثرات او نتیجے دَ رُوح سره تړلي دي کوم چه ختمیږي نه څو مره پورے چه دَ رُوح ژوندي وي (چه په آخرت کښې نه ختمیږي) نو مُناسب دي چه عذاب دَ کفر هُم په آخرت کښې همیشه وي۔

پنځم جواب دا دے، چه دَ هر تکلیف سبب تر څو چه وي نو تکلیف به هُم وي لکه پینتورگي کښې چه کانړے تر څو وي تر هغې به پرې درد هُم وي یا دَ او رکاوي په شیشه کښې دَ ننه دَ ټارونو وېستون دیلو حروف تر هغه وخت موجود وي تر کومه چه دا شیشه موجود وي، هرکله چه کانړے دَ پینتورگي نه اُوتو یا شیشه چپ چُور شوه، نو هله به دَ درد او دغه حروف ختم شي، دغه رنګ دَ کُفر نه هرڅو پورے چه رُوح کښې موجود وي نو عذاب به ئے هم تر هغې وخته وي مګر دا دے په رُوح کښې ورننوتے دے چه دَ بیلیدو امکان ئے هیڅ وشته نه

لکه الله تعالیٰ فرمائی

وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ : کچرې کفار د آخرت نه دُنیا ته راوستے شی نو بیا به هم دغه کفر کوی کوم نه چه منع کړے شوی وو (سورۃ انعام) مطلب دا چه سبب یعنی کفر تر خو چه موجود وی، نو عذاب به ئے هم تر هغه وخته پورے وی. لیکن کفر په روح کښ داسے ننوتے دے چه تر جدا کیدے نشی او روح ختمیږی نه چه د هغے په ختمیدو دغه سبب (کفر) هم ختم شی نو ځکه ورله دائمی عذاب مناسب دے :

## تمت بالخیر

